


دریم چاپ

جوستېن ګارډر

# د سوفي نړۍ ناول

## (د فلسفې تاریخ)

د نړۍ په ۶۰ ژبو ژباړل شوی او ۴۰ میلیونه کاپي پلورل شوی ناول

شفیق امیرزی او وږمه وردګ

# د سوفي نړۍ

د نړۍ په ۶۰ ژبو ژباړل شوی او ۴۰ میلیونه بلورل شوی ناول

(د فلسفې تاریخ)

لیکوال: جوستین گاردر

ژباړن: شفیق امیرزی او وږمه وردګ




**د سوفي نړۍ** «د فلسفې تاریخ»

لیکوال: جوستین ګاردر

ژباړن: شفیق امیرزی او ورمه وردګ

خپرندوی: اکسوس کتابپلورنځی

دیزاین: اکسوس ګرافیک

چاپ وار: دریم چاپ

چاپځی: وایګل چاپ

چاپ کال: ۱۴۰۲ / ۲۰۲۳

ISBN 978-9936-626-54-6

**بیه: ۳۵۰ ؋**

پته: کابل ښار، دریمه ناحیه، د دهبوري پارک جنوبي دروازې ته مخامخ





:0798989696.0202504652
: info@aksosbookstore.af
: Aksos book store
: Aksosbookstore
: www.aksosbookstore.af

## مننه او کور ودانی!

لـه درانـه اسـتاد محمـد اصـف صـميم او اسـتاد اجمـل ښـکلي. د دوی په هڅونه دا ژباړه بشپړه شوه!

عمر مو اوږد!

"د بېوزلي ژوند هغه کوي، چې له درې زره کلونو ګټنه ونه کړي.
ګوېته

## زما د مساپرۍ ملګرې

دیـارلس کالـه پخـوا (دسـوفي نـړۍ) لـه مـاسره د لسـګونه زره کیلـومتره لـرې سـفر پیـل کـړ او پـر نـړۍ راسره وڅرخېـده. مـوږ دواړه، د پـوهې پـه زده کـړې پسـې لـه اوو سـیندونو او اویـا غرونـو واوښـتو. مـا د فلسـفې هـنري تـاریخ د دغه کتاب له لیکوال (یوستین ګاردېر) څخه زده کړ.

د سوفي نـړۍ هـم رومـان دی، هـم پوهنـه او هـم تـاریخ . پـه بلـه ژبـه، د هـنر او پـوهنې یـو ګډولـه دی، چـې د فلسـفې تـاریخ، وده او پرمختیـا د کیسـې پـه ژبـه بیانوي.

ویـل کیـږي، چـې د دغـه کتـاب لیکـوال، چـې د فلسـفې ښـوونکی و، غوښـتل د فلسفې د اسانه ښوونې پـه پـار یـو مـتن ولیکـي، چې د دغې هیلـې پایلـه یـې همدغه رومـان شـو. کتـاب پـه لـومړي ځـل چـاپ، لـه پـراخ هـرکلي سره مخامخ شو او د نړۍ په دېرشو ژبو وژباړل شو.

د نېکمرغۍ ځـای دی، چـې بلاخـره دغـه اثـر پښـتو تـه هـم راوژبـاړل شـو. هیلـه ده، د افکارو له تاریخ، ودې او پرمختیا سره به پښتانه هم اشنا کړای شي.
یو مهال مې د دغه کتاب په اړه خپل یوه همفکره ملګري ته ویلي وو:
که سپوږمۍ ته تللـم او د لسـو کتـابونو د وړلـو اجازه راکـړل شـوه، نـو یـو بـه یـې **"د سوفي نړۍ"** وي.

د پوهنې لمر دې تل ځلانده وي
څېړنوال عبدالغفور لېوال
۱۳۹٦المریز، د زمري شپږویشتمه
کابل ـ جمال مېنه

## د يوې وړې ماشومې لويه نړۍ

د (سوفي نړۍ) ليكوال ته يوه موخه پرته وه؛ خو دا موخه داسې اسانه نه وه، بلكې يوه ننګونه وه. پوښتنه دا وه، چې داسې يو اثر بايد زده كوونكو ته وليكل شي، چې د ټول بشري فكر په تېره د اروپايي فرهنګ درست تحول راونغاړي؛ خو زده كوونكي به دا څنګه زده كوي، څكه چې دا خو د دوی تر سويې لوړې خبرې دي.

ليكوال پرېكړه وكړه، چې د تېبې لپاره بايد شربت داسې خوږ، چې زده كوونكي يې څښي؛ نو چې په خوند يې وڅښي او چې خلاص يې كړي، په ځان كې بدلون هم احساس كړي.

بس دا ټولې خبرې يې په يوه ناول كې وپېيلې او په يوه كيسه كې چې پېښې مهمې وي، د دومره اوږدو، پېچلو او مختلفو بيانونو راوړل ربښتيا هم ستونزمن كار و.

خو ليكوال وړتيا وښودله او خپل كار يې په بري سره ترسره كړ. كه غواړئ، چې د بشر د تفكر پر تاريخي سفر ځان پوه كړئ؛ نو دا ناول يې زبردست نخوړ او اسانه لار ده.

د خوښۍ ځای دی، چې پښتو هم د هغو ژبو په كتار كې ودرېده، چې يو مهم اثر او خوندور ناول ورروژباړل شو. زه يې ژباړن د ډېرې ستاينې وړ بولم او د ګاندي لپاره يې په قلم پورې خپلې نيمګړې هيلې غوټه كوم.

تاسو ناول ته راوبولم او زه درنه په دې هيله رخصتېږم، چې د دې كتاب په پای كې به هغه كس نه يئ، چې د كتاب د لومړي مخ د پرانيستو پر وخت وئ.

اجمل ښكلی

# لړليک

## لومړۍ برخه

## دویمه برخه

## د عدن بڼ

### دا هر څه به یو وخت له هېڅه را پیدا شوي وي...

سوفي اموندسن له ښوونځي کور ته ولاړه. نیمه لار یې د یووانا په ملګرتیا وهلې وه. دوی د ماشیني سرېو په اړه خبرې کړې وې. یووانا به ویل چې انسان د یوه پرمختللي کمپیوټر په څېر کار کوي. خو سوفي بیا په دې خبره دومره باوري نه وه. ادمیان نو اوس د کومې وسیلې ټوټه دي؟

ستر پلورنځي ته چې ورسېدل لار یې سره بېله شوه. د سوفي کور له ښاره وتلی و، نو لاره یې هم د یووانا تر لارې دوه برابره اوږده وه. د دوی له بڼ وروسته نوره ودانۍ نه وه. سوفي ته یې کور د نړۍ پای ښکارېده. د ځنګله سر د دوی له کوره پیل شوی و.

ورو ورو د کلوور تر کوڅې ورسېده. د کوڅې په پای کې یو ګرځندی و، چې د بې کسانو ګرځندی یې باله. بې د رخصتۍ له ورځو به هېڅوک هم پر دې ځای نه تېرېدل.

د مې میاشتې لومړۍ ورځې وې. د زیړو نرګسو ځانګې د ځینو ونو له تنې تاو شوې او د لوړو چنارونو کمرنګه شنې پاڼې نوې ټوکېدلې وې.

حیراني ده، وینې چې هر څه د کال په دې وخت کې بدل شي. ګلان پاڼې وکړي، خمکه توده شي، د واورو وروستۍ دانې هم ویلې شي، سلګونه ډول شنې ګیاوې له خاورو سر راپورته کړي، خو حیراني ده چې د دې کارونو علت په څه کې دی؟

سوفي د بڼ ور پرانیست. تل به یې لومړی پوست بکس وکوت، چې د تل په څېر به د اعلانونو بنډل، بنډل پاڼې پکې پرتې وې. په دې مېنځ کې به یې ځو پاکټونه مور ته چا رالېږلي وو. هغه به یې واخیستل، د پخلنځي پر مېز به یې کېښودل. دویم پوړ ته به وخته. خپله کوټه به یې سمه کړه. په کوړنی دندې پسې به یې قلم را واخیست.

کله کله به یې پلار ته هم ځینې لیکونه له بانکه راتلل. د سوفي پلار څه عادي سړی نه و. د تیل ایستونې بېړۍ کپتان و او په ډېر خند به کور ته راته. تر کور به گرچاپېره گرځېده. کور ته به چې راغی نو وړه باغچه به یې خپلې مېرمنې او سوفي ته ښه سمبال کړه. خو چې ولاړ به بیا به نو په سمندر کې و. د عمر ډېر کلونه یې په اوبو کې تېر کړي وو. ډېر وخت به له کوره لرې و.

خو نن د ټولو ورځو پر خلاف په بکس کې یوازې یو لیک و. هغه هم سوفي ته را استول شوی و. د سپین پاکټ پر شا لیکلي و، (سوفي اموندسن، دریمه گنیه، د کلوور کوڅه). نور څه نه و، نه یې پر شا پستي ټکټ و او نه د رالېږونکي پته.

د کور ور یې وتاړه. پاکټ یې پرانیست. د پاکټ هومره یوه پاڼه پکې پرته وه. لیکلي و:

**ته څوک یې؟**

نور هېڅ نه وو. همدا دوې کلمې په لاس لیکل شوې وې. د کلمو په پای کې لویه پوښتنښه (؟) وه. بیا یې پاکټ واړاوه را واړاوه. نور هېڅ نه وو. په دې کې شک نه و، چې لیک سوفي ته راغلی و. خو په دې نه پوهېده، چې لیک ورته چا او ولې را لېږلی؟

سوفي کور ته ننوته. سور رنگی کور د لمر رڼا ته ځلېده. پیشو یې (شرکان) د تل په څېر د بوټو له منځه را ټوپ کړ او څو چې سوفي ور، تاړه وروپسې ننوته.

د سوفي مور به تل غوسه وه، چې له کوره ژوبڼ جوړ شوی دی، هره بلا پکې پیدا کېږي. مور یې ملامته نه وه، سوفي په رښتیا له کوره د ژوو خاله جوړه کړې وه. سوفي بیا پخپل کار خوښه وه. دا کیسه له درو رنگه کبانو پیل شوه. بیا یې دوې ښکلې مرغۍ راوستې، بیا یې یوه شمشتې راوړه،

اخر يې سر د يوې خرې پيشو راوړلو ته ووت. سوفي دا ټول شيان له يوازېتوب د خلاصون لپاره را ټول کړي وو. څکه مور به يې تر ډېره کار کاوه، پلار يې هم په کال کې يو څل کور ته راته، نو د وخت تېرولو لپاره يې بې له دې شيانو بله اسره نه وه.

سوفي د ښوونځي بکسه له شا خلاصه کړه. پيشو ته يې خواړه په وړه کاسه کې کېښوده. د پخلنځي پر وړه څوکۍ کېناسته، ليک يې لا په لاس کې و.

**څوک يې؟**

درېغه د دې پوښتنې پر خواب پوهېداى. په دې پوه وه چې سوفي اموندسن ده، خو تر اوسه يې په دې اړه فکر نه و کړى چې دا سوفي اموندسن څوک ده؟

که په يوه بل نامه دنيا ته راغلې وي او نوم يې انه کنوتسن واى. نو بل څوک به واى؟ دا خبره ور ياده شوه چې پلار يې پرې ليلمور نوم اېښوده، مانا يې مورکۍ ده. سوفي کوښښ وکړ، چې دا صحنه په ذهن کې انځور کړي، له خلکو سره لاس ورکړي او هر چا ته ووايي، چې نوم مې ليلمور اموندسن دى. خوند يې ور نه کړ او ځان ورته پردى ښکاره شو.
له خپل ځايه يې ټوپ کړ. تشناب ته لاړه، حيرانوونکى ليک يې لا هم په لاس کې و، هېنداري ته مخامخ ودرېده، په خپلو سترګو کې ډوبه شوه.

- زه سوفي اموندسن يم

په هېنداره کې ولاړې نجلۍ څه و نه ويل. هېڅ و نه خوځېده، خو بس هغه څه چې سوفي کول، په هېنداره کې وړې نجلۍ ورپسې سم تکرارول. سوفي کوښښ وکړ ناڅاپه داسې حرکت وکړي، چې په هېنداره کې ولاړه نجلۍ يې و نه کړاى شي، خو امکان يې نه و، څکه په هېنداره کې د سوفي څېره وه.
سوفي پوښتنه وکړه:

په هېنداره کې ولاړې نجلۍ خواب ور نه کړ. شک یې پیدا شو، چې دا پوښتنه سوفي وکړه، که په هېنداره کې ولاړې نجلۍ له دې وکړه، هېنداري ته ور ورانـدې شوه، د شهادت گوته یې ورته ونیوله. پوښتنه یې تکرار کړه، **ته څوک یې؟** گوته یې په هېنداره کې د ولاړې نجلۍ پر پوزه کېښوده، بیا یې وویل:

- ته (زه) یم.

څواب یې تر غوږ نه شو، جمله یې واړوله ویې ویل:

- او زه چې یم (ته) یې.

سوفي ته خپلې څېرې څه خوند نه ورکاوه. تل به یې اورېدل چې سترگې یې ښکلې او بادامي دي، خو دا به هم ورته څینو ویل، چې خوله یې غوټه ده، پوزه یې نرۍ ده. څینو خو ان لا دا ورته ویل چې غوږونه یې سترگو ته نېږدې دي. تر ټولو یې وېښته ورته بد ښکارېدل. وېښته یې صاف او خېره و، د دې خوښ نه وو. کله نا کله به یې پلار په وېښتو کې گوتې وهلې. پلار به ورته موبور نجلۍ ویله، موبور نجلۍ د مشهور فرانسوي استاد کلود د دبوسي موسیقۍ د یوه راگ نوم و. سوفي ډېره هڅه کوله، چې د وېښتو رنگ بدل کړي، خو نه د وېښتو کریمو گټه ورته وکړه، نه غوړیو او نورو څېزونو، وېښتو یې خپله بڼه نه بدلوله. کله کله خو به څان دومره بد ورته و ایسېده، چې ویل به یې بدمرغه یم. مور به یې تل دا خبره ورته یادوله، چې د سوفي د زېږون پر وخت یې څومره سختۍ گاللې وې، خو دې به دا پوښتنه له څانه کوله، چې د انسان زېږون یې له څېرې سره څه اړیکه لري؟

عجیبه خبره نه وه؟ په دې نه پوهېده چې څوک ده؟ دا ستره بې انصافي نه ده چې د خپلې څېرې په انتخاب کې بې واکه وه؟ خو انتخاب د دې په واک کې نه دی، ان دا یې هم په واک کې نه دي چې د څمکې پر سر دې څه دول بشر وي.

- بشر څه شی؟

سوفي په هېنداره کې مخامخ څېرې ته وکتل. لکه ښښنه چې غواړي، غاړه يې کږه کړه. سترګې يې چوغې کړې، مخامخ څېرې ته يې وويل:

- ښه به وي چې ولاړه شم، د ښوونځي جنجالونه مې خلاص کړم، د چاپېريال ساتنې د ښوونکې خوی بدغونی غونډې دی، هسې نه کار راته وګوري.

له تشنابه را ووته، خو د درس او کوټې پر ځای بڼ ته ولاړه.

- پشی، پشی، پشی!

سوفي په پيشو پسې منډه کړه، هغه يې وړې کوټې ته د ننه کړه، ور يې ورپسې وتاړه.

په بڼ کې پر غوړېدلو ډېرو ولاړه وه، په لاس کې يې مرموز ليک ته حيرانه وه، عجيبه احساس يې وکړ. داسې يې احساس کړه چې وړې نانځکې ته ورته ده او د يوې امسا په خوځولو د ځمکې پر سر پيدا شوې ده.

په دې وخت کې يې دلته کار. هاخوا دېخوا تلل، په حيرانوونکو پېښو کې ګډون، دا هر څه د عادت خلاف نه و!؟

شرکان د وړو بوټو مېنځ ته توپ کړ. چالاکه پيشو وه، له مخ يې نېولې تر سېينې لکۍ تولـه د قوت او چټکۍ توته وه. پيشو هم په باغ کې وه، خو لکه سوفي د خپل موجوديت په اړه يې هېڅ وخت فکر نه وکړی.

همدا چې سوفي د خپل موجوديت په اړه فکر وکړ، دا يې هم په فکر کې را وګرځېده چې تل به دلته نه وي. له ځان سره يې وويل، نن دلته يم خو بيا به نه وم.

پس له مرګه ژوند شته؟ دا نو بله پوښتنه وه چې د پيشو تر خيال اوچته وه.

ښه نو! څه موده مخکې د سوفي نيا مړه شوې وه، تر اوسه يې کله کله يادېدله، د ژوند پای ته رسېدل ناروا نه دي؟

پر غوړېدلو ډېرو همداسې په فکرونو کې ډوب ولاړه وه. ډېره هڅه يې وکړه چې د ژوند په اړه فکر وکړي، د مرګ د هېرولو هڅه يې وکړه، خو

هېر يې نه شو. د ژوند په اړه به يې په فکر کې مرګ هم ذهن ته راغی، برعکس هم همداسې کېدل. کله به چې د مرګ په فکر کې ډوبه شوه د ژوند ارزښت به يې هم سترګو ته ودرېد. مرګ او ژوند د يوې سيکې دوه مخه ورته ښکاره شول، همداسې يې په ذهن کې هسک تيت کول. هر څه به چې د سيکې يو مخ ورته روښانه او لوی شو، بل اړخ به يې هم ورته روښانه او لوی ښکارېده.

فکر يې وکړ که له مرګه بې خبره يو، نو د ژوند خوندونه به و نه څکو، خو که د ژوند حيرانوونکې شېبې تجربه نه کړو، د مرګ تصور به راته ګران شي.

ښه يې په ياد و، چې ډاکټر يې نيا ته وويل، د درد دوا دې نوره نشته، په ناعلاجه ناروغۍ اخته يې. نيا يې د ژوند په وروستيو کې يوه جمله له خولې ايستلې وه: ***((تر دې شېبې نه وم پوهېدلې، چې ژوند څومره ښکلی دی)).***

ډېر درد لري، چې د مرګ پر بستر پروت وې او نوی پوه شې چې ژوند څومره ښکلی دی. يا بايد يو مرموز ليک د کور په پست بکس کې پيدا کړئ.

فکر يې وکړ چې ورشي بکس وګوري، ګوره که نور ليکونه راغلي وي. سوفي چټکه د سرای سترې دروازې ته ورسېده، بکس ته نېږدې ورغله، د ښه بکس مېنځ يې وکوت، حيرانه شوه، د لومړني پاکټ په څېر بل سپين پاکټ په بکس کې پروت و. ښه يې په ياد دي چې مخکې يې بکس تش کړی و، نو دا ليک نوی راغلی دی. پر دې پاکټ هم د لېږونکي نوم نه و، پاکټ يې پرانيست او د لومړني ليک هومره ليک پکې و.

ليکلي و:

***نړۍ څنګه پيدا شوې ده؟***

سوفي سر وخوځاوه، هغه پوهېده چې د پوښتنې ځواب ورسره نشته. څوک به يې په خواب هم پوه نه شي. سره له دې سوفي فکر وکړ چې ښه

پوښتنه ده. د لومړي ځل لپاره يې حس کړه چې بايد دې پوښتنې ته ځواب پيدا کړي. په باور يې د هغه نړۍ په اړه معلومات نه لرل ښه نه دي، چې ژوند په کې کوو.
نښيو دوو ليکونو گنگس کړې وه. په باغ کې يې يو پټنځای جوړ کړی و. فکر يې وکړ چې هلته ولاړه شي. دا نو د سوفي پټ ځای و. کله ناکله به دلته پټېدله. کله به چې ډېره خپه وه، يا به يې فکر ډېر ناارام و، يا به يوه شي ته ډېره حيرانه وه، نو همدې ځای ته به يې ځان رساوه. خو نن حيرانه وه.
د سوفي د کور شاوخوا، له رنگارنگ گلونو ډک بڼ و. د راز راز مېوو ونې، ارت چمن، اوږد کوچ، سر پټې زانگو، دا زانگو د سوفي نيکه د خپل لومړني اولاد له مړينې څو اونۍ وروسته د هغې نيا ته جوړه کړې وه، ماشوم ماريه نومېده. د گور پر ډبرليک يې ليکل شوي وو: (کوچنۍ ماريه مونږ ته راغله، سلام يې وکړه، بېرته ولاړه.)
د باغ په څنډه کې، له وړو بوټو ور هاخوا، لوړ ببر بوټي ولاړ وو، چې په هغه کې به هيڅ شی نه شنه کېدل. دا له پخوانيو ځنگلونو او بوټو نه جوړ شوی طبعي دېوال و، همدې برخې د دوی باغ له ځنگله بېلاوه. په وروستيو شلو کلونو کې چا لاس هم نه و وروړی، نو د ځنگلونو ښاخونه په يوه بل کې سره پيودل شوي وو. يوازې له چولو يې شی ليدل کېدل، نور د دې امکان نه و، چې څوک، يا کوم حيوان دې له هغه بلې خوا ته واوړي. نيا به يې ويل چې ډېر وخت همدې ځنگلونو د دوی چرگوړي د گېدړو له حملو ساتل.
د ځنگلونو دغه طبعي دېوال نور د هېچا په درد نه خوړل، په يوه ځای کې يې کوچنۍ غار جوړ شوی و، دلته نو د سوفي پټنځای و، په کور کې هېڅوک په دې ځای خبر نه وو، دا کوچنۍ غار خدای خبر څه شي جوړ کړی و، خو اوس نو د سوفي په وړه کوټه بدل شوی و.

هغه له ماشومتوبه پوهېده چې دلته يو غار دی. په لومړي ځل چې هلته ورغله، د پانو او ښاخونو يو ستر سوری ورته ښکاره شو، پکې ننوته، د وړې کوټې په څېر و، باوري وه چې څوک يې دلته نه شي پيدا کولی.
سوفي دواړه پاکټونه په لاسونو کې ټينګ نيولي وو او په منډه منډه د بڼ کونج ته ولاړه، د سمڅ خولې ته ورسېده، په خاپوړو پکې ننوته، سمڅ غار دومره لوړ و چې ځای ځای پکې درېدلی شوای، د ننه په غار کې ونې پر مار غونډې تاو شوو پرتو ريښو کېناسته. د پاڼو او ښاخونو له کوچنيو سوريو يې بهر ځايونه ليدای شول. هېڅ سوری هم تر يوې سيکې لوی نه و، نو ځکه يې ټول باغ سر تر سره ليدای شو.
په ماشومتوب که به يې له دې خوند اخيست چې هلته کېني، مور پلار يې ګرد پسې وګرځي او دا پټ پټ په ځنګلونو کې د سرګردانی ننداره وکړي.

سوفي به فکر کاوه چې ددوی بڼ ځان ته ځانګړې نړۍ ده. هر وخت به يې چې له خپل مذهبي کتاب د عدن د بڼ کيسې اورېدې، نو په خپل کوچني پټنځای کې د کېناستلو او د خپل کوچني جنتي بڼ په يادونو او سوچونو کې به ډوبه شوه.

## نړۍ څنګه رامنځته شوې ده؟

هېڅ يې عقل دغه پوښتنې ته ځواب نه شو پيدا کولای. همدومره پوهېده چې دا نړۍ په فضا کې يوه سياره ده، خو فضا له کومه شوې ده؟

فضا به کېدای شي تل وه. که داسې وي نو اړ نه يو ددې پوښتنې ځواب پيدا کړو. خو بيا نو دا پوښتنه پيدا کېږي چې د څه شي د تل پاتې والي امکان شته دی که نه؟ په وجود کې يې داسې څه و چې دا خبر يې نه منله. هر څه چې شته دي، يوه ورځ خو پيدا شوي دي که نه؟ نو دا فضا هم بايد يوه ورځ له بل شي پيدا شوې وي.

خو که فضا له یوه شي پیدا شوې نو حتما هغه شی هم یوه ورځ له بل شي پیدا شوي دي. سوفي پوه شوه چې یوازې غواړي ځان وغولوي. یو وخت باید هر څه له هېڅ پیدا شوي وي. دا نو شونې ده؟ دا چې نړۍ له هېڅ پیدا شوې او یا دا چې نړۍ به همداسې تل پاتې وي، په یوه کچه ناشوني نه دي؟

په ښوونځي کې یې زده کړي و چې سپېڅلي رب دا نړۍ پیدا کړې ده. سوفي کوښښ وکړ چې ځان ته ډاډ ورکړي، د پوښتنې د حل تر ټولو ښه لار همدا ده. خو بیا فکر یې سر ته راغی، دا سمه ده چې نړۍ سپېڅلي رب پیدا کړې ده. خو په خپله خدای څه؟ هغه چا پیدا کړی دی؟ هغه ځان له هېڅ پیدا کولی شي؟ د وجود په ژورو کې یې یو غږ را اوچت شو. که خدای قادر دی چې هر څه پیدا کړي، نو مخکې له دې چې پیدا شي او یا د نورو موجوداتو په پیدا کولو لاس پورې کړي، کولی یې شوی چې ځان پیدا کړي؟ اوس نو یوازې یوه شونتیا موجوده ده، هغه دا چې خدای تل تر تله شته دی. خو داسې یوه شونتیا یې مخکې نه وه رد کړې؟ دا خو نه ده، هر څه چې شته دي باید یوه ورځ پیدا شوي وي.

- لعنت پر شیطان!

پاکټونه یې بیا پرانیستل.

***ځوک یې؟***

***نړۍ څنګه پیدا شوې ده؟***

څومره ځورونکې پوښتنې! دا لیکونه له کومې خوا راغلي دي. دا پخپله یوه حیرانوونکې مسئله وه. دغه کس چې د سوفي خوښې یې له منځه وړې دي، فکر یې ورګډوډ کړی دی او یو دم یې هغه د نړۍ له دومره سترو معماګانو سره مخ کړې ده، څوک دی؟

سوفي د درېيم خل لپاره د پست بکس په لور ورغله. پست رسوونکي څو نوي ليکونه او پانې راوړې وې. سوفي ډېرې سوداګريزې خبرتياوې، ورځپاڼې او څو ليکونه چې ښايي مور ته يې راغلي وو، را واخيستل. د مبارکۍ يو کارت هم پکې و، پر شا يې د لمرين او ښکلي ساحل انځور و. کارت يې واړاوه، د ناروې د پست ټکټ وربانـدې سرېښ و، د نړيوالو څواکونو مهر يې هم پر شا لګېدلى و. ښايي د پلار يې و، خو هغه په ناروې کې نه دى، خط يې هم د پلار خط نه و.

سترګې يې چې په کرښو ولګېدې، د زړه ضربان يې ډېر شو، (هيلـده مولرکناګ ته، د سوفي اموندسن په لاس، درېيمه ګڼه، د کلوور کوڅه...) پاتې پته سمه وه. د کارت پر څټ ليکلي و:

- ګرانې هيلدې د پنځلسمې کليزې مبارکي دې درته وايم. درک کولى مې شې، چې غواړم تا ته ډالۍ درکړم، چې له ودې او پرمختګ سره دې مرسته وکړي. وبښه کارت د سوفي په لاس درلېږم، دا تر ټولو اسانه لار وه، خار دې شم.

پلار دې!

سوفي په بېړه کور ته راوګرځېده. ګنګس وه. دا هيلده بيا پسې څوک شوه، چې د زوکړې کليزه يې د سوفي له کليزې پوره يوه مياشت مخکې ده؟

د تليفون، کتابچه يې را واخيسته، د ډېرو په نومونو کې مولر و. کناګ هم و، خو د ټولې کتابچې په پاڼو کې يې د مولرکناګ په نامه څوک نه و.

کارت يې بيا وکوت، پوه شوه چې جعلي نه دى، هم يې پوستي ټکټ او مهر يې دواړه درلودل. خو دې ته حيرانه وه، چې پلار يې ولې د خپلې لور د کليزې د مبارکۍ کارت د سوفي په ادرس را لېږلى دى؟ ولې يې مستقيم خپلې لور ته نه دى لېږلى؟ دا څه ډول پلار دى چې ليک لور ته لېږي، بيا يې په غلط ادرس استوي؟ دا ولې داسې شوي.

ښايي همدا به تر ټولو آسانه لار وي؟ تر ټولو مهمه پوښتنه دا وه چې دا هيلده به اوس چېرته پيدا کړي؟

په دې توګه نو سوفي ته يوه بله ستونزه هم جوړه شوه. هڅه يې وکړه چې خپل فکر له سره منظم کړي. لومړنۍ مسله دا وه، چې هغه دوه پاکټونه په بکس کې چا ايښي دي؟ دويمه مسله هغه ګرانې پوښتنې وې چې له سوفي شوې وې او دريمه مسله دا وه چې دا هيلد مولرکناګ چېرته پيدا کولی شي؟ هغه څوک ده، چې د مبارکۍ کارت يې سوفي ته رسېدلی دی؟ باوري وه چې دا درې واړه مسلې په يو ډول نه، يو ډول په اړيکه کې دي. بايد هم داسې وي ځکه تر دې دمه د سوفي ژوند ډېر عادي و.

# د مداري خولۍ

**...که غواړو چې ښه فيلسوف شو، نو د حيرانتيا قوه بايد ولرو..**

سوفي باوري وه چې نامعلوم لېږونکی به بيا هم ليکونه ورته لېږي، نو پرېکړه يې وکړه چې اوس د ليکونو په اړه چا ته څه و نه وايي.

په ښوونځي کې يې په ډېر زحمت فکر درسونو ته راټول کړ، په باور يې ښوونکو يوازې پر بې ارزښته شيانو خبرې کولې، ولې نه يې ويل چې انسان څه شی دی؟ يا دا چې نړۍ څنګه پيدا شوې ده؟

د لومړي ځل لپاره يې حس کړه چې انسانان نه يوازې په ښوونځي کې بلکې هر ځای يوازې د بې ګټې شيانو په اړه فکر او خبرې کوي، سره له دې چې د فکر او خبرې لپاره ډېر مهم مسايل شته دي. ډېرې پوښتنې شته، چې بايد ځواب شي.

دغو پوښتنو ته څوک ځواب لري؟ د سوفي په نظر دغو پوښتنو ته د ځواب پيدا کول د بې دوده فعلونو تر اوړون ډېر مهم وو. چې د ښوونځي د رخصتي زنګ وشرنګېد، سوفي دومره په منډه ووته، چې يووانا هم پسې په منډو شوه. له څو شېبې چوپتيا وروسته يې سوفي وپوښتله:

- نن شپه د پاڼو لوبه نه کوو؟

سوفي يې د نه په مانا اوږې پورته واچولې

- له دې لوبې سره نوره مينه نه لرم

يووانا حيرانه شوه

- مينه نه لرې؟ نو د بيدمنتون لوبه به وکړو

سوفي لومړی پاخه تور سړک، بيا يې خپلې ملګرې ته وکتل

- فکر نه کوم چې بيدمنتون مې هم ډېر خوښ شي

- شوخي کوې که نه؟

سوفي پوه شوه چې د يووانا زړه تنګ شو.

- کېدای شي ووايې، چې څه دومره درته مهم شوي؟

سوفي يې سر وخوځاوه

- نه شم ويلی

- اه! مينه شوې يې؟

ځو شيبې يې پټه خوله خپله لار ووهله. د فوټبال ميدان ته ورسېدې، يووانا وويل زه د ميدان په مېنځ کې ځم چې ژر ورسېږم.

د ميدان پـه مېنځ کـې پـه تـګ يووانـا تـه لاره لنډېدلـه. خـو کلـه بـه يـې چـې مېلمانه وو، يـا بـه يـې د غاښـو لـه ډاکټـر سره وخـت اخيسـتی و او بيـره بـه يـې وه پر دې لاره تله.

سوفي پـه خپلـو خـبرو پښـېمانه شـوه. ځکـه پوهېـده چـې يووانـا خپـه شـوه. خـو څـه يـې کـړي وي؟ کلـه يـې ويلـی شـوی چـې ټـول فکـر يـې يـوې پوښـتنې نيـولی، چـې دا څـوک ده؟ او نـړۍ څنګـه پيـدا شـوې ده؟ نـور د بيـدمنټون لوبې ته وخت نه لري. يووانا په دې خبره نه شوای پوهېدی.

بيـا ورغلـه پسـت بکـس يـې پرانيسـت، زړه يـې ودرېـد، يـو ليـک لـه بانکـه او څـو قهـوه يـي پاکټونـه يـې مـور تـه راغـلي وو. نـاهيلې شـوه، د دې انتظـار يـې يوست چې ناپېژانده کس به بل ليک هم ورته رالېږلی وي.

د بڼ ور يـې چـې پـه ځـان پسـې تـاړه، خپـل نـوم يـې پـر يـوه سـتر پاکـټ وليـد، پاکـټ يـې واړاوه، پـر څـټ يـې لـيکلي و (د فلسـفې درس پـه احتيـاط دې پرانيستل شي).

سـوفي پـه بـڼ کـې پـر فـرش شـوو ډبـرو منـډه کـړه، د ښـوونځي بکسـه يـې پـه زينو کـې وغورځوله، پـاتې ليکونـه يـې هـم تـر وره دهليـز تـه ور ګـزار کـړل، لـه يوه ليک سره يـې د بـڼ پـای تـه منـډه کـړه، خپـل پټنځـي تـه يـې ځـان ورسـاوه، دا نو دهغه پاکټ د پرانيستلو لپاره تر ټولو ښه ځای و.

پيشـو يـې پـه ټوپونـو ټوپونـو ورپسـې را ورسـېده، د پيشـو مخـه خـو يـې نـه شـوه نيولې، سوفي پوهېده چې شيرکان يې دا راز نورو ته نه وايي.

پـه پاکـټ کـې د ننـه درې ټايـپ شـوې پـاڼې پرتـې وې، درې واړه لـه يـو بـل سره ټړل شوې وې، سوفي يې په لوستلو پيل وکړ:

## فلسفه څه ده؟

*ګرانې سوفي!*

د نړۍ ډېر خلک هر يو څان ته بېله بېله بوختيا لري. ځينې پخوانۍ سيکې او ننبانونه ټولوي، ځينې لاسي کارونه کوي، ځينې بيا د بېکارۍ په وخت کې سپورت يا لوبې کوي.

داسې کسان هم شته چې له کتاب لوستلو خوند اخلي، خو د ټولو د مطالعې بڼه او ذوقونه بېل دي. ګڼ کسان شته چې مجلې لولي، ټوکې ټکالې او طنزونه لولي، څوک د ناولونو له لوستلو سره لېوني مينه لري، داسې خلک هم شته دي، چې د ستورپوهنې ليکل شوي کتابونه يې خوښېږي. داسې به هم وي چې د کشفياتو او وحشي- حيواناتو په اړه ليکل شوي کتابونه لولي.

که زه له اس يا قيمتي ډبرو سره مينه لرم، نو له نورو بايد دا توقع و نه لرم چې هغه دې هم له دې شيانو سره مينه ولري. که زه په تلويزيونو کې د سپورت ټولې خپرونې ګورم، خو دا واقعيت هم بايد و منم چې د ډېرو به له دغو خپرونو سره زړه تنګ شي.

نو داسې څه په نړۍ کې شته دي چې ټول مينه ورسره ولري، يا د ټولو په ذوق برابر وي؟ داسې څه به وي چې په ټولو پورې اړه ولري؟ بې له دې چې د دوی اصليت، ځای او نژاد ته يې پام شي. بلې! سوفي ډېر داسې شيان شته دي چې د ټولې نړۍ د علاقې وړ دي. زموږ ښوونيزې دورې د بحث موخه هم همدا ده.

په ژوند کې څه شی تر ټولو مهم دي؟ که دا پوښتنه له يوه وږي وکړو، وايي به ډوډۍ. که له يوه يخ وهلي يې وکړو، وايي تودوخه. که يې له يوه يوازې او خپه سړي وکړو، وايي به داسې يو څوک مهم دی چې خبرې ورسره وکړم.

خو که دا لومړنۍ اړتياوې پوره شي، نو داسې بل شی به هم پيدا شي چې انسان اړتيا ورته ولري؟ فيلسوفان وايي، هو!

په بند کې ښکېل نه دی. سمه ده، چې
ددوی په باور انسان یوازې د خېټې په بند کې ښکېل نه دی. سمه ده، چې ددوی په باور انسان یوازې د خېټې ... تول خوراک او څښاک ته اړتیا لري، خو له دې خبرو چې تېر شو، بل شی هم شته چې ټول اړتیا ورته لري، په دې خبرو هم پوهېدل په کار دي، چې موږ څوک یو؟ او دلته څه کوو؟

دغه پوښتنې تـه ځـواب پیـدا کـول تصـادفي کـار نـه دی، ددغـه مطلـب پلټـونکی پـه داسـې یـوه بحـث کـې ګـډون کـوي چـې لـه میلیونونـو کلونـو راهیسـې روان دی. د نـړۍ لـه پیدایښـت راهیسـې، دا پوښـتنه تـر ننـه روانـه ده. دا چـې ځمکـه څنګـه پیـدا شـوې؟ ژونـد څنګـه روان دی؟ دې تـه ورتـه پوښـتنې تـر ټولـو سـتره موضـوع ده، دا تـر دې ډېـره مهمـه پوښـتنه ده چـې وواېو تېر کال د المپیک د لوبو مډال چا وګاټه؟

فلسفې ته د نړدې کېدلو تر ټولو لنډه لار د څو ساده پوښتنو کول دي:
نړۍ څنګه پیدا شوې ده؟ هغه څه چې په نـړۍ کـې کېـږي تـر شا یـې کومـه اراده او موخـه شـته ده؟ تـر مـرګ وروسـته ژونـد شـته دی؟ دغـو پوښـتنو تـه ځوابونـه څنګـه پیـدا کـوی شـو؟ تـر ټولـو مهمـه خـو لا دا چـې څـه ډول بایـد ژونـد وکـړو؟ انسـانانو لـه آدمـه تـر دې دمـه دا پوښـتنه کـړې ده. داسـې کـوم کلتـور او ټولنـه تـر اوسـه نـه ده تېره شـوې چـې ددې پوښـتنې د ځوابولـو هڅـه یې نه وي کړې.

فلسـفي پوښـتنې هـومره ډېـرې نـه دي. څینـې مهمـې یـې مـا تـر دې دمـه درتـه ویلـې دي، خـو تـاریخ د پورتـه هـرې یـوې پوښـتنې لپـاره ډول ډول ځوابونـه پیدا کړي دي. له دې امله د فلسفي مسایلو پوښتل تر ځوابولو آسانه دي.
نـن هـم هـر سـړی دغـه ډول پوښتنو تـه بایـد خپـل ځوابونـه پیـدا کـړي. ددې لپاره چې نړۍ څنګه پیدا شوې ده؟ تر مرګ وروسته ژوند شته دی؟ ددې پوښتنو د ځواب لپاره موږ دایرة المعارف ته نه شو ورتللی، مسلې د پوهېدو لپاره چې نړۍ څنګه پیدا شوې ده؟ تر مرګ وروسته ژوند څه ډول باید ژوند وکړو. خو د نورو د باورونو مطالعه موږ ته ددې فرصت راکوي، چې د ژوند په اړه په خپل لیدلوري کې سمی راولو.

د حقیقت د پلټنې لپاره د فیلسوفانو هڅې جنایي ناول یا کیسې ته ورته دي. سړی فکر کوي چې یاره دا به قاتل وي، وروسته وایي نه دا نه، دغه بل به هرو مرو قاتل وي، بل کس بیا بل کرکټر قاتل بولي، پولیس کله کله په دې بریالي شي چې حقیقت پیدا کړي. خو کله داسې هم وشي، چې ځواب یو ځای تر پټ وي او د قضیې په تل پوه نه شي. خو سره له دې چې د ځواب پیدا کول گران وي، بیا هم ځواب شته او د څو ځوابونو په منځ کې به هرو مرو یو ځواب سم وي، نو لنډ ویلی شو چې تر مرگ وروسته ژوند هرو مرو یا شته او یا هم نشته.

ډېرو پخوانیو معماوو ته اوس علم ځواب ویلی دی. یو وخت هېڅوک نه پوهېدل چې د سپوږمۍ تیاره خوا څه ډول ده. دا خبره خو په بحث او شور ماشور نه شو حلولی، ځکه هر چا یې بېل تصور درلود. خو اوس د علم په برکت په دې پوهېږو چې د سپوږمۍ تیاره اړخ څه ډول دی. په ځمکه کې داسې ډله خلک هم شته دي چې وایي سپوږمۍ د پنیر ټوټه ده. نن هم همدا باور ورسره دی.

دوه زره کاله مخکې یو تېر شوی یوناني فلسفي باوري دی چې فلسفه د انسان د حیرانۍ او څیرکۍ له امله رامنځته شوې ده. دده په باور ژوند انسان ته دومره حیرانوونکی و، چې هغه یې پوښتنې ته اړ کړ او له همدې پوښتنو فلسفي پوښتنې پخپله راپیدا شوې.

دا هر څه یوې شعبده بازۍ ته ورته دي. موږ مداري (شعبده باز) وینو چې ډول ډول کارونه کوي، خو په دې نه پوهېږو چې هغه یې څنگه کوي؟ له ځانه پوښتنه کوو، څه ډول یې له دوو سپینو دسمالونو سپینه سویه را و ایسته؟ مداري خپله خولۍ تولو ته ښیي، خالي ده، خو یو دم سپینه سویه ترې راوځي او منډې وهي، ډېر وخت انسان نړۍ ته د حیرانتیا او بې باورۍ په سترگه گوري.

د سوۍ په اړه، خو موږ په دې پوهېږو چې مداري وغولولو، زړه مو غواړي وپوهېږو چې دا کار یې څه ډول وکړ؟ خو د نړۍ په برخه کې دا

کار یو څه توپیر لري. پوهیږو چې نړۍ مداریګري او جادوګري نه ده، ځکه موږ پخپله د دې نړۍ جز یو. په حقیقت کې موږ همدې سوی ته ورته یو، چې د مداري له خولۍ را لویږو. له سوی سره مو په یو څه کې توپیر دی، هغه نه پوهیږې چې د مداري د لوبې وسیله ګرځېدلې ده، خو موږ پوهیږو چې د یوې مرموزې لوبې وسیلې یو. موږ په یوه لوبه کې ګډ یو او هڅه کوو چې په سور او تال یې پوه شو.

**نوټ:**

داسې هم کېدای شي چې ټوله نړۍ او کاینات د سپین سوی په څېر وبولو. موږ چې په دې کایناتو کې ژوند کوو، هغو وړو موجوداتو ته ورته یو چې د سپینې سویې د وېښتو او جسم په هره برخه کې ژوند کوو. په دې مېنځ کې فیلسوفان هڅه کوي، پر دې نریو وېښتو پورته وخیژي او د مداري سترګو ته په غړولیو سترګو وګوري.

سوفي تر اوسه دلته یې؟ ادامه لري...

سوفي خپل ټول قوت بایللی و، له خانه یې پوښتنه وکړه تر اوسه دلته یې؟ په یوه دمه یې لیک لوستی و، ان د یوه نفس ایستل یې هم په یاد نه و.

دا لیک چا راوړی؟ هغه سړی خو نه دی چې د هیلده مولرکناګ د مبارکۍ کارت یې په ناسمه پته استولی دی، ځکه پستي ټکټ او مهر یې درلود. خو هغه قهوه یي پاکټ او دغه دوه سپین پاکټونه چې د دوی په پستي بکس کې و، سره ورته وو.

سوفي خپل ساعت ته وکتل، پنځلس دقیقې درو ته پاتې وې، تر دوو نورو ساعتونو پورې یې مور راتلله. له خپل پټنځي راووته، بیا یې پست بکس ته منډه کړه، بنایي بل لیک پکې وي. همداسې وه، هلته یې په نامه یو بل قهوه یي پاکټ هم ایښی و. دا ځل یې ټول شاوخوا پسې وکتل، خو څوک نه لیدل کېدل، د ځنګله تر سر پورې یې منډه کړه، اوږد سرک یې تر سترګو تېر کړ. ناڅاپه یې داسې تر غوږ شوه لکه څوک چې په ځنګله

کې منډه وهي، خو باوري نه وه، ښه نو څوک چې د تېښتې پلان لري لاندې کول او څارل يې بې ګټې دي.
سوفي کور ته راو ګرځېده، دويم پوړ ته وخته. خان يې خپلې کوټې ته ورساوه، د چاکليټو او خوړو يو ډبلی يې، چې له ښايسته شګو ډک و. را واخيست، شګې يې پر غولي تشې کړې او دا دوه پاکټونه يې پکې کېښودل، ډبلی يې را واخيست، په منډه منډه يې خان بڼ ته را ورساوه. ډبلی يې په دواړو لاسونو کلک نيولی خپل پټنځي ته ورساوه. مخکې له دې چې سوري ته ننوځي شيرکان ته يې لږ خواړه په لوښي کې واچول.
پشې! پشې! پشې!
په پټنځي کې يې دويم قهوه يې پاکټ هم پرانيست په لوستلو يې لاس پورې کړ، په لومړيو کرښو کې يې ليکلي وو:
**حيرانوونکی موجود**
**بيا هم سلام!**
ته خو وينې، د فلسفې دا لنډه دوره، مړی مړی هضمېږي. په سر کې به څو نورو لومړنيو مطلبونو ته ورشو:
ما وويل يوازې هغه څه چې د ښه فيلسوف کېدو لپاره پکار دي هغه دا دي چې بايد د هېښتيا قوه ولرو؟ و مې ويل که نه؟ که مې نه وي ويلي اوس يې وايم. که غواړو چې ښه فيلسوف شو، نو بايد د هېښتيا قوه مو ډېره او پياوړې وي.
ماشومان دا قوه لري. دا د هېښتيا خبره نه ده. دوی په رحم کې څو مياشتې تيروي بيا نوې نړۍ ته سترګې پرانيزي. خو دوی چې هر څومره ستريږي د هينېتيا قوه بايلي، پوهيږې ولې؟
ماشومانو که خبرې کولای شوی، لومړنی خبره به يې دا وه چې څومره عجيبې نړۍ ته راغلي دي. ليدلي به دې وي څنګه هر څه ته اريان اريان ګوري، دوی کوښښ کوي هر څه تجربه کړي، نو څکه هر څه ته لاس اچوي.

ورو ورو کلمې زده کوي. هر وخت چې سپي ويني، وايي، تو، تو. ښکته پورته کېږي، سپي ته لاس ښوروي، تو، تو، تو! چيغې وهي. موږ چې يو څه لوی يو، نو د ماشوم له دومره شوق او ذوق سترې کېږو. ښايي په دې پوه نه شو چې ماشوم د څه لپاره دومره چيغې وهي. ښايي ووايو، چې بلا بلا چوپ شه! موږ ولې دومره هيښ نه شوو؟ ځکه سپي مو ډېر ليدلي دي.

د ماشوم دا چيغې او پورته پورته غورځېده، سپي ته ناړې وهل، تو تو ويل، ښايي سل ځله ادامه پيدا کړي، چې په دې خبره پوه شي چې سپي او خره ته چيغې وهل نه دي پکار؛ بلکې سړی يې له څنګه په آرامۍ بايد تېر شي. نو له همدې امله ماشومان له خبرو نه مخکې، يا (زما خبره) د فلسفي پوښتنو ژبه پيدا کړي، وختې بيا له نړۍ سره عادت شوی وي او هر څه ورته عادي ښکاري.

خو که زما د زړه خبره اورې، وايم چې افسوس پر دې حالت!

ګرانې سوفي! زما زړه هم دې خبرې ته نارام دی، هسې نه چې ته هم له هر څه سره عادت شې، دارېږم د زرګونو نورو انسانانو په څېر تربيه واخلې، چې په نړۍ کې هر څه عادي وګڼې. نو د باور لپاره تر اصلي درسونو وړاندې، يو دوه فکري ازمويني اخلو:

که يوه ورځ ځنګله ته سيل ته ولاړه شې. ناڅاپه دې يوه آسماني وړه سپوږمکۍ مخې ته درځي. يو کوچنی فضايي موجود ترې راوځي. پر ځمکه درېږي، تا تر سر تر پښو ګوري.

ذهن ته به دې کومه خبر درشي؟ وارخطا کېږه مه مهمه پوښتنه نه ده. خو تا تر اوسه داسې فکر کړی چې ته هم ښايي يو فضايي موجود وې؟

دا به نامکنه خبره وي چې موږ دې د ځمکې پر سر له فضايي مخلوقاتو سره مخامخ شو. البته تر اوسه ساينس په دې نه دی برياله شوی چې له ځمکې بهر د ژوند څرک پيدا کړي. دوی پلټنې کوي چې په نورو ستورو کې د ژوند څرک ولګوي. خو دا بيا نامکنه نه ده چې يوه ورځ له ځان

سره مخامخ شي، ښايي يوه ورځ د ونو مېنځ کې وګرځې، ناڅاپه ودرېږې او ځان بل ډول وويني. په دې فکرونو کې ډوبه شي چې زه ځانګړى موجود يم، زه له رازونو ډک مخلوق يم.

ته به وايې چې له کوم جادويي خوبه را پاڅېدلې يې، له ځانه به پوښتنه کوې، زه څوک يم؟ پوهېږې چې د کايناتو په مېنځ کې به يوې بلې خوا ته لوېږې، خو کاينات څه شی دي؟

که له داسې يوه حالت سره مخ شوې، نو پوه شه چې تا د بلې سيارې کوم موجود موندلی دی. نه يوازې بل موجود دې موندلی، بلکې د وجود په تل کې به دې يو احساس پيدا شي، پوه به شې چې ته هم يو ځانګړی موجود يې.

په خبره خو مې پوهېږې سوفي؟ يو بل فکري ازميښت به هم وکړو.

يو سهار؛ پلار، مور او ددوی کوچنی زوی پر يوه ميز چايو ته را غونډ دي. څو شېبې وروسته مور ځي چې لوښي پرېمنځي. پلار؛ هو پلار يې، الوځي. پلار په چت کې يوې او بلې خوا ته ځي، ماشومان ارام ناست دی او په خوند يې ننداره کوي. اوس نو ته ووايه چې ماشوم به څه وايي؟ وايي به چې واه پلار ګوره په هوا دی، ماشوم حيران شوی دی، خو هېره دې نه وي چې ماشومان هر څه ته هېښنيږي د هېښتيا قوه يې ژوندۍ وي.

پلار يې تل عجيب کارونه کوي او ننی الوت يې هم له همدې کارونو څخه دی. کله ناکله ماشين را واخلي، ږېره وخريي او غټ مخ ترې را وباسي، کله ناکله د بام سر ته وخېژي او د تلويزيون آنتن سم کړي. ځينې وخت بيا د موټر له لاندې نه تور مخ راووځي. خو له دې ټولو سره اوس نو د مور وار دی. هغه د ماشوم غبر او غاړې اوري، ناڅاپه مخ را اړوي، ګوري چې خاوند يې په هوا کې ګرځي. غبرګون به يې څه وي؟

له ډېرې وېرې چيغې وهي. د مربا بوتل يې له لاسه لوېږي. وار خطا کېږي، پلار چې له چته را کوز شي اړ دی اوس نو دا وېرېدلې مېرمن ډاکټر ته بوځي. د ماشوم او مور غبرګونونو ولې دومره توپير درلود؟

په یاده لره چې دا شیان په عادت پورې تړلي دي. موږ په دې پوهېږو چې انسان الوتلای نشي. ماشوم بیا تر اوسه په دې خبره نه پوهېږي. هغه تر اوسه په دې نه دی خبر، چې په نړۍ کې کوم کارونه انسان کولای شي او د کومو وړتیا نه لري. سوفي زموږ سیاره؛ فکر کوئ چې زموږ سیاره د هغه کار وړتیا لري چې کوي یې؟ ته پوهېږې چې دا ټول کاینات په فضا کې لامبوځن دي.

موږ داسې عمر ته رسېږو چې د هر څه په اړه پوښتنې کوو. هر څه مو چې ځان ته راکاږي پر هغه خبرې کوو، خو متاسفانه داسې ځای ته رسېږو، چې له هر څه سره عادت کېږو، هر څه راته عادي او ساده ښکاري. د ودې پر وخت د هیښتیا قوه بایلو، نو په دې توګه له یوه مهم شي محرومېږو. نو فیلسوفان هڅه کوي چې دا قوه بېرته موږ ته را وګرځوي. دوی غواړي هغه څه را ژوندي کړي چې زموږ د وجود په تل کې موږ ته وایي (ژوند ستر راز دی). نو موږ دا مسایل مخکې له دې چې فکر پرې وکړو، په اړه یې ولولو، په تجربو یې زده کوو.

که لږ په ډاګه ووایم: سره له دې چې فلسفي مسایل په موږ ټولو پورې اړه لري، خو موږ ټول فیلسوف کېدای نه شو. د نړۍ ډېر خلک د ورځني ژوند په بوختیاوو کې دومره ډوب شي، چې د هیښتیا په نامه یې څه په وجود کې پاتې نه وي. دوی (د سوی د وېښتو مېنځ ته ننوځي، هلته ارام پرېوځي او د خپل عمر پاتې برخه هملته تېروي).

خو د یوه ماشوم لپاره نړۍ او د هغه موجودات نوي شیان دي. دا شیان یې حیرانوي، لویان بیا داسې نه دي. ډېر یې نړۍ ته په عادي سترګه ګوري.

دا نو هغه ځای دی چې د فیلسوفانو او عادي خلکو توپیر پکې له ورایه ښکاري. فیلسوف ځان پوره له دې نړۍ سره ځان نه روږدی کوي، نړۍ د هغه په نظر تل نامعقوله ده، د ده په نظر نړۍ حیرانوونکې او له رازونو ډکه ده. په دې توګه نه ویلی شو چې فیلسوفان او ماشومان یو ګډ اړخ لري.

فیلسوف ټول عمر د ماشوم په څېر حساس دی. نو سوفي ته هم باید خپله

پرېکړه وکړي. تـه هغـه ماشـوم يـې چې تـر اوسـه ورتـه لا نـړۍ نـه ده عـادي شوې، که هغه فيلسوف يې چې نړۍ به هېڅ وخت ورته عادي نه شي؟
که دې سر ښوروې او وايې چې نـه يـو يـې نـه بـل، نـو بيـا پـوه شـه چې لـه خپلې نـړۍ سره دې عـادت شـوې يـې. نـور نـو دا شـيان تـا نـه شي حيرانـوی.
خبره دې وي چې سر دې پـه خطـر کـې دی! د فلسـفې د زده کـړې دا دوره د همدې لپـاره ده، غـواړم تـا نـوره هـم کلکـه کـړم. زه تـا تـه د دې اجـازه نـه درکـوم چې د عـادي او بـې تفاوتـه کسـانو پـه ليکـه کـې ودرېـږې. زه غـواړم چې ته څيرک او هڅاند ذهن ولرې.
دا درسـونه وړيـا دي. نـو تـر هغـه دې چې درسـونه نـه دي خـلاص کـړي، معـاش بـه هـم نـه در نـه اخلـم، خـو د دې دورې پـه مېـنځ کـې زده کـړه پرېښـودلی شـې. کـه دې درس پرېښـوده؛ نـو بيـا مـا تـه پـه پسـتي بکـس کې يـو ليک کېږده، يـوه ژونـدی ښـنگښـه يـا بـل شـين شـی هـم ورسره کېږده، خو پـام دې وي چې ليک رسوونکی و نه ډاروې.
خو لنډه بـه يـې ووايـم: سـپينه سـويه مـداري لـه خـولۍ را وځـي، نـو دا چې سويه ډېره سـتره ده، نـو دا مـداري گـري ميلياردونـه کالـه اوږدېږي. بنيادم، د دغې سـويې د نريـو وېښـتو پـه څوکـه نـړۍ تـه راځـي، خـو د دې نـړۍ سـتروالي تـه حيـران دی. ورو ورو ځـي د سـويې د وېښـتو مېـنځ تـه، څـومره يـې چې عمر ډېر شي همـدومره د وېښـتو مېنځ تـه ورښـوييږي، همدلتـه پرېـوځي او نـور نو ځان د نـړۍ لـه خطرونـو سـاتي. دی نـو اوس زړه نـه کـوي چې د وېښـته ماتېدونکې او نـرۍ څـوکې تـه وخېـژي. يـوازې فيلسـوفان دي چې ځان دغـه خطر تـه ورکـوي، چې د ژبې او ژونـد بېلـې خـواوې را وسـپړي. پـه دې مېـنځ کـې ځينـې لـوېږي هـم، خـو ډېـر دي چې ځانونـه پـه تېـږو او کمـرو پـورې کلک نيسي-او هغـو کسـانو تـه لـه پورتـه چېغـې وهـي، چې د ښـځې تنور يـې سور دی. دوی چېغې وهي:
ښاغلو او اغلو!

موږ په فضا کې د ځمکې او آسمان تر منځ خوړند يوو. خو لاندې يې ځوک په کيسه کې نه دي. په خپلو منځو کې وايي (څومره مزاحم خلک دي!) دوی خپلې معمولي خبرې غځوي. هغه ګرد لوښی ما ته راکړه، نن د ونډو بيه څومره وه؟ رومي بانجان کيلو په څو دي؟ خبر شوي يې، پرنسس ديانا بيا اميندواره ده؟

ماسپښين چې د سوفي مور کور ته راغله، د نجلۍ پر خوله مهر لګېدلی و. د پټ فيلسوف ليکونه په همغه دبلي کې په پټنځي کې پټ وو. سوفي هڅه کړې وه چې د ښوونځي کارونه يې خلاص کړي، خو بې پايلې وه، ځکه ټول فکر يې په همدې خبرو بوخت و.

هېڅ وخت يې دومره ژور فکر نه وکړی. اوس ماشومه نه وه، خو دومره لويه شوې هم نه وه. سوفي پوه شوې وه، چې نوې د سوی په نرمو او تودو وېښتو کې لاندې ښوييږي، د هماغې سويې چې د نړۍ د مداري له خولې راوتې ده. خو فيلسوف يې مخه نيولې وه. دغه نارينه، يا ښځې، له ورمېږه کلکه نيولې او د وېښته هغه ځای ته يې بېرته راخېژولې وه چې په ماشومتوب کې وريانډې ګرځېدلې وه. دلته نو د وېښته نری نری ځوکه وه، فکر يې کاوه چې دويم ځل نړۍ ته راغلې ده.

فيلسوف هغه ژغورلې وه، په دې کې شک نشته، ورک ليکوال هغه د ورځني ژوند له ډېرو بې مانا خبرو او مسلو ژغورلې وه.

په پنځو بجو يې چې مور کور ته راغله، سوفي ور منډه کړه، له لاسونو يې ونيوه، په راښکلو راښکلو يې تر سالونه ورسوله، پر نرمه څوکۍ کېناستل، و يې ويل:

- مورې! ژوند حيرانوونکی نه دی؟

مور يې دومره حيرانه شوه چې هېڅ يې ځواب ور نه کړ، کله به چې هغه کور ته راغله سوفي به تل خپل درسونه لوستل. و يې ويل:

- ام، هو نو کله ناکله همداسې وي.

- کلـه ناکلـه؟ فکـر نـه کـوې چـې د نـړۍ موجوديـت بيخـي عجيـب دی؟
- سوفي پرې مې ږده، له دې خبرو لاس واخله.
- ولې؟ ته به فکر کوې چې په نړۍ کې هر څه سم دم دي؟
- ام، هو نو، لږ او ډېر سم دي.

سـوفي پـوه شـوه چـې فيلسـوف رښـتيا ويـلي وو. (لويـان، نـړۍ عـادي ګڼـي، دوی د سـويې پـه خـوب ويـده دي، يـوازې د ژونـد ورځنـي کارونـه پـر مـخ بيايي.)

- تـا دومـره لـه نـړۍ سره عـادت شـوې يـې، چـې هـېڅ شـی درتـه حيرانوونکي نه دي.
- دا څه چټيات وايې؟
- وايم هر څه تا ته عادي شوي دي. دې ته وايي مرکب جهل!
- سوفي حق نه لرې، له ما سره داسې خبرې وکړې.
- ښه سمه ده، بل ډول وايـم. تـه د سويې په وبښتو کـې، چـې د نـړۍ د مـداري لـه خـولۍ را لوېـدلې، ويـده يـې. څـو دقيقـې وروسـته کچـالو پخـوې، بيـا ورځپـاڼې لـولې، نـيم سـاعت چـورت وهـې، وروسـته ورځې د تلويزيون خبرونه ګورې.

د مور خبره يې خپـه شان تـه شـوه، پورتـه شـوه، پخلنځـي تـه ولاړه، کچـالو يـې سـپين کـړل، بيـا سـالون تـه راغلـه او دا ځـل نـو سـوفي راوسـته، پـر څـوکۍ يـې کېنوله. څنګه يې چې شونډې وخوځولې، پوه شوه چې مسله جدي ده.

- د يـو څـه پـه اړه درسره خـبرې غـواړم. لـورې! پـه نشـه يـې توکـو خـو به نه يې روږدې شوې؟

سـوفي نـږدې پـه زوره خنـدلي وو، خـو پـوه شـوه چـې مـور يـې ولـې داسـې عجيبې پوښتنې کوي.

- عقل دې کم شوی؟ ښه نو ډېره کم عقله يې!

پـه دې شـېبه نـو د نشـه يـي توکـو او سـپين سـوی پـه اړه نـورې خـبرې و نـه شوې.

# اسطورې

## ..د خير او شر د قوتونو تر منځ بې ثباته تعادل....

په سبا يې سوفي ته ليک نه و راغلی. په ښوونځي کې يې زړه تنګ شو. په تفريح کې يې هڅه وکړه چې د يووانا زړه خپه نه کړي. پر لاره يې ژمنه وکړه چې د ځنګل له وچېدو سره سم به ځي او هلته به لوبې کوي.

لار لکه پېړۍ هومره وربانـدې اوږده شوه، خو په پـای کې يې ځان کـور او پست بکس ته را ورساوه. سوفي هغه ليک پرانيست چې د مکسيکو مهر وربانـدې لګېدلی و. د پـلار يې و، لـيکلي يې وو، چې په کـور پسې يې ډېر زړه خپه دی. دا يې هم ويـلي وو، چې ځنګـه يې د ډېرې ستر افسر-ته په سطرنج کې ماتې ورکړې ده. زياته کړې يې وه، چې په رخصتيو کې يې له ځان سره راوړي ټول کتابونه لوستي دي.

هو، هو، پخپله همدا ليک و، قهوه يي پاکټ او پر ځت يې د سوفي نوم. د ښوونځي بکسه او نور ليکونه يې په کور پرېښودل او خپل پټنځي ته يې منډې کړه. تازه ټايپ شوي ليکونه يې له پاکټه را وايستل او په لوستلو يې پيل وکړ.

# د اسطوري نړۍ انځور

**سلام سوفي!** کارونه مو ډېر دي نو له واره به پيل وکړو.

له فلسفي مو موخه، د فکر کولو نوې بڼه ده، چې تر ميلاد نېږدې ۶۰۰ کاله مخکې په يونان کې پيل شوې ده. تر هغې وړاندې خلکو د هر ډول پوښتنو ځوابونه په بېلابېلو مذهبونو کې لټول. دا ديني توضيحات د اسطورو له لارې له يوه نسل بل ته لېږدول کېدل. اسطوره د خدايانو په اړه داستانونو ته وايي او ددې په اړه افسانې دي چې نړۍ ولې په اوسنۍ بڼه ده؟

د زرګونو کلونو په بهير کې د فلسفي موضوعاتو په اړه سلګونه اسطوري توضيحات د نړۍ په ګوټ ګوټ کې ورکول شوي دي. د يونان فيلسوفانو هڅه وکړه چې ثابته کړي، دغه توضيحات د باور وړ نه دي او په اړه يې فکر کول پکار دي.

ددې لپاره چې د لومړنيو فيلسوفانو په خبره پوه شو، ښه به وي چې لومړی اسطورو ته ورشو. چې ووينو خلکو په خپلو اسطورو کې د نړۍ په اړه څه ډول توضيحات ورکړي دي. ډېر به لرې نه ځم زه به د شمال د خلکو يوه اسطوره د بېلګې په توګه درته راوړم.

حتما به دې د ثور[1] نوم اورېدلی وي. مخکې له دې چې مسيحيت ناروې ته راشي، خلک باوري و چې ثور خدای پر يوه بګۍ سپور دی او دوې وزان دا بګۍ يا ګاډۍ راکاږي، په دې توګه نو تول اسمانونه راګوري. همدا چې خپل ګورز په اسمان کې وښوروي، نو تالنده او برېښنا ځنې پيدا کېږي. د تندر کلمه د ناروې د خلکو په ژبه کې د ثور د غرهار[2] په

---

[1] Thor (د ناروې په اسطورو کې د تالنده او برېښنا خدای)

[2] Thor-don

مانا ده. په سویډن کې د تندر کلمه په اسمانو کې د خدای د الوت په مانا ده.

د تندر او برېښنا پر مهال باران راځي، چې د وایکینګ بزګرانو ورته سخته اړتیا درلوده، نو له همدې امله یې ثور د حاصلخیزۍ او ګټو وټو خدای باله.

دوی ددې خبرې لپاره افسانه جوړه کړې وه، ویل به یې چې ثور خپل ګورزپه هوا کې نخوي، نو تالنده او برېښنا را پیدا شي. په دې توګه نو بارانونه وشي او ځمکې یې ښه حاصل ورکړي.
دا چې بوټي او ونې څه ډول وده کوي، څه ډول حاصل کوي او څه ډول یې حاصل ډېرېږي؟ خلکو ته معلومه نه وه. خو دا ښکاره خبره وه چې يادې خبرې له باران سره هرو مرو اړیکه لري. خو دا چې دوی فکر کاوه، باران د ثور په لاس کې دی؛ نو هغه په ټوله اروپا کې تر ټولو محبوب او ستر خدای بلل کېده.
یو بل څه هم و چې د ثور ارزښت یې ډېر کړی و. هغه د ټولې نړۍ له نظم سره اړیکه لرله. واکینګیان باوري وو، چې موږ ټول انسانان په یوه ټاپو کې ژوند کوو، شاوخوا اوبه دي او دا ټاپو په پر له پسې توګه له ګڼو خطرونو سره مخ ده، خو خدایان موږ له دغو خطرونو ساتي. دوی د نړۍ د وچې برخه د منځنی[1] خدای د حاکمیت سیمه بلله. په دې برخه کې ورسره نورو خدایانو هم مرسته کوله. د یاد خدای له قلمروه بهر د ورانکارو دیوانو د واکمنۍ سیمه وه. د افسانو له مخې دوی د نړۍ د ورانۍ او بربادۍ لپاره تل پلانونه جوړول او هڅه یې کوله چې ورانه یې کړي. دوی دا دیوان اهریمني او د سرکشانو قوه یا هاویه بلله. نه یوازې په اروپايي؛ بلکې د نړۍ په ډېرو اسطورو کې د خیر او شر د قواوو تر منځ ډېر وخت انډول نه وي.
یوه لار چې په مرسته یې دېوانو د منځني خدای په قلمرو کې ستونزې جوړولای شوې دا وه چې د حمل (امیندواري) ملکه یا فریبا وتښتوي. که

---

[1] Midgard

دوی په دې کار بريالي شي، نو په دې توګه به په ځمکه د هر څه قحطي راشي، نه به کروندو کې څه وتوکيږي او نه به کومه ښځه ماشوم راوړي. نو خدايانو به له ديوانو سره ددغه کار د مخنيوي لپاره تل مبارزه کوله.
ثور له ديوانو سره په مبارزه کې ستر نوم درلود. د هغه ګورز به هم باران راکوزاوه او هم به يې د ديوانو له بغاوت او ګډوډيو سره مبارزې کولې. دغه ګورز ثور ته ډېر قوت ورکړی و، يو وخت يې په ګورز ديوان وهلي او وژلي وو. سره له دې چې ثور ډېر پياوړی خدای و، خو ددې وېره هم ورسره وه چې که يې ديوان کومه ورځ ګورز يوسي؛ نو ده ته به هېڅ پاتې نه شي.
ياده کيسه مې ځکه وکړه چې پوه شې، پخوانيو پر افسانو څومره باور درلود. دوی له څه لارو هڅه کوله څو د خير او شر تر منځ د اندول لپاره افساني جوړې کړي. دوی په دې توګه خلکو ته ښوده چې په نړۍ کې خير او شر څنګه هميشه په غورځو پرځو دي. دغه خبرې بيا فلسفي رد کړې.
زما موخه يوازې توضيحات هم نه وو.
کله به چې د طاعون او وچکالۍ په څېر بلاوې، پر ځمکه را نازلې شوې؛ نو انسانانو به داسې نه کول چې ارام پښه پر بله پښه واړوي او لاس تر زنې کېني؛ بلکې د خدايانو تر مداخلې پورې به پخپله لاس په کار کېدل. دوی به د شر پر ضد پخپله جګړه کوله. دوی به ددې کار لپاره ډول ډول مراسم جوړول، ځانګړي ځايونه به يې لرل او د ځانګړو خدايانو په لمانځنه به يې وخت تېراوه.
تر ټولو مهم مذهبي مراسم د نورسمانو (*Norseman*) په عصر- کې وو، په دې وخت کې به خلکو نذرونه منل او د هغه خدای په دربار کې به يې قرباني ورکولې چې اړتيا به يې ورته لرله، ددوی په باور نذرونو د خدای قوت زياتولای شوی. نو انسانانو بايد نذرونه منلي او قرباني کړې وای،

چې د اړتیا وړ خدای پیاوړی شوی وای او د شر خدای یې مات کړی وای.

د خپلو موخو د تر لاسي لپاره، به دوی قرباني کولې. د قرباني موخه د یوه حیوان حلالول و او همدا راز د ښور نذر بیا د وزو قرباني کول وو. د اودین[۱] نذر به بیا کله کله ان انساني قرباني غوښته.

ددې اسطورو په ډله کې تر ټولو مشهوره اسطوره د اروپا په شمال کې له آیسلنډي شعرونو راوخې. د ثبریم وژنې په نامه یو مشهور آیسلنډي شعر دی، چې دا افسانه پکې راغلې ده.

په دې روایت کې یوه ورځ ښور له خوبه را پاڅي، شاوخوا وګوري چې ګورز یې نشته دی. ږیره او لاس یې له غوسې ربړدي. خپل نېږدې ملګری لوکي ورسره یو ځای کوي او فریبا ته ورځي. له ملکې غواړي چې لوکي ته خپل وزر په پور ورکړي، چې دی ولاړ شي او ددیوانو په ځمکه کې وګوري چې دوی د ښور ګورز غلا کړی دی که نه؟

لوکي د دیوانو ځمکې ته ورځي او هلته ثبریم ویني، هغه له واره په غټو غټو خبرو پیل کوي، چې ګورز یې اوه طبقې تر ځمکه لاندې ښخ کړی او څو چې فریبا نه وي ورته نکاح شوې، تر هغه به خدایان د ګورز رنګ هم ونه ویني. دا نو داسې خبره وه چې د ځمکې د خدایانو لپاره د منلو نه وه، ځکه په دې سره به د بارداری الِهه د دیوانو لاس ته ورتله او ځمکه به وچه شوه. نه به ونې حاصل کوي او نه به هم، مینډې ماشومان زېږوي. کار نو ډېر خطرناک ځای ته رسېدلی و.

د افسانې له مخې لوکي د خدایانو ځمکې ته راځي. اِلهې فریبا ته وایي چې د واده کالي درسره واخله، ځکه له دیو سره باید واده وکړې او پرته له دې بله چاره نشته ده. فریبا غوسه کېږي او وایي چې که له دیو سره واده وکړي خلک به وایي، دا ګوره لکه چې بل انسان پر ځمکه نه و، چې له دیو سره واده ته مجبوره شوه.

---

[۱] Odin

په دې وخت کې يو بل خداى هيمدال[1] يو فکر کوي، هغه وړانديز کوي چې د فريبا د واده کالي دې ثور واغوندي، خپل وېښته دې پورته واړوي، دوې گردې ډبرې دې پر خپله سينه تر جامو لاندې وتړي، چې سينه يې د ښځو په شان ښکاره شي او بيا دې نو ديو ته ورشي. د ثور دا فکر چندان خوښ نه شو، خو په پاى کې راضي کېږي؛ ځکه دا يوازينى لار وه چې هغه يې خپل گورز ته رساوه.

نو ثور ته يې د واده جامې ور واغوستې او لوکي ثور تر مټ نيسي-او ثبريم ته ورځي. که د نن ورځې په ژبه ووايو، دوى د اوس وخت د ترهگرو ضد ډلې په څېر د خدايانو په لارښوونه، ځي چې خپله مخالفه ډله ماته کړي. دواړو د ښځو جامې اغوستې دي او دا پلان يې جوړ کړى چې ثور خپل گورز ته ورسوي او دديوانو دا ځل نور شنډ کړي.

دوى دواړه د ديوانو قلمرو ته ننوځي. ديوان نو د واده تيارى نيسي- د ماښامنى پر مهال نو ناوې (ثور) بشپړ غويى غواړي او خوري يې، درې غټ غټ لوښي اوبه څښي. د ديوانو پادشاه حيران شي، چې دا په څه بلا اوښتې دى، که لږ نورې هم ثور همداسې کړي واى، نو په دام کې به لوېدلى واى؛ خو لوکي ووېل، فريبا د ديوانو د ځمکې ليدو ته دومره خوشاله وه، چې پوره يوه اونى يې هېڅ نه دي خوړلي؛ نو ځکه يې خوراک يو څه زيات دى تاسې يې وبښئ.

په دې وخت کې ثبريم پاڅي او غواړي چې د ناوې مخ ووينې، هغه غوښتل چې ښکل يې کړي، حيران شي، گوري چې سترگې يې مخامخ د ثور په غېږ، سرو او غوسه ناکو سترگو کې ښخې دي. ثور بيا په دې وخت کې خان را رسوي او وايي فريبا پوره يوه اونى خوب نه دى کړى؛ ځکه يې سترگې سرې دي. په دې وخت کې د ديوانو شاه امر کوي چې گورز راوړى او د واده د مراسمو پر وخت يې د ناوې په غېږ کې کېږدئ.

---

[1] Heimdall

ګـورز چـې د ثـور لاس تـه لـوېږي تيـکـرى غورځـوي او پـه زوره زوره خاندي، لـومړى وار پـر ثـريم کـوي، بيـا د پادشـاه پـر نـورو خپلـو خپلوانـو وارونـه کوي او وژني يـې. د ګـورز تښـتوني دا پيښـه پـه پـوره خيريـت خـو سـختۍ پـاى تـه رسـيږي. ثـور چـې د خـدايانو جمـز بانـډ و، يـو ځـل بيـا پـر شـيطاني قوتونو بريالى شو.

سـوفي دا د ثـريم د وژلـو د اسـطورې لنډيز و، خـو حقيقـي مانـا بـې څـه ده؟ دا کيسه يې يـوازې خوند تـه نـه ده جـوړه کـړې. دوى غوښـتل يـو څـه روايـي، يـو تفسير يې کېداى شي داسې وي:

چـې وچکـالي شي خلـک هڅـه کـوي د بـاران د نـه وريـدو علـت پيـدا کـړي، ددوى پـه نظـر يـې دليـل دا دى چـې د ثـور ګـورز ديوانـو تښـتولى دى. يا بې هـم ښـايي موخـه دا وه چـې د کـال فصـلونه څنګـه اوړي را اوړي؛ پـه ژمـي کـې څکـه طبيعـت مـري يـا ويـده کېـږي، چـې ديوانـو د ثـور ګـورز تښـتولى وي، خـو پـه پسرلـي کـې يـې بېرتـه څنـې راوړي؛ نـو بارانونـه پيـل شي، دغو اسطورو په دې توګه هڅه کوله د خلکو پوښتني توجيه کړي.

اسـطوره يـوازې توضـيح او توجيـه نـه وه، خلکـو بـه لـه دې اسـطورې سره پـه تـړاو خپـل مـذهبي مراسـم تـر سره کـول. دوى بـه د وچکـالي د لـرې کولـو او د حاصـلاتو د ډېرولـو لپـاره اسـطوري ننـدارې تـر سره کـول. د بېلګـې پـه توګـه يوه کس بـه پـه کـلي کـې د نـاوې کـالي واغوسـتل، دوې ډبـرې بـه يـې پـه سينه پـورې وتړلـې او داسـې بـه يـې ښـوده، چـې ګـواکي ګـورز لـه ديوانـو اخلي. نو خلـک بـه بېکـاره نـه کېناسـتل، د خپلـو کرونـدو د ژغورلـو او بـارانونو د کېدلو لپاره به يې دغه ډول مراسم جوړول.

دا ډول مراسـم د نـړۍ پـه ډېـرو مـذهبونو کـې ليـدلاى شـو، چـې دوى بـه پـه دې توګـه مـذهبي مراسـم د خلکـو ننـدارې تـه ايښـودل او د کـال پـه بېلـو فصـلونو کې به يې خپلې غوښتنې له دې لارې پوره کولې.

دا پـه شـمال کـې د نـاروې د خلکـو د اسـطورې يـو بنسـټ و، خـو دا يـوازينۍ کيسـه نـه ده، چـې د ثـور پـه اړه ليکـل شـوې ده. لسـګونه نـورې هـم شـته دي.

همدا شان د اودین[1]، فریور[2]، فریبا، هودر، بالدر[3] یا نورو خدایانو په اړه هم اسطوري کیسې شته، چې یا لیکل شوې او یا اوس هم د خلکو په حافظو کې دي. دغه ډول افسانې او پر هغو باور د نړۍ په گوټ گوټ کې عادي خبره وه، تر هغو چې فیلسوفان راغلل او دا لړۍ یې بنده کړه.

په یونان کې د فلسفې د نوي پیدایښت په وخت کې خلک پر اسطورو باوري وو. دوی هم نړۍ ته له اسطوري زاویې کتل. د خدایانو کیسې پېړۍ پېړۍ له یوه نسله بل ته راغلې وې. د یونان خدایان ډېر وو، زیوس، آپلون، هېرا، آتنه، دیونوسوس، اسکلیپوس، هر اکلیس، هفایستوس او نور یې د بېلگې په توگه یادولای شو.

تر میلاد کابو اووه سوه کاله مخکې هومر او هسیودس ډېری یوناني اسطورې له خلکو واورېدلې او ولیکلې. دې کار نوې اوضاع رامنځته کړه. اسطورې چې په لیک بدلې شوې اوس نو پرې بحث کولای شو.

د یونان لومړنیو فیلسوفانو د هومر په اسطوره لیکنه پورې خندل او نقد کولې یې. دوی به ویل د یونان ډېر خدایان لکه انسانان داسې دي، د خپل زړه کار کوي، وعده خلافي کوي ان قتل کوي، نو د لومړي خل لپاره دوی دا خبره وکړه چې اسطوره یوازې د بشر ـ لیدلوری دی، نه د خدایانو حقیقي کیسې.

له دې ډلې یو کس کسنوفانس و، هغه تر میلاد ۵۷۰ کاله مخکې ژوند کاوه. هغه به ویل انسان خدایان په خپل تصور کې جوړ کړي دي. انسان گومان کوي چې خدایان هم پیدا شوي دي، لکه موږ، داسې جامې اغوندي او خبرې کوي. د حبشې خلک فکر کوي چې خدایان تور دي او پلنه پوزه لري، د تراکیا د خلکو په باور خدایان لوړ دي او آبي سترگې

---

[1] Hoden (په پخوانیو اسطورو کې د ستر خدای روند زوی)

[2] Preyr (په پخوانیو اسطورو کې، د سولې او نیکمرغۍ خدای)

[3] Baldar (په پخوانیو اسطورو کې د ستر خدای بل زوی)

لري، كه اسونو او نورو حيواناتو دا وړتيا لرلى چې د خداى رسامي وكړي نو خداى به يې په خپله ښه رسماوه.
په دې وخت كې يونان ګڼ ځايونه تر خپلې ولكې لاندې راوستل. دوى ستره امپراطوري جوړه كړې وه. تر خپل لاس لاندې ښارونو كې به يې پر بېوزلو خلكو سخت كارونه كول. شتمن بيا وزګار و، چې سياست او نور ستر كارونه وكړي. دوى به خپل ټول كار په سياست، فرهنګ او تجارت لګاوه.
په دې ښارونو كې داسې لاره جوړه شوه چې هر چا د څه ويلو حق درلود. د فكر د بيان نوې ښه رامنځته شوه. دوى هره يوه ويلاى شول، چې ټولنه څنګه منظمه كړو او ښارونه څنګه جوړ كړو. په دې توګه يې نو اسطورو ته له ورتګ پرته د خپلو كارونو پر سمبالتيا فكر وكړ. دوى نو اوس فلسفي پوښتنې سره كولې.
دا نو هغه مرحله وه چې د فيلسوفانو په باور اسطوري فكر په تجربي او عقلي فكر واوښت. د يونانيانو د لومړنيو فيلسوفانو موخه دا وه، چې طبعي پېښو ته طبعي دلايل وړاندې كړي؛ نه تر طبيعت لوړ خيالي دليلونه.
سوفي له خپلې وړې كوټې ګې ووتې، په باغ كې يې يوه دوره وكړه، غوښتل يې، هغه څه هېر كړي چې په ښوونځي كې يې زده كړي وو.
په باغ كې را لويه شوې وه، بې له دې چې د طبيعت په اړه په څه پوه شي؛ پوه شوه چې پسرلى څه شى دى؟ د باران د ورېدو يې توجېه نه شوى كولاى؟ سهار سهار به يې د واورو د ويلېدو او د لمر را پورته كېدو په اړه په ځلونو خيالي تصويرونه نه وي جوړ كړي؟
هو په ځلونو يې هڅه كړې وه، ځان يې داسې قانع كړي چې باران د واورې د ويلېدو له امله اوري، يا دې ته ورته نور تصورونه.
د پسرلي په اړه يې هم دا افسانه په ذهن كې وه.
ژمي ټوله وچه ځمكه په خپلو منګولو كې نيولې وه. بدرنګ موريات، ښكلې شاهزادګۍ سيكيتاى په ساړه زندان كې بندي كړې وه. يو سهار

مهال شاهزوی براواتو راغی، نجلی یې له ځان سره بوتله، سیکیتای دومره خوشاله شوه چې په چمنونو کې یې نڅا پیل کړه، ټول هغه شعرونه یې زمزمه کړل چې په ساړه زندان کې یې جوړ کړي وو. ځمکه او ونې دومره تړې اغېزمنې شوې، چې ټولې واورې په اوښکو بدلې شوې، لمر سر راپورته کړ او ټولې اوښکې یې وچې کړې. مرغانو د سیکیتای په تقلید سندرې پیل کړې او کله چې شهزداګۍ خپل وېښته وارول، ځو وېښته یې پر ځمکه ولوېدل او د ګلانو پر دښته بدل شول.

د سوفي دا کیسه ډېره خوښه وه، خو ویل یې افسوس چې د کال د فصلونو په ادلون بدلون پوهېږم که، نه په دې افسانه به مې باور کړی و.

پوه شوه چې انسانانو تل هڅه کړې، چې په طبیعت کې د پېښېدونکو بدلونونو لپاره دلایل راوړي. دوی له توجیهاتو پرته ژوند نشي کولای. هغه همدا راز پوه شوه چې ټولې اسطورې د بې علمی په وخت کې جوړې شوې دي، یانې انسانانو هېڅ شی نه و کشف کړي؛ نو ځکه یې په داسې افسانو ځانو ته قناعت ورکاوه، یا ویلی شو چې ځان یې غولولی دی.

# طبعي فيلسوفان

**هرو مرو يو شی له بل شي پيدا شوي دي....**

مازيگر يې مور لـه كاره را وگرځېده. سوفي پـه كـوچ كې ناسته وه. فكر يې كـاوه چې د فلسفې درس هـرو مـرو د هيلـده مولركنـاگ لـه ليـک سره اړيكـه لـري. هيلـده خـو بـه مـو پـه يـاد وي هغـه نجلـی وه، چې پـلار يې سوفي تـه د مبارکۍ ليک لېږلی دی. مور يې د بڼ له بله سره غږ وکړ:

- سوفي ليک درته راغلی دی

ساه يې بنـده بنـده شـوه، پستي بكـس يـې څـو شېبې وړانـدې تـش كـړی و، هـرو مـرو بـه د فيلسـوف ليـک وي، اوس حيرانـه وه چې مـور تـه څـه ځـواب ورکړي.

- پستي ټکټ نه لري، حتما به د مينې ليک وي!

سوفي ليک واخيست

- نه يې پرانيزې؟

پلمې يې لټولې.

- مـور چـې د چـا پـه سر پـورې ولاړه وي، بيـا بـه نـو د مينـې ليـک پرانيزي؟

هغـه پـه دې خوشـاله وه چې مـور يـې د مينـې د ليـک گومـان پـرې وكـړي، دومره سزا نه لري، خـو كـه يې مـور پـوه شـوې وای چې ناپېژانـده كـس ليكونـه ورته لېږي؛ نو سخته به ورته پرېوتې وای.

ليک پـه كـوچني سـپين پاكـټ كې و. سوفي يـې خپلـې كـوټې تـه ولاړه، ليک يې پرانيست، درې تازه پوښتنې پكې ليكل شوې وې.

- داسـې لـومړنی جـوهر يـا مـاده شـته چـې ټـول مخلوقـات ځنـې پيـدا وي؟
- له اوبو شراب جوړېدای شي؟
- له اوبو او خاورو ځېنگبنه ځنگه پيدا كېدای شي؟

پوښتنې يې تـر پـام احمقانـه ورغلې. خـو بيـا يـې هـم ټولـه شـپه پوښتنو تـه پـه خواب پيدا کولو تېره کړه. سبا په ښوونځي کې هم په همدې سوچونو کې وه. دا پوښتنې يې يوه يوه په ژبه اړوله را اړوله.

- يـو لـومړنى عنصر- چې تـول شـى تـرې جـوړ شـوي وي، خـو څنګـه داسـې کېـداى شـي؟ کـه داسـې يـو شـى وي؛ نـو څنګـه تـرې ناڅاپـه فيل يا ګل ترې جوړېداى شي؟

د دويمې خبرې هم همدا پوښتنې کېداى شي. امکان لري چې اوبه په شرابو بدلې شي. سوفي د حضرت عيسى(ع) دا کيسه اورېدلې وه چې اوبه يې پر شرابو بدلې کړې وې. خو هغه يې هېڅ وخت په تحت اللفظي مانا نه وه منلې. که حضرت عيسى رښتيا هم اوبه په شرابو بدلې کړې وي، دا نـو بيـا معجـزه ده. پـه دې مانـا چې پـه عـادي توګـه خـو اوبـه پـه شرابـو نـه بدلېږي. سوفي په دې هم پوهېده، چې نه يوازې شراب بلکې په ډېرو شيانو کې د اوبو ترکيب شته دى. د بېلګې په توګه ٩٥ سلنه بادرنګ هم له اوبو جوړ دى. خو هغه ته اوبه نه شو ويلاى څکه د اوبو تر څنګه بل شى هم شته چې بادرنګ يې جوړ کړى. خو اوبه نه شو ورته ويلاى څکه بادرنګ بادرنګ دى. نه اوبه.

اوس نو رسېږو د ښنګښې مسلې ته. (تـه بـه وايـې دا د فلسفې استاد د ښنګښې چينجي لري. په هر څه کې ښنګښه). سوفي دا خبره منله چې د اوبو او خاورو له ترکيبه ښنګښه پيدا کېږي. خو په دې پوهېده چې په خاوره کې بايد نور شيان هم وي چې ښنګښه ترې پيدا شي. په دې مانا چې اوبو او خاورې د ښنګښې د هګيو پيدا کېدو او د بچي د تولد لپاره لار هواره کړې ده. که نه ډېرې خمکې او نباتات دي چې په بېلرو اوبه خوري؛ خو بيا هم ښنګښه نه ترې پيدا کېږي.

په هغه ورځ چې سوفي له ښوونځي راغله په بکس کې ډبل پاکټ ايښى و، د پخوا په شان خپلې کوټې ته ورغله او پاکټ يې پرانيست.

# د فیلسوفانو مهالویش

**بیا هم سلام!**

نن به نه پر سپینه سویه بانـدې خبرې کـوو، نـه کومـه بلـه رشـخندي، مستقیم خپـل درس تـه ورځـو. نـن غـواړم د فلسـفې پـه اړه يـو تـولیز نظـر درتـه وړانـدې کـړم، چې لـه لرغـوني يونانـه تـر دې دمـه خلـک د فلسـفې پـه اړه څـه وايـي. زه به دغه مطلبونه هر يو په خپل وار لنډ لنډ درته واضح کړم.

تـا تـه هـم معلومـه ده چـې پخوانيـو فيلسـوفانو پـه بېلـو وختونـو او بېلـو ځايونو کـې ژونـد کـاوه. نـو لـه همـدې املـه بنـايي د دوی فکرونـه او کارونـه هـم بېل وو. و بـه گـورو چـې هـر يـوه څـه ډول فکـر او تگـلاره درلـوده. غـواړم پـوه شـو، چـې هـر فيلسـوف د څـه شي کشـفول غوښـتل. کېـدای شي يـو فيلسـوف پـه دې هڅه کې و چـې نباتـات او بـوټي څـه ډول ژونـد کـوي. بـل پـه دې لټـه کـې و چـې د خـدای موجوديـت ثابـت کـړي، بـل بـه دا پلټـل چـې انسـان تلپـاتې روح لري، که نه؟

کله مو چې د فیلسوف د کـار بڼـه پيـدا کـړه، بيـا نـو کـولای شـو پـه ډېـره آسـانۍ د هغه فکر مطالعه کړو، ځکـه يـو فيلسـوف پـر ټولـو مسـايلو د فکـر کولـو وړتيـا نـه لـري. تـا بـه اوريـدلي وي چـې پـه فلسـفه کـې يـوازې د نارينـه وو نومونـه اخيسـتل کېـږي. ځکـه فلسـفه دوی خپلـه گڼلـه، ښـځې پـه تېـرو زمـانو کـې د فکـر او جنسيت لـه پلـوه تـل د نارينـه وو تـر فشـار لانـدې وې او نارينـه وو پـه درنـه سـترگه نـه ورتـه کتـل. خـو زه بايـد ووايـم چـې دا د خواشـينۍ خـبره ده، ځکـه پـه دې توگـه زرگونـه گټـور فکرونـه او نظرونـه تـر خـاورو لانـدې شـوي دي. پـه روانـه پېـړی کـې بيـا داسـې نـه دي، ښـځو پـه حقيقـي بڼـه د فلسـفې پـر نړۍ خپل اغېز پرې ايښې دی.

نـه غـواړم سـتونزمنې درسي مسـلې دربانـدې حـل کـړم، يـا د ريـاضي سـختې پوښـتنې دربانـدې حـل کـړم، همدارنگـه د بـې دوده افعـالو صرف هـم زمـا کـار نه دی. خـو کلـه کلـه بـه واړه تمرينونـه در سـپارم چـې تـر سره کـوې بـه يـې. که له دې شرطونو سره دې لگې؛ نو پیل به يې کړو.

## طبعي فیلسوفان

د لرغوني یونان لومړني فیلسوفان دېر وخت طبعي فیلسوفان بلل کېږي. ځکه دوی ډېر وخت تر ډېره د طبعي نړۍ او طبعي پېښو په اړه فکر کاوه.
مخکې مو پوښتنه وکړه چې مخلوقات څنګه پیدا شوي دي؟ ښایي یو وخت هر څه له هېڅ پیدا شوي وي، خو په لرغوني یونان کې دې خبرې دومره بازار نه درلود. یونانیان پر دې باوري و چې نړۍ او مخلوقات یې په مسلسله توګه موجود وو.
نو په دې توګه یونانیانو په دې مفکوره ځانونه بوخت نه ساتل، چې هر څه دې له نامعلوم شي رامنځته شوي وي. بلکې پر نورو مسایلو یې فکر کاوه.
دوی حیران وو، چې له مړو اوبو څنګه ژوندی کب پیدا کېږي. پر مړه او بې دمه ځمکه باندې څنګه ښکلي ګلان او سترې ونې وده کوي او ستړیږي؟ دا چې ماشوم څنګه د مور په نس کې پیدا کېږي او لويیږي.
فیلسوفانو به په خپلو سترګو لیدل، چې طبیعت  څنګه پر له پسې د بدلون په حال کې دی. خو دې ته به حیران وو چې دا بدلون څه ډول رامنځته کېږي.
دوی به حیران وو او ویل به یې، کوم جوهر دی چې په ژوندي موجود بدلیږي؟
لومړني فیلسوفان په دې باور وو، چې د ټولو بدلونونو لامل یو ځانګړی جوهر دی، دا چې څه ډول یې دا فکر ذهن ته ورغی تاریخ یې نه دی معلوم. خو په دې پوهیږو چې همدا باور وغوړېد او ورځ تر بلې پراخ شو. دوی به ویل چې په نړۍ کې ټول بدلونونه له یوه لومړني جوهره رامنځته کېږي. تینګار به یې کاوه چې هرو مرو یو څه شته دي، هر بدلون له هغه پیدا کېږي او هر شی بېرته همدې لومړني جوهر ته ورګرځي.
موږ ته تر ټولو په زړه پورې مطلب هغه حللارې نه دي، چې ددې پوښتنې په برخه کې د لرغوني یونان فیلسوفان وړاندې کړې، بلکې پوښتنې او د

خوابونـو هغـه بڼـه ده چـې دوی وړانـدې کولـه. مهمـه دا ده چـې دوی څـه ډول فکر کاوه او د څه په اړه يې فکر کاوه.

لومړنيو فيلسوفانو په نړۍ کې د بدلونونو پـه اړه فکـر کـاوه، دوی تـه بـه دا پـه زړه پـورې وه چـې پـوه شي بدلونونـه څنګـه رامنځتـه کېږي. دوی د طبيعت پـه ورکـو قوانينـو پسـې ګرځېـدل. دوی بـې لـه دې چـې اسـطورو تـه سر ورښـکاره کـړي پـه دې پسـې ګرځېـدل چـې ددوی پـه چاپېريـال کـې هـر څـه، څـه ډول رامنځتـه کېـږي، يـا پېښېږي. تـر ټولـو مهمـه خـو دا ده چـې دوی بـه طبيعـت مطالعـه کـاوه او د هغـه لـه مطـالعې وروسته بـه يـې د طبيعـت پـه اړه پوښـتنو تـه خـواب ورکـاوه. دغـې تګـلارې لـه اسـطوري تګـلارو سره تـوپير درلـود. مـوږ مخکـې ويـلي وو، چـې د تنـدر او برېښـنا لپـاره دوی څـه ډول افسانې جوړې کړې وې؛ خو په دې تګلاره کې بيا افسانې نه ځايېدلې.

همداسـې نـو لومړنيـو فيلسـوفانو پـه تـدريجي توګـه ځانونـه د مـذهبونو لـه دايـرو و ايستل او افسـانو تـه يـې شـا کـړه. داسـې ويـلای شـو، چـې طبعـي فيلسـوفانو د علمي استدلال پـه برخـه کـې لـومړني ګامونـه اوچـت کـړل. هغـه څـه چـې دوی د لومړي ځل لپاره پيل کړل، وروسته علم و نومول شو.

د لومړنيـو فيلسـوفانو لـه خـبرو او نظرونـو کـوم شـی پـه ميـراث نـه دي پـاتې. دا شيان د ارسـطو لـه خـبرو مـوږ را اخيسـتي چـې لـه دې فيلسـوفانو نـږدې دوه سوه کاله وروسته يـې ژونـد کـاوه. ارسطو يـوازې ددغـو فيلسـوفانو پـايلو تـه پام اړولـی دی، نـو لـه دې املـه نـه پـوهېږو چـې دوی لـه کومـو لارو دغـو پـايلو تـه رسـېدلي دي. خـو لـه همـدې شـته، معلومـاتو دومـره پـوهېږو چـې د يونـان د لومړنيـو فيلسـوفانو کـار د انسـان د جـوړوونکي جـوهر پـه اړه پوښـتنې او خوابونه وو او دا چې په طبيعت کې بدلونونه څه دول رامنځته کېږي؟

## د ميلتوس درې فيلسوفان

لـومړنی فيلسـوف چـې پـه اړه يـې معلومـات لـرو، تـالس دی. هغـه د ميلتـوس دی. ميلتـوس پـه کـوچنۍ آسـيا کـې د لرغـوني يونـان مسـتعمره وه. تـالس د مصر په ګډون ډېرو هېوادونـو تـه سـفرونه کـړي وو. مصر-تـه د تـګ پـر وخـت

کې يې، د تر ټولو لوړ هرم لوړوالى محاسبه کړ. هغه لمر ته کتل، چې ځنګه يې خپل سيورى د ونې له کچې سره يو شان شو، د هرم لوړوالى يې هم د هغه له سيوري محاسبه کړ. دده په اړه دا هم وايي، چې د ٥٨٥ م.ز کال د کسوف وړاندوينه يې سمه راختلې ده.

تالس به فکر کاوه چې د هر څه د موجوديت سرچينه اوبه دي. دا چې موخه يې له دې خبرې څه وه، سمه نه ده روښانه شوې، خو موخه به يې دا وه چې نړۍ له يوې مخې له اوبو پيدا شوې ده او هر ژوند چې پاى ته رسيږي، بېرته اوبو ته ورګرځي.

هغه به مصر ـ ته په خپل سفر کې ليدلي وي چې کله د نيل د سېلابونو اوبه له ځمکو لاړې شي هلته نباتات را شنه شي او بيا به يې ليدلي وي چېرته چې نوى باران درېدلى له اوبو يې ښنګښې او چينجي پيدا شوي دي.

تالس به د اوبو د کنګل کېدو او بيا د اوبو کېدو يا بخار کېدو او له هغه وروسته بېرته پر اوبو د بدلېدو په اړه هم فکر کړى وي.

دا خبره هم ډېره مشهوره ده چې تالس به ويل په هر څه کې خداى دى. ښايي کله يې چې له ځمکې د ګلونو راټوکېدل ليدلي، يا يې ليدلي چې ګلان، چينجي، حشرې او نور شيان ځنګه له خاورو راپيدا کېږي، نو په دې به باوري شوى وي، چې په هر څه کې د ژوند يوه تومنه شته خو په سترګو نه ليدل کېږي. خو يوه شي ته مو پام وي چې موخه يې د هومر خدايان وو. هغه به په هر څه کې د هومر د خدايانو موجوديت ته اشاره کوله.

بل فيلسوف چې د لرغوني يونان د فيلسوفانو په لړ کې يې نوم اورو، آناکسيماندروس دى. هغه له تالس سره تقريبا هم مهاله په ميلتوس کې ژوند کاوه. دده په باور زموږ جهان د زرګونو نورو جهانونو په څېر دى چې په لايتناهي کې موجود دى او د سلګونو نورو جهانونو په څېر له ورکېدو سره مخ دى. دا نه ده معلومه چې له لايتناهي يې موخه څه وه، خو ښايي د هغه لومړني جوهر په اړه به يې فکر کاوه چې تالس اشاره

ورته کړې ده. بنايي ويل به يې د هر څه د موجوديت اصلي جوهر بايد له هر څه يو بېل شی وي. دده په باور دا چې هر څه پای لري نو هغه چې تر دې وړاندې او وروسته هم شته، بايد پای و نه لري. دده په باور دا لومړنی ماده اوبه نشي کېدای.

درېيم فيلسوف آناکسيمنس دی، هغه هم په مېلتوس کې اوسېده. بنايي په (۵۷۰- ۵۲۶ م ز) کلونو کې يې ژوند کړی وي. ده به ويل چې د هر څه د پيدايښت سرچينه هوا او بخار دی. هغه د اوبو په اړه د تالس په نظريه پوه و، خو ويل به يې چې بيا نو اوبه له کومه کېږي؟ د آناکسيمنس په باور اوبه کنښکارلې (متراکمه) هوا ده. ده به ويل کله چې باران اوري، وينو چې اوبه له هوا را څاڅي. دی په دې گومان و، چې که اوبه نورې هم کنښکارې نو پر خاورو بدلېږي.

هغه به ليدلي و، چې له کنگله تر ويلې کېدو وروسته، د شگو داني پاتې کېږي او څه يې پر بړاس (بخار) بدلېږي. ده به همدارنگه تصور کاوه چې له نرمې هوا اور جوړېږي. نو پر دې بنسټ ويلای شو، آناکسيمنس دې پايلې ته ورسېد، چې د «اوبو»، «خاورې» او «اور» سرچينه هوا ده.

د اوبو په زور له خاورې گټه او حاصل تر لاسه کول کومه نوې خبره نه ده. نو بنايي هغه به تصور کاوه چې ژوند له ځمکې، هوا او اوبو پيدا کېږي خو د ټولو سرچينه هوا يا بړاس (بخار) دی. نو په لنډه توگه ويلای شو، هغه هم د تالس په څېر په دې باوري و، په نړۍ کې د ټولو بدلونونو لپاره يو پټ جوهر شته، چې د هر بدلون لامل يې بللای شو.

## هيڅ شی له نشت نه پيدا کېږي

د ميلتوس دغو درېو فيلسوفانو باور درلود، چې د هر څه سرچينه يو ډول لومړنی جوهر دی. خو يو جوهر څه ډول ناڅاپي په بل موجود بدل شي؟ اوس موږ کولای شو دې مرحلې ته د بدلون مسئله نوم ورکړو.

تر میلاد نږدې ۵۰۰ کاله مخکې د لرغوني یونان په یوه مستعمره البئا کې یوه ډله فیسلوفان پیدا شول. د بدلون مسئلې د البئا د فیلسوفانو پام ځان ته ور واړاوه.

له دې ډلې مشهور فیلسوف پارمنېدس و. د (۵۴۰- ۴۸۰) کلونو ترمنځ ژوند کاوه. هغه پر دې باوري و، چې شته شیان تل شته وو. د یونان لپاره دغه مفکوره نوې او پردی نه وه. دوی لږ و ډېر پر دې باور درلود چې هر څه تلپاتې دي. پارمنېدس به ویل، هېڅ شی له نشته نه پیدا کېږي، هرو مرو به یو څه وي چې نور شیان ترې پیدا شوي دي، نو څه شی چې شته وي هغه هېڅ وخت له منځه نه ځي.

پارمنېدس دا فکر یو ګام نور هم مخ ته راوست. هغه ویل بدلون په رښتیني مانا ناشونی دی، نو هېڅ شی نه شي کولای پرته له هغه څه چې دی، بل شی شي. هغه په دې پوهېده چې طبیعت تل د بدلون په حال کې دی. د هر څه تغییر به یې په خپلو حواسو درک کولای شو. خو دا هر څه یې له هغه څه سره نه شو تطبیقولای چې عقل یې ورته وایه. کله چې د عقل او حواسو تر منځ د یوه غوراوي ته اړ شو نو بیا یې د عقل لاره خپله کړه.

تاسې به دا اصطلاح اورېدلې وي (خو مې چې په سترګو نه دي لیدلي باور نه کوم) خو پارمنېدس به څه چې په سترګو هم لیده باور یې نه ورباندې کاوه. هغه به ویل چې زموږ حواس د نړۍ په اړه موږ ته ناسم انځور راکوي او د حواسو تصویر زموږ عقل ته بیا د منلو نه وي. هغه به ویل د یوه فیلسوف په توګه یې دنده ده، چې حسي-تېروتنې را برسېره کړي. پر عقل دومره تکیې ته بیا په فلسفي مکتبونو کې عقل پالنه[1] وویل شوه. عقل پال به یې هغه چا ته وایه، چې ویل به یې د عقل له لارې موږ دا نړۍ پېژندلای شو.

---

[1] Rationalism

## هر څه روان دي

هراکلیتوس[۱] چې د پارمنېدس سره یې هم مهال په (۵۴۰-۴۸۰) کلونو کې په افه سوس کې ژوند کاوه، هغه همېشنی بدلون او حرکت د طبیعت د جوړوېدو تر ټولو بنسټیز توک باله. داسې هم ویلای شو، چې هراکلیتوس تر پارمنېدس ډېر پر خپلو حواسو باور درلود.

ده به ویل هر څه روان دي. هر څه پر له پسې تېرېږي، هر څه حرکت کوي او هېڅ شی ثابت نه دي. ده به ویل له همدې امله چې کله پر سیند پښه ږدو یوازې یو ځل پر همغه ځای پښه اېښودلای شو. د دویم ځل لپاره نه سیند هغه سیند دی او نه موږ هغه پخواني یو.

هر اکلیتوس باوري و، چې تقابل او ټکر د نړۍ ځانګړنه ده. که، موږ هېڅ وخت ناروغ نه شو، نو د روغتیا په ارزښت به څه پوهېږو؟ که هېڅ وخت وږي نه شو؛ نو د مړښت په خوند به پوه نه شو. که هېڅ وخت جګړه نه وي؛ نو د سولې قدر به پر چا نه و او که ژمی نه وي، پسرلی هم نه راځي. د هغه په باور ښېګڼه او بدګړه هره یوه پر خپل ځای د نړۍ په نظم او کار کې خپل نقش لري. له همېشني او متقابل اغېز پرته دا نړۍ له منځه ځي.

دده مقصد د نورو فیلسوفانو په څېر د یونان خدایان نه وو، د هغه موخه یو بل خدای و چې دده په باور یې پر ټوله نړۍ حاکمیت درلود او په حقیقت کې یې د نړۍ په ټولو بدلونونو کې بې څنډه ونډه لرله.

هر اکلیتوس به د خدای د کلمې پر ځای تل د (*logos*) کلمه، چې د عقل په مانا ده، کاروله. نو دا چې د ټولو انسانانو عقل یو شان نه دی او ټول یو ډول فکر نه کوي، نو د هغه په باور یو ستر عقل، چې ده به (لوی عقل) باله، شته دی، چې دا هر څه هغه تنظیموي. د ده په باور دا لوی عقل د ټولو لارښود او شریکه وجه ده. د هر اکلیتوس په باور سره له دې هم په نړۍ کې ډېر انسانان له خپل فردي عقله کار اخلي. نوموړي په نړۍ کې

---

[۱] Heraclitus

نـورو انســانانو تــه ارزښــت ورکــاوه، ده بــه ویــل د انســانانو باورونــه د لوبــو د وسایلو په څېر دي.

نو هـر اکلیتـوس بـه د نـړۍ د پـر لـه پسـې بدلونونو او تقـابلونو پـه بهیـر کـې یـو ړول موجودیـت او وحـدت لیـده. نومـوړي د هـر شي دغـه بنسـتیز عنصرـتـه خدای یا لوګوس[1] نوم وکاراوه.

**څلور اصلي عنصره**

پارمنیـدس او هـر اکلیتـوس د یـو بـل پـر وړانـدې ولاړ وو. د پارمنیـدس عقـل حکـم کـاوه چـې هـېڅ شـی نـه شي بدلېـدای، خـو د هـر اکلیتـوس حواسـو بیـا داسې ښوده، چې نـړۍ پـر لـه پسـې بدلېـدونې ده. کـوم یـوه سـمه خـبره کولـه، د عقل پیروي وکړو که د حواسو؟

- پارمنیدس او هراکلیتوس دوه څه ویل:

الف: هېڅ شی نه شي بدلېدای

ب: نو له دې امله باید په خپلو حسي ادراکونو باور و نه کړو

هراکلیتوس بیا وایي:

الف: هر څه بدلېدای شي، یا ټول شیان روان دي.

ب: زموږ حسي ادراکات د باور وړ دي.

فکر نـه کـوم چـې فیلسـوفان دې تـر دې ډېـر د یـو بـل پـر ضـد وي. خـو څـوک پـه حقـه و؟ ددې کـار لپـاره بایـد امپـدوکلس راغلـی وای. هغـه د (۴۹۰-۴۳۰) کلونـو تـرمنځ ژونـد کـاوه. ده بایـد ددې دواړو تـرمنځ اوس یـوه لار را ایسـتلې وای.

د هغـه پـه بـاور دواړو پـه ځینـو ځـایونو کـې سـمې خـبرې کـولې، پـه ځینـو ځـایونو کـې ناسـمې. د امپـدوکلس پـه وینـا د ددوی د تضـاد ټکـی دا و، چـې دواړو یـوازې د یـوه عنصرـ پـه شـتون بـاور درلـود. کـه دوی د هغـه څـه تـر منځ چـې عقـل یـې پـه اړه حکـم کـوي او هغـه څـه چـې د حواسـو لـه لارې یـې درکوو، اړیکه ټینګه کړې وای دا تضادونه به له منځه تللي وو.

---

[1] Logos

د هغه په باور دا خو ناشوني خبره ده، چې اوبه دې په کب يا پتنګ بدلې شي. په حقيقت کې اوبه هېڅ بدلېدای نه شي. نږه اوبه تل نږه اوبه دي، نو پارامنېدس رښتيا ويل، چې هېڅ شی نه بدلېږي.
امپدوکلس په ورته وخت کې له هراکليتوس سره هم يوه خوله و، چې بايد پر خپلو حسي- موندنو باور وکړو. د ده په وينا هغه څه چې په سترګو وينو بايد و يې منو. هغه څه چې وينو دقيقاً هغه بدلونونه دي چې په طبيعت کې رامنځته کېږي.
امپدوکلس دې پايلې ته ورسېد چې يوازې د يوه عنصر- د شتون مفکوره نوره بايد له سره وباسو. نه له اوبو په يوازې ځان، بوټي، ګل او پتنګ جوړېږي نه له خاورو. د طبيعت بنسټ، په هېڅ صورت يوازې يو عنصر- نه دی. د نوموړي په باور طبيعت له څلورو عنصرو جوړ شوی و. ده به دغه څلور عنصره بنسټيز عناصر بلل. دده په باور اوبه، خاوره، اور او هواد نړۍ جوړوونکي اصلي څلور عنصرونه دي.
د امپدوکلس په باور طبيعت ددغو څلورو عنصرو د جوړښت او تجزيې له امله بدلون مومي. هغه وايي، هر څه له اوبو، خاورې، اور او هوا جوړ شوي دي، خو د ترکيب له اړخه د هر عنصر- د موجوديت نسبت د يوه شي په جوړښت کې توپير لري. د هغه په باور کله چې ګل يا يو ژوی مړ کېږي، نو دغه څلورګوني عنصرونه يو له بل بېلېږي. دا بدلونونه په خپلو سترګو ليدلای شو. خو خاورې، اوبه، اور او هوا يې له منځه تلونکي نه دي، تاسي به وينئ چې دوی تل د نه ورکېدونکو څېزونو په څېر پاتې کېږي. نو دا خبره سمه نه ده چې وواېو هر څه بدلېږي. په حقيقت کې هېڅ شی نه بدلېږي، همدا څلورګوني مواد دي چې سره يو ځای کېږي، بېلېږي او کمېږي يا زياتېږي. کله سره بېلېږي کله سره يو ځای کېږي.
دا له يوې نقاشي سره پرتله کولای شو. که موږ يوازې سور رنګ ولرو، نو اوس د شنو ونو رنګونه له کومه کړو، خو که موږ څو رنګه مثلاً زيړ، سور، آبي او تور ولرو ډېر رنګونه پخپله نقاشي کې کارولای شو، خو شرط دا

دی چې لـه همـدې ځـو رنګونـو د ترکیبونـو تناسـب تـه پـه کتـو لسـګونه نـور رنګونه جوړ کړو.
کـه د یـوه پخلنځـي مثـال ورکـړو، نـو خـبره بـه روښـانه شي. کـه زه یـوازې اوړه ولـرم، نـو ځنګـه تـرې یـو ډول شرینـي تیـاره کـړم، حـتما بایـد ددې کـار لپـاره جـادوګر وم. خـو کـه د چرګـې هګـی، اوړه، شـېدې او بـوره وي؛ نـو لـه هغـه یـو ډول شریني جوړېږي. یا کېدای شي ځو ډوله شریني ترې تیاره کړم.
هغه به چې د نـړۍ ترکیـب لـه اوبـو، اور یـا هـوا بالـه، دا کومـه تصـادفي خـبره نـه وه. تـر ده وړانـدې هـم فیسـلوفانو منلـې وه چـې د نـړۍ د پیدایښـت اصـلي جـوهر، اوبـه، هـوا یـا اور دی. تـالس او آناکسـیمنس ویـلي وو، چـې اوبـه او هـوا دواړه د مـادي نـړۍ د پیدایښـت اړیـن عنصرـونه دي. یونانیـانو اور هـم اړیـن وبالـه. دوی د بېلګـې پـه توګـه لمـر یـاداوه چـې د ټولـو موجوداتـو د ژونـد لپاره اړین دی. دوی د انسان او حیوان د بدن له تودوخې هم خبر وو.
امپـدوکلس ښـایي پـه ځـیر د یـوه لرګـي د تـوټې سـول لیـدلي وي. څـه تجزیـه کېږي، د تـرق تـروق غـږ یـې اورېـدل کېږي، سـپرغۍ ځنـې الـوځي، دا همـدا اوبـه دي. یـو شـی پـه دود بـدلېږي، پورتـه خېـژي، دا هـوا ده. اور هـم پـه خپلـو سترګو لیدلای شـو. اور چې مړ شي، بـل شـی یـې پـر ځـای پـاتې کېږي، دا نـو ایره ده یا همدا خاوره ورته ویلای شو.
سره لـه دې چـې امپـدوکلس پـر دې مسـله پـوره رڼـا واچولـه، خـو د طبیعـت د بـدلون او د ځلـورو عنصرـو موضـوع نـوره هـم بایـد روښـانه شي. دا عنصرـونه د څـه شي پـه وسـیله ترکیـب پیـدا کـوي؟ یـا هغـه شـی څـه دي چـې دغـه عنصرـونه سره یـو ځـای کـوي، چـې یـو نـوی شـی یـا ژونـد رامنځتـه کـړي؟ څـه ددې سبب ګرځي چې یو شـته ترکیـب لکـه ګـل یـا بـل شـی د دویـم ځـل لپـاره تجزیه او له منځه ولاړ شي؟
امپـدوکلس بـاوري و چـې پـه طبیعـت کـې دوې بېلـې قـوې پـه کـار لګیـا دي. نومـوړې دا قـوې مینـه او کینـه یـادې کـړې دي. د ده پـه بـاور مینـه دوه شـیان سره یو ځای کوي؛ خو کرکه او کینه بیا دوه شیان سره بېلوي.

امپدوکلس د جوهر او قوت تر منځ هم توپیر ته ژمن و. دا د پام وړ مسله ده. نن هم ډېر پوهان د عناصرو او طبعي قوت تر منځ توپیر ته ژمن دي. نوي علم پر دې باور دی، چې ټولې طبعي پېښې د عناصرو د متقابل عمل او ځینو طبعي قوتونو له امله رامنځته کېږي.

امپدوکلس همدارنګه دا موضوع مطرح کړه، چې د حسي ـ ادراک پر وخت څه کېږي؟ ده به ویل یو ګل څنګه لیدای شو؟ هغه څه چې د یوه ګل په پیدایښت کې رامنځته کېږي څه ډول لیدای شو؟ تر اوسه ددې مسلې په اړه فکر کړی سوفي؟

امپدوکلس فکر کاوه چې سترګې، هم لکه د طبیعت نور شیان له خاورو، اور، هوا او اوبو جوړې شوې دي. ده به ویل د سترګو خاورې مې هغه خاورې ویني چې د شاوخوا شیان مې ترې جوړ شوي دي. همدا راز د سترګو اوبه مې هغه شیان ویني چې له اوبو جوړ شوي دي. د سترګو د هوا برخه مې هوا ویني. د سترګو د اور برخه مې هغه شیان ویني چې په اور پورې اړه لري. د هغه په باور که د انسان سترګو دغه شیان نه لرلای نو هغه یې لیدلای هم نه شول.

## له هر شي یو شی په هر شي کې

آناکساګوراس چې د (٥٠٠-٤٢٨ م ز) کلونو ترمنځ یې ژوند کاوه. دی بل فیلسوف و، چې و یې ویل، یوازینی جوهر یا آر لکه اوبه زموږ د چاپېریال ټول ښکاره شیان بدلولای نشي ـ دا خبره یې هم نه منله چې اوبه، خاوره او هوا دې په هډوکو او غوښه بدل شي.

آناکساګوراس پر دې باور و، چې نړۍ له ډېرو وړو ذرو چې په سترګو نه لیدل کېږي جوړه شوې ده. ددې تر څنګ هر څه په ډېر وړو ذرو وېشلای شو. خو په تر ټولو وړه ذره کې هم، د نورو شیانو یوه برخه شته ده. د هغه په وینا که زموږ پوست او هډوکی له هغو موادو نه جوړېدای چې موږ یې خورو، نو باید په شیدو او خوړو کې مو هډوکي او غوښه خوړلای.

که زه له نن وخت سره سمې يو دوې بېلګې ورکړم ښايي د آناکساګوراس خبره درته روښانه شي. نننۍ تکنالوژي د لايزر په مرسته درې اړخيز انځورونه جوړولای شي. اوس نو که د يوه موټر انځور واخلو او درې اړخيز يې کړو، انځور بيرته ټوټه ټوټه کړو، په هره ټوټه يا پيکسل کې موږ د موټر انځور ليدلای شو، نو دا په دې مانا ده چې په ټولو وړو ټوټو يا پيکسلونو کې د موټر انځور شته دی.

زموږ وجود هم همداسې جوړ شوی دی. نن ساينس هم ثابته کړې ده. که زه د خپلې ګوتې له پوست يو سلول بېل کړم، د همدې سلولو په داخلي، هسته کې نه يوازې زما د پوست ځانګړنې دي، بلکې هلته به تاسې، زما د سترګو رنګ، د وېښتو رنګ، د ګوتو شمېره او ډول او دې ته ورته لسګونه نور مسايل ووينئ. زموږ د بدن په هر سلول کې زموږ د جوړښت نور معلومات هم خوندي دي. نو په هر سلول کې يو شی له ټولو شيانو شته دي. کل په هر واړه جز کې شته دی. دا وړې ذرې چې په ځان کې هر څه يو څه لري؛ آناکساګوراس هسته يا زړی نومولې دي.

په ياد دې دي، چې امپيدوکلس به ويل، مينه او مهر زموږ د بند ټول عناصر سره تړي. آناکساګوراس هم نظم داسې يو قوت بولي چې، حيوانات، نباتات، ګلونه او نور شيان يې پيدا کړي دي. هغه دغه قوت ته ذهن يا شعور نوم ورکړی و.

آناکساګوراس سره له دې يوازينی يونانی فيلسوف دی، چې موږ يې په اړه معلومات تر لاسه کړې دي، هغه په آتن کې ژوند کاوه. هغه د کوچنۍ آسيا اوسېدونکی و، خو په ځلوېښت کلنۍ کې اتن ته ولاړ. څو کاله وروسته يې پر هغه د خدای پېژندنې د هڅې تور ولګاوه او اړ شو چې دغه ښار پرېږدي. پر هغه له لګېدلو تورونو يو هم دا و چې ويل به يې لمر خدای نه دی. ده به ويل لمر يوه ستره ډبره دی، چې د پلوپنيز تر ټاپوزمه ستر دی.

آناکساګوراس له نجوم يا ستورپوهنې سره ډېره مينه لرله. هغه باوري و چې دا ټول اسماني ستوري او موجودات د ځمکې له جوهره جوړ دي، يا دا چې د دواړو جوهر يو دی. هغه دغه معلومات د يوې آسماني ډبرې له مطالعې پيدا کړي و. همدې پېښې دی په دې فکر کې واچاوه، چې په نورو آسماني سيارو کې به هم ژوندي موجودات وي. هغه همدا راز دا نظر هم وړاندې کړ چې سپوږمۍ له ځانه نور نه لري، بلکې خپل نور له ځمکې اخلي. آناکساګوراس د لمر د تندر يا کسوف لپاره هم يو علت پيدا کړ.

**نوټ:**

**سوفي!**

له دقت او پاملرنې دې مننه کوم. که د ښې پوهېدنې لپاره دا برخه دوه درې ځله ولولې ښه به وي. پوهېدل تل هڅه او کوښښ غواړي، که دې کوم دوست له ډېر کوښښ پرته يو څه زر زده کړي، دومره به دې خوښ نه شي.

د لومړني جوهر د ستونزې د حل مسله به بلې ورځې ته پرېږدو، ددې په اړه سبا دموکريتوس ته سر ورښکاره کوو. تر هغه پورې بل خبر نه لرم ښه وخت!

سوفي په خپله کوټنۍ کې ناسته وه، د ونو او ښاخونو له چولو يې بهر کتل. د هر څه تر لوستلو وروسته يې اوس بايد فکر ارام کړی وی. دا خو لکه ورځ سپينه او روښانه خبره وه چې اوبه بې له براسه بل په هيڅ شي نه شي بدلېدلای. له اوبو حتی هندوانه نه شي جوړېدلای. ځکه هندوانه هم توله له اوبو جوړه ده. دا خبره يې ځکه په دومره باور کوله چې مخکې ورښودل شوي وو. که يې نه وی ليدلي او زده کړي چې اوبه يخ وهي، يخ يوازې اوبه دي دومره به باوري وه؟ مجبوره وه چې ولاړه شي او اوبه له نېږدې ووينې چې څنګه، خوټېږي او بيا پر بخار يا براس بدلېږي.

سوفي بيا هڅه وکړه چې خپل شعور پکار واچوي او بې له هغو شيانو فکر وکړي چې خلکو ور ښودلي وو. پارمنيدس له هر ډول بدلون منکر و. سوفي به چې څومره فکر کاوه هغه يې په حقه ګاڼه. دې هم باور درلود چې هېڅ شی ناڅاپه په بل شي نه شي بدلېدلای. ددغو خبرو کولو جرأت غوښت؛ څکه ټولو خلکو په خپلو سترګو د نړۍ بدلون ليده، په دې مانا چې له ټولو طبعي بدلونونو يې انکار کاوه. ښايي ډېرو خلکو به ور پورې خندل.

امپدوکلس هم ټينګار کاوه چې نړۍ پر يوې مادې سربېره له ډېر څه تشکيل شوې ده، ددې خبرې د ثبوت لپاره يې هڅې کولې. هغه په دې برخه کې له ډېرې هوښياری کار واخيست. دغه خبرې د طبيعت بدلون، بې له دې چې په حقيقت کې يې بدلون ثابت کړي، شونی کړی دی.

د يونان پخواني فيلسوف دا خبره يوازې په استدلال ثابتوله. هغه طبيعت مطالعه کړی و، خو پرته له دې چې د نننۍ عصر ـ وسايل او ټکنالوژي ولري. دا وسايل چې اوس د کيمياوي تجزيې او تحليل لپاره کارول کېږي هغه وخت له کومه شوي وی.

سوفي خو په دې خبر له سره باور نه شوی کولای، چې هوا، اوبه، اور او خاورې دې د ټول شي او موجوداتو سرچينې او يا جوړوونکي بنسټيز عناصر وي. خو دا څه ارزښت لري؟ په اصل کې خو امپدوکلس په حقه و. په طبيعت کې د هغو بدلونونو، چې په سترګو يې وينو او عقل يې هم مني، د توضيح لار د څو عناصرو موجوديت دی.

فلسفه د سوفي په نظر په زړه پورې او بوږنده (هيجاني) وه. څکه په دې توګه يې کولای شو د خپل فکر او شعور په مرسته په ډېرو مسايلو پوه شي. دې ته هم اړتيا نه وه چې د ښوونځي کتابونه پسې وګوري، يا هغه څه چې په مخکينيو ټولګيو کې يې زده کړي په ياد ولري. هغه به ويل که د فلسفې په زده کړه بريالي نه شوی لږ تر لږه دا خو به وشي چې څنګه فلسفي فکر وکړي.

# دموکریتوس

## ... د نړۍ د لوبو تر ټولو ځیرک وسایل...

سوفي د ناپېژانده فیلسوف ټایپ کړې پاڼې په ډبلي کې کېښودې او سر یې پټ کړ. له خپل پټنځي را ووته، لږ ودرېده، باغ ته یې وکتل. پرونۍ پېښه ور په یاد شوه. مور یې هم سباناري پر مهال د مېنې د لیک په اړه ډېرې هسکې ټیټې ورته وکړې. منده یې کړه، پست بکس ته یې ځان ورساوه، چې نن هم خدای مه کړه پرونۍ کیسه و نه شي. په دوو وروستیو ورځو کې د مینې لیکنو هیجاني کړې وه.

یو کوچنی سپین پاکټ په بکس کې و. د سوفي پام د لیکوال الګو ته شو. قهوه یي پاکټونه تل ماسپښین راتلل. نو چې دا به د قهوېي پاکټ د لیکونو په لوستلو بوخته وه، فیلسوف به ناڅاپه سپین پاکټ راوړی و. نو فکر یې وکړ چې دا سړی خو په دې توګه پېژندلی شي، څه معلومه ده چې ښځه ده که نر، خو د پیدا کولو لاره یې همدا ده. سوفي له خپلې کوټې پست بکس ښه لیدلای شو. نو پرېکړه یې وکړه، چې په کړکۍ کې ودرېږي وګوري چې څوک لیکونه راوړي؛ ځکه دا لیکونه خو له آسمانه نه راځي.

سوفي پرېکړه وکړه چې سبا باید دغه مسله کشف او ځان ته روښانه کړي. سبا جمعه وه، د اونۍ پای او رخصتي وه. خپلې کوټې ته ولاړه، پاکټ یې پرانیست، خو نن یوازې یوه پوښتنه پکې لیکلې وه. دا نو بیا تر درېیو پخوانیو پوښتنو هم ډېره احمقانه وه.

**ولې لېګو [1] د لوبو تر ټولو ځیرکه وسیله ده؟**

سوفي په لومړي سر کې باوري نه وه، چې فیلسوف دې داسې یوه پوښتنه وکړي. کلونه کېدل چې په دې پلاستیکي ټوټو یې لوبې نه وې کړې. بله خبره دا چې لېګو له فلسفې سره څه اړیکه لري؟

---

[1] یوه لوبه ده. په دې کې د پلاستیک وړې وړې ټوټې، چې له یو بل سره مطابقت ولري یو ځای کېږي او ودانۍ، موټر یا بله وسیله ترې جوړولای شو.

خو سوفي هوښياره زده کوونکې وه، د خپلې المارۍ، پوړونه يې وکتل، يوه کڅوړه يې پيدا کړه، پر څمکه يې ګڼې پلاستيکي ټوټې تري تشې کړې. ډول ډول بڼې يې لرلې. له څو کلونو وروسته يې بيا سره سر په سر کړې، په هغه يې لوبې کولې خو ناڅاپه يې د لېګو د لوبې په اړه څينې فکرونه سر ته راغلل.

هغه فکر وکړ چې د لېګو ټوټې په آساني له يو بل سره تړلای شو. سره له دې چې له يو بل سره توپير لري، خو بيا هم ټولې سره تړل کېږي. هغه کلکې هم دي، په آساني نه ماتيږي، له هغه وخته يې چې اخيستې تر ننه يوه هم نه ده ماته شوې، نوې او پاکې پاتې دي. تر ټولو لويه ښېګڼه يې دا ده، چې هر څه ترې جوړولای شو. وروسته مو که خوښ نه شي څه ورانولای او بل څه ترې جوړولای شو.

د لوبو له وسايلو خو تر دې ور هاخوا بل کار نه اخيستل کېږي. سوفي په دې پوه شوه چې دا لويه تر ټولو ښه ده، خو دې ته حيرانه وه چې د لېګو لوبه له فلسفې سره څه اړيکه لري، هيڅ يې سر نه خلاصېده.

سوفي په لوبو بوخته شوه، ورو ورو يې له همدې ټوټو د ناوې کور جوړ کړ، کور شبېه په شبېه لويېده. فکر يې نه کاوه چې لوبې کوي، خو ډېر وخت کېده چې له دې لوبې يې دومره خوند نه و اخيستی. انسان چې لوی شي، لوبې ولې پرېږدي؟

مور يې چې کور ته راغله، سوفي يې په لوبو وليده. خان يې کابو نه شوای کړی.

- او بيشکه لور مې نوې په لوبو راغلې ده

سوفي يو څه تريخ ځواب ورکړ.

- لوبې نه کوم، د يوې پېچلې فلسفي مسئلې پر حل بوخته يم

مور يې اوږد اسوېلی و ايست. د مداری د خولی او سپينې سوېې کيسه ور په ياد شوه.

په سبا يې چې سوفي له ښوونځي را وګرځېده، خو پاڼې ليک يې بيا هم په ستر پاکټ کې منتظر و. هغه يې خپلې کوټې ته يووړ، چې ويې لولي، پرېکړه يې وکړه چې د ليک د لوستلو تر څنګ به پست بکس هم څاري، چې ناپېژانده فيلسوف و پېژني.

**د اتوم نظريه**

سوفي! بيا زما ګوتو ته راغلې. نن غواړم له تا سره د وروستي او ستر طبعي فيلسوف په اړه خبرې وکړم. نوم يې ديموکريتوس دی. د (۴۶۰- ۳۷۰ م ز) کلونو تر منځ يې ژوند کاوه. هغه د اژه سيند، د شمالي څنډو په آبدرا سيمه کې اوسېده. که د لېګو په لوبه دې سر خلاص شوی وي، نو ددغه فيلسوف په نظريه هم ښه پوهېدلای شې.

ديموکريتوس وويل: زموږ نظريه له پخوانيو سره توپير لري، دا سمه نه ده لکه پخواني، چې وايي هر څه يودم بدل شي. بلکې داسې څه شته دي، چې په سترګو نه ښکاري، نامريي دي، هر ه ذره تلپاتې ده او نه بدلېږي. دموکريتوس دغه واړه شيان اتوم و نومول.

اتوم د نه ټوټه کېدونکي او نه شنل کېدوني شي په مانا دی. د هغه لپاره تر ټولو مهمه مسله دا وه، چې ثابته کړي، هر شی په نامحدوده وړو ټوټو نه شو ويشلای. که دا کار شونی وای، نو بيا مو د ټوټې په څېر يا د يوه واحد شي په څېر له هغه کار نه شو اخيستای. د هغه په وينا، طبيعت به بيا داسې و لکه ښوروا چې تيارو، ددې پر ځای چې ټينګه شي، شېبه په شېبه به نرۍ کېدله.

دده په وينا تر دې ور هاخوا بايد په طبيعت کې هر څه تلپاتې وي، ځکه هېڅ شی له نشته نه شته کېږي. له دې اړخه له پارمنېدس سره هم نظره و. هغه باوري و چې اتومونه کلک او قوي دي، خو بڼې يې توپير لري. دده په باور که ټول اتومونه يو شان وای، نو بيا به مو کومه د منلو وړ تګلاره نه لرله، چې څنګه، خاوره، کوکنار، د زيتون ونه او ان د وزې تر پوستکي او د انسان تر وېښتو پورې هر څه له اتوم جوړ شوي دي.

د دموکریتوس په باور طبیعت له بې شمېره اتومونو جوړ شوی دی. ځینې
ګرد او ښوی دي، ځینې کاږه او ګډوډ جوړښت لري، نو له همدې امله د
بېلو شیانو په بڼه له یو بل سره تړل کېږي. سره له دې چې بڼې یې ډېرې
دي، دوی هم ډېر او نامحدود دي، خو تلپاتې، نه بدلېدونکي او نه شنل
کېدونکي شی دی.
کله چې یو شی د بېلګې په توګه (ونه) ومري او له منځه ولاړه شي،
اتومونه له یو بل لرې شي. اتومونه په نوو موجوداتو کې کارول کېدای
شي. دوی په هوا کې د حرکت په حال کې دي، له یو بل سره اړیکه لري
او له همدې امله یې یوه کړی جوړه کړې ده. وروسته هغه شیان چې موږ
یې له خپلې مخې سره وینو له همدې اتومونو جوړېږي.
اوس یوه شوې چې د لېګو له لوبې مې موخه څه ده؟ دا هم لږ و ډېر د
اتوم ځانګړنې لري. د همدې لپاره ده چې په هغه باندې لوبې کول دومره
خوند لري. اول خو دا چې د لېګو قطعې په وړو ټوټو نه شو ویشلای. بله
خبره دا چې بېلې اندازې لري. هغه کلکې دي او د خپلې خوښې وړ شی
ترې جوړولای شو. ځانګړي خندونه او کړی هم لري، کولای شو د هغو
په وسیله یې له یو بل سره وتړو. دا سره تړلې ټوټې بیا هم له سره ټوټې
کولای او بیا یې سره تړلای شو. بېرته یې بېلوو او له سره نوي شیان ترې
جوړوو.
د لېګو د لوبې امتیاز همدا دی چې څو څو ځله هغه ورانولای او له سره
یې جوړولای شو. له همدې امله دومره مشهوره او په زره پورې لوبه ده. د
لېګو ټوټه نن د یوه موټره برخه ده، سبا د یوې ښکلې ماڼۍ ویلای شو،
چې د لېګو ټوټې تلپاتې دي. نننۍ ماشومان د لېګو په هغو ټوټو لوبې
کوي چې آن یو وخت یې پلرونو هم لوبې پرې کړې دي.
هې یوه بله خبر له ختو هم یو شی جوړولای شو. خو ختې بیا په وړو،
وړو برخو نه شو ویشلای. ځکه که ټوټې شي لومړنی شی به نه وي، له
وېشل شوې خاورې په همدې یوه شبېه کې بل شی نه جوړېږي.

اوس پـه پـوره بـاور ويـلای شـو، چـې د دموکريتـوس د اتـوم نظريـه څـه ناڅه سـمه وه. طبيعـت پـه رښتيا هـم لـه ډول ډول اتومونـو جـوړ شـوی دی. دوی لـه يـو بـل سره تـړلي دي او بېرتـه سره بېلېـږي. زمـا د پـوزې پـه څوکـه کـې د هايـدروجن يـو اتـوم ښـايي يـو وخـت د يـوه فيـل د خـرتم برخـه وه. زما د زړه په غوښه کې د کاربن يو اتوم ښايي يو وخت د يوه ډايناسور د زړه ذره وه.

زمـوږ د وخـت عالمـانو هـم دا ثابتـه کـړې ده، چـې اتـوم پـه وړو ذرو وېشـلای شـو. دغـه وړې او بنسـټيزې ذرې د پروتـون، نيـوترون او الکـترون پـه نامـه يـادېږي. داسـې ورځ ښـايي راشي چـې دا شـيان تـر دې هـم پـه وړو ذرو ووېشي. خـو فزيکپوهـان بيا وايـي، چـې د هـر څـه لپاره يـو حـد او زمان مهم دی، بايـد داسـې يـو کـوچنی جز وي چـې بـاور وکـړو طبيعـت لـه هغـه جوړ شوی دی.

دموکريتـوس د نـړۍ اوسـنيو الکترونيکـي وسـايلو تـه لاسرسـی نـه درلـود. د هغـه يـوازينۍ وسـيله مـاغزه و، هغـه يـوازې پـه خپلـو مغـزو کـې دا څېړونـه سنجول. عقل هـم کـوم بـل انتخـاب پـه لاس نـه ورکـاوه. کله چې بـاور وکـړو طبيعت له هېڅ نـه دی پيـدا شـوی، کـوم شـی بـدلېږي نـه او هـېڅ شـی لـه منځـه نه ځي، نـو پـه دې توګـه طبيعـت لـه وړو ذرو پرتـه بـل څـه نـه دي، چـې سره يـو ځای کېدای شي او بېرته له يو بل بېلېدای شي.

دموکريتوس پـر روح يـا يـو ډول قـوت بـاور درلـود، چـې د طبيعـت پـه چـارو کې مداخلـه کـولای شـي. ده بـه ويـل يـوازې اتـوم او فضـا موجـوده ده بـس. نـو له همدې امله يې يوازې په ماده باور درلود نو ماده پال[1] يې وباله.

د دموکريتـوس پـه وينـا د اتومونـو حرکـت د هـېڅ طرحـې او تـدبير تـر امـر لانـدې نـه دی. هـر څـه پـه طبيعـت کـې پـه پـوره ميکـانيکي توګـه رامنځتـه کېږي. دا پـه دې مانـا نـه ده، چـې هـر څـه ناڅـاپي رامنځتـه کېږي، بلکـې هـر څه د داسـې قوانينـو پيـروي کـوي، چـې تېښتـه تـرې شـونې نـه ده. هـر څه چې پېښېږي طبعـي علـت لـري، داسـې علـت چـې ذاتـاً پـه هغـه شي کـې پـروت

---

[1] materialist

دی. دموکریتوس یو ځل وویل: غواړي یو نوی علت ومومي چې د یو
ځای پادشاه شي.

د دموکریتوس په وینا د اتوم نظریه زموږ د حسي- درک ښکارندویې هم
کوي. کله چې یو څه حس کوو، علت یې په فضا کې د اتومونو حرکت
دی. دا چې موږ سپوږمۍ وینو علت، یې دا دی چې د سپوږمۍ اتومونه
زموږ تر سترګو را رسېږي.

خو په دې منځ کې د روح کار څه دی؟ روح له اتوم یا کوم بل مادي شي
جوړ شو؟ هو ولې نه؟ دموکریتوس به ویل: د انسان روح هم له (روحي
اتومونو) جوړ شوی دی. ده به ویل د روح اتومونه صاف او ځانګړي دي.
دده په وینا ژوندی موجود چې مړ شي دا اتومونه یوه بله خوا الوځي. د
هغه په باور ډېر احتمال شته، چې دا اتومونه وروسته د یو بل روح د
تکمیل برخه شي.

ددې خبرې مانا دا ده، چې انسان تلپاتې روح نه لري. دا هغه عقیده یو
ګروهه ده، چې نن سبا ډېر پلویان لري. دا خلک لکه دموکریتوس، باور
لري، چې روح له مغز سره تړلی دی. نو مغز چې له منځه ولاړ، نور نو
درک هم نشته دی.

د دموکریتوس د اتوم نظریې په یونان کې طبعي فلسفه د یو څه وخت
لپاره ودروله. هغه له هراکلیتوس سره هم نظر و، چې هر څه په طبیعت
کې روان دي. صورتونه څې راځي. خو له دې بدلونونو او تګ راتګ
سره سره داسې څه شته چې تلپاتې او نه بدلېدونکي دي، دموکریتوس دا
شیان اتوم و نومول.

سوفي د لوستلو تر څنګ کله کله له کړکۍ بهر کتل. غوښتل یې دا
ناپېژانده لیکوال وپېژني. اوس نو ناسته وه او سترګې یې پر سرک تومبلې
وې. د هغه څه په اړه یې فکر کاوه چې لوستي یې وو.

د دموکریتوس د افکارو ساده والی او ځیرکتیا یې حس کړه. دموکریتوس
د لومړني یا بنسټیز عنصر- او بدلون لپاره لومړنی حللاره پیدا کړې وه. دغه

پېچلې مسلې څو نسله پخواني فيلسوفان حيران کړي او بوخت ساتلي وو.
په پای کې دموکريتوس د خپل فکر او شعور په کار اچولو دا پوښتنه حل کړه.

د سوفي په شونډو موسکا خوره شوه، ويې ويل، ښايي طبيعت له ورو ورو ذرو جوړ شوی وي. له دې سره هراکليتوس هم سمه خبره کوله چې په طبيعت کې هر څه روان دي. هر څه تېرېږي، زوړ مره کېږي، ان د غرونو ربښې ورو ورو له منځه ځي. مهمه خبره دا ده چې د غرونو ربښې له ورو ذرو چې هېڅ وخت نه ماتېږي جوړې شوې دي.

دموکريتوس نورې پوښتنې هم رامنځته کړې وې. لکه، ده به ويل چې هر څه په مکانيکي توګه رامنځته کېږي. د امپدوکلس او اناکساګوراس پر خلاف خبره يې کوله چې ويل به يې، په طبيعت کې داسې قوه نشته چې دا هر څه سمبالوي. دموکريتوس ددې تر ځنګ باوري و، چې انسان تلپاتې روح نه لري.
سوفي دا خبرې قطعي ګڼلې؟
باوري نه وه؛ ځکه تازه يې د فلسفې درسونه پيل کړي وو.

# برخلیک

**...پاڼي هڅه کوي د هغه څه ورانددوینه وکړي، چې د وړاندوینې وړ نه دي...**

سوفي د دموکریتوس د کیسې د لوستلو پر مهال یوه شېبه هم سترګې له پست بکس نه وې لرې کړې، سره له دې یې هم زړه نارامه و، د بڼ تر دروازې یې د تګ اراده وکړه.

دروازه یې چې خلاصه کړه، د دروازې پر لاندینۍ تخته یې کوچنی پاکټ ولید. آه! د سوفي آموندسن نوم وریاندې لیکلی و.

بیا یې غولولې وه. هغه په لوستلو بوخته وه، له موقع یې استفاده کړې، لیک یې د وره مخې ته اېښی، بېرته د ځنګل له لارې تښتېدلی دی. تګمار انسان!

څه پوهېده چې نن به سوفي تولـه ورځ بکس څاري؟ یا به یې په کړکۍ کې لیدلې وي. خو یوې خبرې ته خوشاله وه، د مور تر راتګ مخکې یې لیک ګوتو ته ورغی.

سوفي یې کوټې ته راغله. لیک یې پرانیست. د سپین پاکټ یو کونج لږ لوند شوی و. دوه سوري یې هم لرل. دا نو ولې؟ څو ورځې کېدې چې باران هم نه و ورېدلی.

کوچنی لیک د پاکټ په منځ کې و. پکې لیکلي وو:

**ته پر برخلیک باور لرې؟**

**ناروغي د خدای له پلوه جزا ده؟**

**د تاریخ پر بهیر کوم قوتونه حکومت کوي؟**

هغه پر برخلیک باور لري؟ هېڅ نه پوهېده. خو ډېر داسې کسان یې پېژندل چې پر برخلیک باوري دي. په ټولګي کې یې داسې نجلۍ وه، چې پالونه به یې کتل او د پالونو جدول به یې لوسته. څوک چې پر نجوم او ستورو لیدلو باور لري نو هرو مرو پر برخلیک هم باوري دي. ځکه

پالي وايي چې په آسمان کې د ستورو حرکتونه د انسانانو په ژوند کې اغېز لري.
که توره پيشو دې مخې ته راشي، نو وايي ورځ مې بده شوه، په بد پال يې نيسي، نو له دې ښکاري چې پر برخليک باوري يې، رښتيا نه وايم؟ په دې اړه يې فکر کاوه، چې نور شيان يې هم د تقدير پالنې[1] په اړه ذهن ته راغلل. لکه، خلک وايي ۱۳ بد عدد دی، د خندا وړ خبره خو دا ده چې ان په ډېرو هوټلونو کې هم ۱۳ نمبر اطاق نشته دی. علت يې دا دی چې ډېر خلک پر خرافاتو باوري دي.
خرافات څه عجيبه کلمه، که تاسې پر اسلام يا عيسويت باور ولرئ؛ نو درته با ايمانه وايي، خو که پر ستورو يا ۱۳ توري باور ولرئ نو بيا درته وايي خرافاتي. دا حق ولې څوک خان ته ورکوي چې د نورو باورونو ته خرافات ووايي؟
سره له دې سوفي باوري وه چې دموکريتوس پر برخليک باور نه درلود. هغه ماده پال و. يوازې پر اتوم او خالي فضا يې باور درلود. سوفي په ليک کې د ليکل شوو نورو پوښتنو د ځوابولو په هڅه کې وه.
ناروغي د خدای غضب دی؟ خو فکر يې وکړ چې ډېر خلک دعا کوي او وايي چې دعا کول د ځينو ناروغيو لپاره شفا ده. دا خلک باور لري چې ناروغي او روغتيا د خدای په لاس کې ده.
دريمې پوښتنې ته ځواب پيدا کول گران وو. سوفي هېڅ وخت فکر نه وکړی چې د تاريخ پر بهير څوک حکومت کوي. تاريخ د انسان په لاس بدلېږي؟ که خدای د تاريخ پر بهير حکومت کوي نو انسان څه واک لري؟
د اختيار مفکورې سوفي په بل فکر کې ډوبه کړه. ولې بايد دغه ناپېژانده فيلسوف ته ددې اجازه ورکړي چې له دې سره د مورک او پيشو لوبه وکړي؟ ولې سوفي يو ليک نه ورته ليکي؟ ښايي نن يا سبا يو بل ستر

[1] Fatalism

لیک راوړي او سوفي ته یې کېږدي، نو دا هم کولای شي لیک ورته ولیکي او په بکس کې یې کېږدي.
زر لاس په کار شوه. اوس نو هغه چا ته لیک لیکل ډېر سخت وو، چې هېڅ وخت یې نه و لیدلی. په دې هم نه پوهېده چې نر دی که ښځه؟ زوړ دی که ځوان؟ نه ویل کېږي، دا فیلسوف یې کوم خپلوان وي؟
و یې لیکل:
ښاغلی فیلسوف! د لیکونو له لارې ستاسې د فلسفې درس زما لپاره ښه دی، وخت مې ښه ورسره تېرېږي. خو زه دې ته خپه یم چې تا نه پېژنم. له دې امله غواړم چې خپل پوره نوم ولیکې، زه هم غواړم تا ته بلنه درکړم، یوه ورځ راشه یوه پیاله قهوه به سره وڅښو او خومره به ښه شي، چې مور نه وي، ته راشې، سره کېنو او ستا خبرو ته به غوږ ونیسم، سره و به پېژنو. مور مې له دوشنبې تر جمعې د سهار له اوو وختي او د مازیګر پر خلور کور ته راځي. زه هم په دې ورځو کې په ښوونځي کې یم. خو بې له پنجشنبې نور په ټولو ورځو کې تر ۲ بجو کور ته را رسېږم. تر څنګ بې هېر مې نه شي چې ښه قهوه هم تیارولای شم.
د زړه له تله منځه کوم
ستاسې هوښیاره شاګرده
سوفي آموندسن (۱۴ کلنه)
د پاڼې په پای کې یې لیکلي وو، د ځواب په تمه یم.
سوفي فکر وکړ چې لیک یې ډېر په رسمي لهجه لیکلی دی. خو هغه ناپېژانده کس ته لیکل همدومره ګران وو. لیک یې په کریمي پاکټ کې واچاوه او پرې و یې لیکل (فیلسوف ته).
اوس نو حیران وه، چې پاکټ چېرته کېږدي. مور یې باید هغه و نه ویني. هغه یې باید د مور تر راتګه په تمه وی او بیا به یې لیک په بکس کې ابښوده. دبته یې هم پام و، چې سهار وختي د ورځپاڼې تر را رسېدو

مخکې باید بکس وګوري، هسې نه چې لیک پاتې شوی وي او مور یې لیدلی وي.
هغه حیرانه وه چې دا کارونه باید ولې دومره پېچلي او یو بل کې نغښتي وي؟
ماښام سره له دې چې د اونۍ د رخصتیو وروستۍ شپه وه، سوفي زر خپلې کوټې ته ولاړه. مور یې له ځان سره د هغه د کېنولو هڅه وکړه. پېزا یې ورته پلمه کړه، و یې ویل پولیسي-فلم به ګورو. خو دې ویل نه ستړې یم. باید یو شی ولولم او بیا ویده شم. مور یې چې د تلویزیون په لیدو بوخته شوه، دې لیک واخیست او بکس ته یې ورساوه.
مور یې سوفي ته اندېښمنه شوه. له هغه ورځې چې د سپینې سوې او مداري د خولۍ خبره یاده شوې ده، مور یې ورسره بل ډول خبرې کوي. سوفي هم خپه وه، چې خپله مور دومره خوروي. خو بله چاره نه وه. خپلې کوټې ته ولاړه او له هغه ځایه یې د لیکونو بکس څاره.
مور یې څه کم ۱۱ بجې د سوفي کوټې ته راغله، خو سوفي لا هم د کړکۍ مخې ته ناسته وه او لاندې سرک ته یې کتل.
- ته تر اوسه دلته ناسته یې او بکس ته ګورې!
- هر ځای ته مې چې زړه وغواړي ورته ګورم
- سوفي زه جدي فکر کوم چې ته مینه شوې یې، خو که ددې په تمه یې چې په نیمه شپه به تا ته کوم لیک راوړي دومره به هم لیونی نه وي.
اوف خدایه! څومره یې دا د مینې احساساتي خبرې بدې راتلې، خو چاره نه وه، مور یې باید فکر کړی وای، چې سوفي مینه ده.
مور یې پوښتنه وکړه:
- څکه خو د سوې او مداري خبرې کوې؟
سوفي یې سر وښوراوه.
- په دې مانا چې هو هغه دی ها؟

د سوفي يې پر مور زړه وسو. له ځان سره يې وويل، دا لويان څومره بې عقل دي. دا خو لېونتوب دی، که د يوه کس فکر له موړ سره تو پير لري، هغه په دې مانا نه دي چې هرو مرو به مېين يا روږدی وي. خو بيا يې هم د خپلې مور زړه خپه نه کړ.

سوفي وويل:

- موري، ما يو ځل له تا سره ژمنه کړې چې زه به نشه يي توکو ته نه نېږدې کېږم. هغه... هم دا کارونه نه کوي، يوازې له فلسفې سره يو څه مينه لري.

- تر تا مشر دی؟

سوفي يې سر وخوځاوه.

- همځولی دې دی؟

سوفي يې بيا هم سر وخوځاوه.

- خير نو سوفي، باوري يم چې په زړه پورې څوک به وي. هله نو اوس لږ ويده شه.

خو سوفي همداسې د کړکۍ مخې ته ناسته وه. ساعتونه تېر شول، نور يې سترګې پټې کېدې. اوس نو د شپې تر يوې بجې هم څو دقيقې اوښتې وې.

غوښتل يې ولاړه شي او ويده شي، په همدې شيبه کې يې په ځنګل کې پر يوه شي سترګې ولګېدې. تياره وه، د انسان غوندې يو شی و. ونه يې لوړه وه، هرو مرو نارينه دی. د سوفي په نظر به يې عمر هم ډېر وي. دا خو ښکاره خبره وه چې همځولی يې نه و، يوه ځانګړې توپۍ يې پر سر وه.

سوفي باوري وه چې، د کور پاسني پوړ ته يې وکتل، خو دا چې د نجلۍ د کوټې څراغ مړ و، نيغ بکس ته ورغی، لوی پاکټ يې په بکس کې کېښود. پاکټ يې چې ايښود، د سوفي پر ليک يې سترګې ولګېدې. لاس

يې ور اوږد کړ. په يوه شېبه کې يې د څنګله لور ته منډه کړه. په منډه په ونو کې پنا شو.

سوفي يې د زړه درزا اورېده. اول يې وغوښتل ورپسې ولاړه شي. خو خپلو کاليو ته يې وکتل، نه کېده، بلـه دا چې په نيمه شپه کې په يوه ناپېژانده سړي پسې منډې وهل لېونتوب دی. خو بايد تللې وای او پاکټ يې راوړی وای.

يو دوې دقيقې وروسته ورو ورو له زينو ښکته شوه، د دهليز ور يې ورو پرانيست او د بکس لور ته يې منډه کړه. په يو رپ کې يې ځان له پاکټ سره يو ځای کوټې ته را ورساوه. خو شېبې يې اوږده ساه واخيسته او بيا يې د پاکټ سر پرانيست. په دې پوهېده چې د خپل ليک ځواب خو به يې نه دی، نو دا چې څه دي به لوستلو يې پيل وکړ.

**برخليک**

***ګرانې سوفي نبه سهار!***

ددې لپاره چې دا فکرونه دې سر ته را نه شي؛ خو بايد يوه خبره درته سپينه کوم، چې زما جاسوسي مه کوه. يوه ورځ به حتما سره وګورو، خبرې به وکړو، خو وخت او ځای زه درته ټاکم. دا زما وروستۍ خبره ده او پوهېږم چې ته يې هم پر څمکه نه غورځوې. همداسې نه ده؟

را ګرځو فيلسوفانو ته، و مو ليدل چې دوی طبعي اوښتونونو ته څه دليلونه جوړول. خو تر دوی وړاندې دا ټول شيان يوازې په اسطورو توجيه شوي وو.

خو ځينې نور خرافات هم بايد يوې خوا ته شوي وای. خلکو د روغتيا، ناروغۍ او ځينو نورو سياسي بدلونونو په حق کې پر ځينو خرافاتو باور درلود. يونانيانو په دې برخو کې پر برخليک ډېر باور درلود.

پر برخليک باور په دې مانا، هر څه چې کېږي مخکې له مخکې ټاکل شوي دي. انسان د هغه د بدلولو وړتيا نه لري. دا باور نه يوازې په تېرو زمانو کې و، بلکې زموږ په وخت کې هم د نړۍ په ګوټ ګوټ کې شته.

د بېلګې په توګه همدلته د اروپا په شمالي هېوادو کې که وګورو، آیسلنډي (ادا[1]) افساني ته که وګورو، استوار پر لاګنډان باور درلود. دې ته ورته په لرغوني یونان او د نړۍ په هره برخه کې وینو، چې خلک وایي کولی شو د خپل برخلیک په اړه معلومات له پالیانو واخلو. یا په بله وینا د یوه کس یا یوه هېواد د سیاسي برخلیک وړاندوینه له بېلو لارو کولای شو.

اوس هم داسې کسان کم نه دي، چې باور لري د پال او ګانډې له مخې خپل بخت بدلولی شو. دوی وایي پالي ته ورتلای شو، چې پال مو وګوري، یا خپله ګانده د ستورو په مرسته لیدای شو. ددې کارونو یوه بېلګه په ناروې کې ډېره دود ده، د قهوې فال یې نوم پېرې ابښې. دوی چې کله قهوه وڅښي، نو د پیالې په بیخ کې د پاتې قهوې بڼه که موټر ته ورته وه یا لږه ورته وي نو په دې مانا ده، چې د قهوې څښونکی به په سفر ولاړ شي.

په دې توګه پالي د هغه څه د وړاندوینې په هڅه کې دي، چې په حقیقت کې د وړاندوینې وړ نه دي. دا د هرې وړاندوینې ځانګړنه ده (دوی د هغه څه وړاندوینه کوي چې د وړاندوینې وړ نه دي). موږ له هغه چې وینو دې پایلې ته رسېږو، چې د فالونو لیدل، تیاره او نامعلوم دي، د پالیانو ادعاوې بې ځایه او د ثابتېدو وړ نه دي.

آسمان ته ګورو زرګونه ډول ډول ځلانده تکي مو تر سترګو کېږي. د تاریخ په اوږدو کې خلک باوري وو چې زموږ په ژوند کې بدلون راوستای شي. اوس هم داسې سیاستوال شته، چې بې د پالیانو له مشورې هېڅ کار نه کوي.

### د دلفي معبد غیب ویونکي

یونانیان باوري وو، چې د دلفي معبد غیب ویونکي ددوی د ژوند پټ رازونه او ګانده (راتلونکې) ورته ښودای شي. د هغه پر وړاندوینو به یې

---

[1] Edda د هغو شعرونو او سندرو ټولګه ده چې د نهمې او دولسمې پېړۍ تر منځ په آیسلنډ کې ویل شوې دي

باور درلود. د غيب ويونکو خداى آپلو د خپلې کاهنې پوتيا په خوله خبرې کولې، کاهنه به پر يوه لوړ ځاى کېناسته، هلته ځمکه کښدل شوې وه او يو بړاس ترې راووت. پوتيا به بې سده شوه او په دې وخت کې به يې د آپولو خبرې تر خلکو رسولې.

څوک به چې دلفي ته ورتلل، خپلې پوښتنې به يې د معبد کاهنانو ته ورکولې، دوى به تر پوتيا پورې رسولې. د هغه خوابونه به تل پېچلي او گونگ وو، کله ناکله خو به يې هېڅ مفهوم نه درلود. نو کاهنانو به بيا خلکو ته تفسيرول. خلکو به د آپولو له خبرو ډېر څه تر لاسه کول، دوى باوري وو، چې هغه په هر څه پوهېږي. ان دا چې کېداى شي له ډېرو پټو رازونو خبره وي.

ډېرى حاکمانو به جرات نه کاوه چې بې ددلفي له مشورې او وړاندوينې کوم کار وکړي، جنگ وکړي او ان يو گام اوچت کړي. د آپولو کاهنانو په دې توگه د ديپلوماتانو بڼه غوره کړې وه. دوى د حاکمانو مشاورين او د باور وړ کسان وو. دوى د چا خبره هغه کارپوهان وو، چې هېواد او سياست يې په پوره توگه پېژانده.

د دلفي د معبد پر سر يو مشهور شعار ليکلى و. (ځان دې وپېژنه!) دغه کلمې يو څه ويل، هغه دا چې خلکو ته پر برخليک باور ورکړي. دوى به ويل، انسان پر هغه څه بايد باور و نه کړي چې له منځه تلونکي دي. دې ته ورته دوى غوښتل خلک پوه کړي چې د برخليک له منگولو نه شي تښتېداى.

يونانيانو د هغو کسانو په اړه ډېرې کيسې لرلې چې د برخليک په منگولو کې ښکېل شوي وو. د وخت په تېرېدو، ننداري پرې جوړې شوې، ډرامې او تراژېدى پرې وليکل شوې، په دې ډله کې تر ټولو مشهوره او په زړه پورې تراژېدي د اوديپس[1] ده.

---

[1] Oedipus Rex. (سوفو کليز ليکلې ده)

برخلیک یوازې د انسان پر ژوند حکومت نه کاوه. یونانیان باوري وو، چې ان د نړۍ تاریخ هم د برخلیک په لاس کې دی. ددوی په باور خدایان، د نړۍ په جګړو کې مداخله کولای شي او په دې توګه ګټونکي او بایلونکي بېلوي. نن هم ډېر خلک باوري دي، چې ځینې پټې او مرموزې قوې د نړۍ د تاریخ لوری ټاکي.

هغه وخت، چې طبعي فیلسوفانو د نړۍ طبعي پېښو ته ځینې ځوابونه پیدا کول، لومړنیو تاریخ لیکوالو هم هڅه کوله، تاریخي پېښو ته طبعي توضیحات پیدا کړي. تر هغې وروسته نو په جګړه کې ماتې په خدایانو پورې و نه تړل شوه، دوی ته نور دغه دلیل د قناعت وړ نه و.

د یونان مشهور تاریخ لیکونکي هېرودت (۴۸۴-۴۲۴ م ز) او توکودیدس/ توسیدید (۴۶۰-۴۰۰ م ز) وو.

یونانیانو تر هغه وخت ان د ناروغیو مسوول هم خدایان بلل. له بلې خوا دوی باوري وو که خدایانو ته نذر او قرباني ورکړي، نو دوی ته شفا ورکولای شي.

دا فکر او لیدلوری یوازې په یونان پورې نه و تړلی. د طب او درملنې تر پرمختګ مخکې ډېر خلک باوري وو، چې ناروغي او روغتیا د انسان کار نه دی، په دې کې له نړۍ بهر یو بل څوک لاس لري. اوس هم د آنفلونزا کلمه د ستورو د ناوړه نفوذ په مانا ده.

اوس هم د نړۍ ډېر خلک ځینې ناروغۍ لکه ایډز الهي مجازات بولي. ډېر هم دا باور لري چې کولی شو ناروغانو ته له غیبه مرسته وغواړو او یوه نامعلومه قوه راشي او دغه ناروغان روغ کړي.

کله چې په یونان کې فلسفې نورې لارې چارې پیدا کړې، نو څنګ بې طب هم لمن وغوړوله. حکیمانو هڅه وکړه چې له طبعي لارو د ناروغیو درملنه وکړي. ویل کېږي چې د یونان د طب بنسټګر بقرات

(هیپوکراتس) دی. هغه د ۴۶۰ م ز کلونو په شاوخوا کې په یونان کې اوسېده.

د بقراط د دودیز طب له مخې، اعتدال او د ژوند سمه بڼه د روغتیا تر ټولو ښه لاره ده. ده به ویل، موږ که په هر څه کې اعتدال وکړو، ژوند به مو ښه وي او روغتیا به مو په برخه وي. ده به ویل روغتیا طبیعي حالت دی. ده به ویل کله چې غم یا خپګان راځي، نو طبیعت له خپل عادي توازن اوښتی او یوې بلې خوا ته شوی دی. د روغتیا د ساتنې لپاره باید د همغږۍ او اعتدال لاره خپله کړو. په دې مانا چې سالم روح په سالم بدن کې دی.

نن د طبي اخلاقو په اړه ډېرې خبرې کېږي. موخه یې دا ده چې ډاکټران باید د یو لړ ځانګړو اخلاقي آرونو له مخې له خپلو ناروغانو سره چلن وکړي. د بېلګې په توګه ډاکټر حق نه لري چې یوه روغ رمټ بنیادم ته د مخدره موادو د کاروني نسخه ورکړي. همدارنګه ډاکټر باید د ناروغ رازونه له ځان سره وساتي، په دې مانا چې ډاکټر باید هغه رازونه برسېره نه کړي چې مریض د خپلې ناروغۍ په اړه ورته ویلي دي. دا فکر هم بقراط ته ور ګرځي. بقراط به پر خپلو شاګردانو لاندې لوړه کوله:

زه د خوړو رژیم عملي کوم. زه به خپلو ناروغانو ته د هغه څه د خوړو سپارښتنه کوم چې دوی ته ګټور دي او له هغه څه به یې منع کوم چې زیان ورته لري. هېچا ته ان که وهم غواړي وژونکې درمل نه ورکوم. همداسې ددغه ډول درملو د کاروني نسخه نه ورکوم. ښځو ته د ماشوم زیانونې وسایل او درمل نه ورکوم. کله چې یوه کور ته ځم، موخه به مې یوازې د ناروغ درملنه وي او چا ته به زیان نه رسوم. ددې تر څنګ، د خلکو ښځو ته په بده سترګه نه ګورم، ددوی ښځې، ماشومان، مریان او د کورنی نور غړي یې نه بې لارې کوم. هغه څه چې د خپل کار په ساحه کې اورم یا وینم او د ویلو او نورو ته د رسولو نه وي، و نه وایم او نه رسوم. زه به دا لوړه نه ماتوم، زه لیاقت لرم، له هغه باید ګټه تر لاسه کړم، خپل هنر باید وکاروم او خپلو خلکو ته به درناوی کوم. همداسې به

خلک ما ته هم درناوی کوي. خو که مې لوړه ماته کړه؛ نو د هغه خلاف دي پر ما وشي!

د شنبې پر سهار سوفي ناڅاپه له خوبه پاڅېده. خوب يې ليدلی و، تېره شپه فيلسوف ليک ورکوي، خو نه چې لږ سمه شوه پوه شوه چې خوب يې نه دی ليدلی، هغه ربښتيا هم تېره شپه راغلی دی. لاس يې تر تخت لاندې ننه ايست، هو ربښتيا هم هلته يو ليک پروت و. خوب يې نه دی ليدلی. هغه نوی ليک راوړی و.

په دې کې يې شک نه درلود چې فيلسوف يې ليدلی دی. په خپلو سترګو يې وليدل چې د هغه ليک يې را واخيست.

د کوټې پر غولي په خاپوړوه شوه او تر کټ لاندې يې نور پراته تايپ شوي ليکونه هم را وايستل. دا نو څه دي؟ ديواله ته نېږدې سور بخن شی دي. د غاړې دسمال ته ورته شی دي.

سوفي ځان کوچنی کړ، هڅه يې وکړه تر کټ لاندې ننوځي، ننوته ځان يې دسمال ته نېږدې کړ، سور بخين وربښمينې دسمال يې را واخيست، پوهېده، چې خپل يې نه دی.

دسمال يې له نېږدې وکوت، خوله يې وازه پاتې شوه؛ د دسمال پر څنډو ښکاره ليکلي وو، هيلده، هيلده! دا هيلده نو څوک ده؟ اوف! کله به دوی دواړه سره يو ځای شي حيرانه پاتې وه.

**سقراط**

...هر څوک که پوه شي يا پوه نه شي خو تر ټولو پوه دی...

سوفي د اوړي نرۍ جامې واغوستې او پخلنځي ته يې په بېړه ګامونه واخيستل. مور يې د پخلنځي د ستر ميز څنګ ته ولاړه وه. سوفي د وربښمن دسمال په اړه څه ورته و نه ويل. پوښتنه يې ترې وکړه:

- ورځپاڼې دې راوړې؟
- ته خو به نه په زحمت کيږې که يې راوړې؟

سوفي په يوه سا منډه کړه، خان يې تر پست بکسه ورساوه. له ورخپانو پرته هلته بل څه نه وو. له خان سره يې وويل، دومره زر هم بايد تمه و نه لرم. چې هغه دې زما د ليک ځواب راکړي. د ورځپاڼې په لومړي مخ کې په لبنان کې د ناروې د سرتېرو په اړه څه ليکل شوي وو.

همدا مهر د هيلډې د پلار پر پاکټ هم و. خو پستي ټکټ يې بيا د ناروې و. ښايي د ملګرو ملتونو هغه سرتيري چې د ناروې دي، ځانګړي پستي ټکټ ولري.

پخلنځي ته چې را وګرځېده، مور يې ساه و ايسته، په سړه سينه يې ورته وويل:

- په دې ورځو کې دې له ورځپاڼې سره مينه ډېره شوې ده

په دې ورځ يې مور له نېکمرغه د چاى څښلو پر مهال نوره يوه خبره هم ونه کړه، نه يې پست بکس ياد کړ، نه ليکونه او نه هم د مينې او ميتوب خبرې. مور يې چې له کوره ووته، سوفي د برخليک په اړه ليکل شوى ليک پرانيست.

د فيلسوف د نورو ليکونو تر منځ يې بل کوچنى پاکټ هم وليد، ورته حيرانه شوه. سوفي باوري وه، چې هلته يې کوم پاکټ نه دى ايښى. د پاکټ څنګونه هم لانده وو. يوه کونج يې بيا هم دوه ژور سوري لرل. پروني پاکټ هم دوه سوري درلودل. په دې مانا چې فيلسوف هلته راغلى و؟ دا سړى د هغه له پټنځي هم خبر و؟ نو بيا پاکټ ولې لوند دى؟

دې پوښتنو سوفي ګنګسه کړه. پاکټ يې پرانيست او پکې ليکل شوي وو:

**ګرانې سوفي!**

ليک مې دې په پوره مينه ولوست، خو خپه هم شوم ورته. د بلنې په اړه به له بده مرغه درته ووايم، چې دا کار نه شم کولى، خو ژمنه کوم چې يوه ورځ به هرومرو سره وينو. په دې نېږدې وختونو کې دا کار

نه شم کولی. زه په خپله ستاسې سیمې ته هم په دې لنډو وختونو کې نه شم درتلای.

بوه بله خبره هم باید وکړم، چې زه په خپله دومره لیکونه تا ته نه شم دروړلای، تر څنګ یې دا هم باید ووایم، چې زما لیکونه تر دې وروسته زما کوچنی قاصد مستقیم ستا کوټنۍ ته دروړي.

ته هم کولای شې هر وخت دې، چې زړه غوښتل له ما سره اړیکه و نیسې. که دې غوښتل په یوه پاکټ کې خپل لیک کېږده، یا یوه ټوټه شریني ورسره کړه، قاصد به مې هغه پیدا کړي او مخامخ به یې ما ته را ورسوي.

نوټ:

د نجونو د قهوې ښښلو بلنه نه منل، ښه کار نه دی خو ځینې وخت سړی اړ شي!

دویم نوټ:

که دې ورېښمین دسمال پیدا کړ، هغه وساته، څکه د خلکو امانت خیانت کېږي، په ښوونځي او دې ته ورته شیانو کې خیانت کول ښه نه وي، په ځانګړي توګه د فلسفې په مکتب کې خو هېڅ خیانت نه ځایېږي.

ستا دوست (آلبرتو کناکس)

د سوفي د عمر پنځلس سپرلي تېر شوي وو. په دې دومره موده کې یې بوازې په نوي کال او خپله کلیزه کې ډېر لیکونه تر لاسه کړي وو. خو دا یې په ژوند کې تر ټولو عجیب لیک و.

پستي ټکټ یې نه درلود. آن په پستي بکس کې هم نه و لویدلی. مستقیم یې لیک پټنځي ته راغلی و. داسې ځای چې هېڅ ته نه دی معلوم. له بلې خوا د پاکټ په کونج کې دوه ژور سوري او لومډوالی هم د حیرانتیا وړ دی، څکه نه باران شته او نه هم خمکه لمده ده.

تـر ټولـو حيرانـوونکې مسـئله د وربښـمينې دسـمال خـبره وه. فيلسـوف حتما بـل شـاگرد هـم لـري؟ هـو هرومرو يـې هيلـده بلـه زده کـوونکې ده. دې بـل زده کـوونکې د خپلـې غـاړې دسـمال ورک کـړى دى. ښـه دا خـو سـمه ده؛ خـو پوښتنه دا ده چې دغـه دسـمال د سـوفي تـر کـټ لانـدې څـه کـول، هلته څنگه پيدا شو؟

اوهو دا بله خبر... آلبرتو کناکس... دا نو څه ډول نوم دى؟

خو يـو څـه روښـانه شـول، چـې هيلـده مولرگنـاک لـه دغـه فيلسـوف سره اړيکـه لـري. نـو د هغـه پـلار بيـا لـه دې مسـئلې سره څـه اړيکـه لـري، ولـې يـې ادرس غلط ليکلى و؟ په دې مسله يې نو هيڅ سر نه خلاصېده.

سـوفي څـو شـېبې پـه خپلـه وړه جـونگړه کـې پښـې وغځـولې او پـه سـوچونو کـې ډوب شـوه. د هغـه او هيلـده تـر مـنځ څـه اړيکـه پيـدا کېـدلاى شي؟ فکـر يې کوم څـه تـه و نـه رسېد. فيلسـوف لـيکلي و، چـې يـوه ورځ بـه سره وگـوري. ښايي هيلده هـم ووينـي. د لیـک څـنډ يـې وکـوت، ځينـې جملـې يـې پر څـنډ هم ليکل شوې وې:

- د شرم احساس طبعي دى؟
- هر څوک که پوه شي يا پوه نه شي تر ټولو پوه دى.
- ربښتينې بصيرت په وجود کې د ننه دى.
- هر څوک که پوه شول چې سم څه دي، په ناسمو پسې نه گرځي.

سوفي پوهېـده چـې کـه پـه واړه پاکـټ کـې وړې جملـې راغلـې، نـو تـر شـا يـې هرو مرو پـه لويـو پـاکټونو کـې لـويې خـبرې راځـي. ناڅاپـه يـې فکـر تـه ورغلـه کـه قاصـد پـه دې پسـې نـور ليکونـه راوړي، نـو هرومـرو بـه يـې پټنځـي تـه راوړي، همدلتـه بـه ورتـه پـاتې شي، پـه همـدې وخـت کـې بـه يـې کلـک ونيسي او د فيلسوف پـه اړه بـه نـور معلومـات هـم تـرې واخـلي. پـه لیـک کـې د واړه قاصد په اړه ويل شوي وو، ښايي کوچنى ماشوم وي.

- د شرم احساس طبعي خبره ده؟

سوفي پوهېده چې شرم د خجالت، ادب لرلو او تر اغېز لاندې تللو په مانا دی. لکه سړی چې لوڅ وي شرمېږي. خو له لوڅوالي خجالت کېدل په رښتیا طبعي خبره ده؟ له ځان سره یې وویل، که طبعي وي نو باید ټولو ته یو شان وي. د نړۍ په ډېرو هېوادونو کې لوڅوالی طبعي خبره ده. نو په دې اړه پرېکړه ټولنه کوي، موږ نه شو ویلی چې دا کار به وکړو او دا کار به و نه کړو. په دې اړه پرېکړې ټولنو کړې دي. د سوفي نیا چې کله پېغله وه، ښځې او پېغلې به لوڅې سینې لمر ته خوړینې نه وې پرتې. خو اوس ډېر خلک دا فکر کوي، چې دغه مسئله طبعي ده. سره له دې چې په ډېرى هېوادونو کې دا کار منع دی. له ځانه یې پوښتنه وکړه او خدایه! دا نو له فلسفې سره څه اړیکه لري؟

دویمې جملې بیا ویل، هر څوک که پوه شي یا پوه نه شي تر ټولو پوه دی.

تر چا پوه دی؟ که د فیلسوف موخه وي چې پر آسمان او ځمکه نه پوهېدونکی کس تر هغه پوه دی چې د ځمکې او آسمان په اړه لږ معلومات لري، خو فکر کوي چې په ډېر څه پوهېږي. ښه په دې کې خو شک نشته! سوفي تر دې وړاندې ددغې موضوع په اړه هېڅ فکر نه و کړی. خو اوس یې چې هر څه فکر کاوه دا مسئله ورته روښانه کېده، ددې په خبره د هغه څه په اړه پوهېدل چې نه وربانده پوهېږو پخپله یو ډول پوهه ده. تر ټولو احمقانه کارو خو دا دی، چې د یوه شي په اړه هېڅ نه پوهېږو، خو داسې ښیو چې په هر څه پوهېږو.

په دریېمه جمله کې راغلي و، چې حقیقي بصیرت له وجوده سرچینه اخلي.

زموږ معلومات لکه چې له بهر نړۍ ذهن ته نه د ننه کېږي؟ له بلې خوا د سوفي ښه په یاد دي، مور به یې ښوونکو ته ویل، هغه شیان سوفي ته ور وښيي چې دا یې د زده کولو شوق نه لري. ډېر وخت یې هغه څه زده کړي وو، چې دې یې په زده کړه کې برخه اخیستې وه. کله کله ناڅاپي په

ځينو شيانو پوه شوې وه. له دې څېړونو ډېرې يې هېڅ وخت د هغې له ذهنه نه وتل. ښايي له بصيرت د خلکو موخه همدا وي.

سوفي فکر وکړ چې د لومړيو دريو پوښتنو په اړه ښه روانه ده. خو وروستی جمله دومره عجيبه وه، چې خندا يې ور وسته. که څوک پوه شي چې ښه څه دي، بدو ته لاس نه ور وړي.

ددې خبرو مانا خو به همدا نه وي، غله په ښه او بده نه پوهېږي، نو ځکه بانکونه لوټوي. خو د سوفي په دې جمله قناعت حاصل نه شو.

ددې په باور هم کوچنيان او هم لويان احمقانه کارونه کوي. وروسته کله کله پښېمانه شي. دوی وايي پښېمانه يو، ځکه کار مو په ناپوهی کې کړی دی.

په خپل پټنځي کې لا هم ناسته وه، د پڼو غږ شو، پاڼې ماتېدلې، د زړه درزا يې ډېره شوه. فکر يې وکړ چې قاصد به وي. غږ را نږدې کېده، د پڼو له غږ احساسېده چې کوم حيوان دی.

څو شېبې وروسته لوی سپی پټنځي ته د ننه شو. لوی قهوه يي پاکټ يې په غاښونو کلک نيولی و. د سوفي له پښو سره يې وغورځاوه. دا کار دومره په بېړه وشو چې سوفي د ښورېدو وخت هم پيدا نه کړ. څو شېبې وروسته ليک د سوفي په لاس کې و او طلايي سپی د ځنګل په منځ کې ورک شو.

کار چې تر کار تېر شو، نور څه يې له وسه پوره نه وو، په ژړا سر شوه!

څو شېبې همداسې ناسته وه، پام يې نه و، چې څومره وخت به تېر شوی وي. سر يې پورته کړ، له ځان سره يې وويل:

- ښه نو قاصد دا و

اوږده سا يې و ايسته، ښه نو د همدې لپاره به د پاکټ کونجونه سوري وو. ولې يې دغه فکر وختي مغز ته را نه غی. اوس د فيلسوف ددې خبرې په علت پوه شوه، چې ولې بايد له پاکټ سره لږ خواږه شي کېږدي.

د سوفي تمرکز هومره په ځای نه و. خو کله یې فکر کولای شو، چې قاصد یو روزل شوی سپی دی. دا نو یو څه غیر عادي مسئله وه. ښه نو موضوع هغه وخت ښه روښانه کېده، چې آلبرتو کناکس او ځای یې پیدا شي. لوی قهوه یي پاکټ یې پرانیست.

**د آتن فلسفه**

سوفي ګرانې! دا لیک چې لولې، نو هرمس به دې لیدلی وي.که دې نه وي لیدلی نو درته و به وایم، هغه سپی دی. خو دارېږه مه. هېرمېس ډېر با ادبه دی. تر ډېرو بنیادمانو په ځلونو هوښیار دی. بله خبره، هېڅ وخت هڅه نه کوي ځان تر حد ډېر ځیرک وښیي، یا ځان تر شته حالت لوړ وښیي. ورته پام به دې وي، نوم یې هم بې مانا نه دی.

د یونان په اسطورو کې هېرمېس د خدایانو قاصد دی. په سیندونو کې د ګرځېدونکو کسانو خدای هم دی. ښه پرېږده یې اوس دې خبرو ته نه نوځو. تر ټولو مهمه دا ده، چې هېرمېس خپل نوم هرمتیک ته ورکړی دی، چې د ناپیدا او پټ مانا لري. نو د هېرمېس له رول سره برابره ده، ځکه هغه هم هڅه کوي ما او تا له یو بله بېل کړي.

دا نو د قاصد په اړه و! نوم یې له کارونو او خبرې سره ښه سم برابر دی.

را و به ګرځو فلسفې ته. د خپل درس لومړی برخه مو په تېرو درسونو کې ولوسته. زما موخه د طبعي فیلسوفانو مطالعه ده، چې دوی مو په پوره توګه له اسطوري نړۍ بېل کړل. اوس ورځو د درېیو کلاسیکو فیلسوفانو په لور، موږ به درې ستر فیلسوفان، افلاطون، ارسطو او سقراط ولولو. دا درې کسه په خپل وار او خپله بڼه پر ټول اروپایي تمدن اغېز لري.

طبعي فیلسوفانو ته تر سقراط مخکې کسان هم وایي. ځکه تر سقراط یې وړاندې ژوند کاوه. دیموکریتوس تر سقراط یو څه وخت وروسته ژوند کاوه. خو فکرونه یې ټول تر سقراط مخکې طبعي فیلسوفانو ته ورته وو. سقراط د زمان او مکان دواړو له اړخه د نوي عصر ـ استازی دی. هغه په آتن کې پیدا شوی ستر فیلسوف و. ده او دوو ځای ناستو یې په اتن کې

ژوند وکړ. په ياد به دې وي، چې آناکساگوراس هم يو څه وخت په آتن
کې ژوند وکړ، خو هغه يې پسې واخيست او له آتن يې و ايست. څکه ده
ويلي وو، چې لمر په هوا کې خوړنده ډبره ده. ( د سقراط برخليک تر دې
هم بد و ).

آتن د سقراط له زماني د فرهنگ مرکز شو. په همدې وخت کې د فلسفې
کار او بڼه له طبعي فلسفې سقراطي ته واوښته. خو مخکې تر دې چې د
سقراط په اړه څه درته ووايم، ښه به وي چې د سوفسطايانو په اړه
معلومات درکړم. دوی د سقراط په وخت کې د اتن پر ښار واکمني کوله.

پرده پورته کېږي، د مفکورو تاريخ! سوفي، تر اوسه هم پر ډېرو پردو دغه
ننداره روانه ده.

**انسان د هر څه مرکز دی**

له ميلاد ۴۵۰ کاله مخکې، يونان د نړۍ فرهنگي مرکز و. فلسفه تر دې
وروسته پر نوې لاره برابره شوه.

طبعي فيلسوفانو په هغه وخت کې يوازې د مادي نړۍ شننه کوله. له
همدې امله د علومو په تاريخ کې مهم ځای لري. په دې وخت کې د اتن
پام فرد او په ټولنه کې د فرد ارزښت ته واوښت. ورو ورو يو ډول
ولسواکي او قانونيت رامنځته شو، تر څنگ يې قضايي محاکم جوړ شول.

ددې لپاره چې ولسواکي حاکمه شي، بايد خلک تر خپلې وسې پورې
پوه وي، زده کړې وکړي او ځان ورسوي، څو وکړای شي په ولسواکو
بهيرونو کې ونډه واخلي. زموږ په وخت کې هم وينو چې نوې ولسواکۍ
د ذهنيتونو وينبونې ته پوره پوره اړتيا لري. د آتن د خلکو لپاره تر ټولو
مهم اصل دا و، چې اغېزناکه وينا وکړي. دوی د خبرې کولو مهارت
لوړاوه، څو وکړای شي قناعت بښونکې خبرې وکړي.

په دې وخت کې د فلسفې ښوونکو، چې تر دې وړاندې به يې له يوه
ځايه بل ته کډه کوله، يونان ته مخه کړه. دوی ځانونه سوفسطايان بلل. دا

کلمه د عقل پال په مانا ده. دوی په آتن کې خلکو ته زده کړې ورکولې او له دې لارې يې پيسې گټلې او ژوند به يې تېراوه.

سوفسطايانو له طبعي فيلسوفانو سره مشترکه وجه لرله. دوی هم پخوانيو اسطورو ته په انتقادي نظر کتل. فلسفي خيالونه او شننې يې بې گټې بللې. دوی به تول فلسفي خيالونه او خوبونه ردول. دوی به ويل، که فلسفي پوښتنې ځواب هم ولري؛ نو د ځواب کول يې د بشر-له توانه وتلې خبره ده. ددوی په وينا د نړۍ او کايناتو پټې معماگانې انسان نه شي حل کولای، نو فيلسوفانو ته نه ده په کار چې په اړه يې خيالي خبرې وکړي. دوی به په فلسفه کې دغه مواردو ته شک پالنه[1] ويله، اوس هم دغه چاره شک پالنه نومېږي.

سوفسطايانو به ويل، که دغو پوښتنو ته ځواب نه شو پيدا کولای؛ نو دا خو کولای شو چې ژوند کول زده کړو. انسان بايد پوه شي، چې څه ډول ژوند وکړي. له دې امله سوفسطايانو انسان او په ټولنه کې د انسان ځای ځايگي ته خپل پام اړولی و.

پروتاگوراس[2] (۴۸۵-۴۱۰ م ز) سوفسطايي و. هغه به ويل، انسان د هر څه مرکز او ميزان دی. د ده په خبره ښه او بد، سم او ناسم تل بايد د فرد اړتياوو ته په کتو په نظر کې ونيول شي. له ده پوښتنه وشوه، چې د يونان پر خدايانو باوري دی؟ په ځواب کې يې وويل، چې دا پوښتنه پېچلې ده او زموږ عمر ډېر کم. هغه څوک چې د خدايانو د موجوديت او رد په اړه څه نه شي ويلی، نو هغه ته (ناخبره يا بې معلوماتو)[3] وايي.

سوفسطايانو ډېر سفرونه کړي وو، دوی په سفر کې پاخه خلک وو. ډول ډول حکومتونه يې ليدلي وو. عرف، قانون او دود د يونان په ښارونو او مستعمرو کې ډېر توپير درلود. نو سوفسطايانو په دې پسې را واخيسته، چې څه شی طبعي دي او څه شی انسان په ټولنه کې زده کولای شي. په

[1] Secphecism
[2] Protogoras
[3] Agnostic

دې توګه دوی ټولنیز نقد ته لاره هواره کړه او د یونان پر ځایي حکومت یې نیوکې پیل کړې.
دوی به د بېلګې په توګه ویل، چې د شرم له کلمې دفاع کول پر ځای خبره نه ده. ځکه ددوی په خبره که شرم طبعي وي، نو ذاتي عمل دی چې د انسان په ختېه کې اخښل شوی، له ټولو سره یو ځای پیدا شوی او ټول باید شرم ولري. خو سوفي! سوفي! رښتیا هم شرم ذاتي دی؟ که یې ټولنه موږ ته را زده کوي. د هغو لپاره یې ځواب آسانه دی چې د ژوند ډېرې سرې تودې یې تېرې کړې دي. د دوی په نظر لوڅوالی طبعي دی، دوی له دې اړخه ورته هم نه لري. شرم او بې شرمي په ټولنه کې د شته عرف پایله ده، دا ټولنیز ژوند او ټولنیزې روزنې ته ور ګرځي.
ته نو اوس پوهېږې د سوفسطیانو دې خبرې، چې حق او نا حق کوم ټاکلی معیار نه لري، په یونان کې څه غوغا جوړه کړه؟ دې خبرې په آتن کې رښتیا هم ستره غوغا جوړه کړه.
سقراط نو بیا هڅه وکړه خو خپله خبره ثابته کړي، ده به ویل، په ژوند کې ځینې معیارونه تلپاتې او نه بدلېدونکي دي او هغه د ټول لپاره د باور او ساتلو وړ دي.

## سقراط څوک و؟

سقراط د (۴۷۰- ۳۹۹ م.ز) کلونو تر منځ ژوند کړی دی. هغه د فلسفې په تاریخ کې له رمزونو ډکه څېره ده. سقراط یوه کرښه هم نه ده لیکلې. خو ددې تر څنګ داسې کس دی، چې پر اروپایي مفکورو او فلسفه یې پوره اغېز پرې ایښی دی. اغېز یې یو بل څه لا پسې ډېر کړی، هغه دده زړه بوږنوونکی مرګ دی.
ته به پوهېږې، چې سقراط په اتن کې نړۍ ته سترګې غړولې دي. د ژوند ډېره برخه یې ددې ښار په کوڅو او میدانانو کې له خلکو سره په خبرو تېره کړې ده. ده به ویل له ښاره بهر ونې موږ ته څه نه شي راښودلی. سقراط به کولای شو، چې ساعتونه ساعتونه چېرته په فکر کې ډوب شي.

سقراط يې ان د ژوند په اوږدو کې هم له رمزونو ډک سړی و. تر مرگ وروسته يې د فلسفې د بېلو مکتبونو بنسټگر و نومول شو. د هغه د فکرونو ابهام او رمزونه ددې سبب شول، چې نن يې د فلسفې هر مکتب د خپل ځان وبولي.

په دې کې شک نشته، چې هغه ښه سم بدرنگ و. غټه خېټه، راوتلې سترگې او پلنه لنډه پوزه يې لرله. خو ويل کېږي چې باطن يې د هر څه ښه و. فيلسوفان يې په اړه دا هم وايي، چې تر ده مخکې او وروسته به يې جوړه پيدا نه شو کړای. هغه يې د خپلو فلسفي فعاليتونو له امله په مرگ محکوم کړ.

موږ د افلاطون له ليکنو د سقراط په اړه يو څه معلومات تر لاسه کولای شو. هغه يې شاگرد و، هغه پخپله هم په تاريخ کې يو ستر فيلسوف شو. افلاطون په فلسفه کې ډرامې ته ورته بحثونه ليکلي دي. په دې خبرو اترو او مکالمو کې سقراط د خبرو او پوښتنو اصلي کرکټر دی.

افلاطون خپله فلسفه د سقراط له خولې ليکي. نو له دې اړخه دا شک کېدای شي چې دا شيان په رښتيا هم سقراط ليکلي که د افلاطون خپلې خبرې دي او په سقراط پسې يې تړلي دي. نو د سقراط او افلاطون د مفکورې او ښوونو ترمنځ توپير کول گران کار دی. دا خبرې د ډېرو په اړه صدق کوي، د ډېرو هغو کسانو ليکنې د شک وړ دي چې په خپله يې څه نه دي ليکلي؛ خو نورو ليکلي او دده په نامه يې ثبت کړي دي. ښه نمونه يې حضرت عيسی(ع) دی. په دې باور گران دی چې د عيسی(ع) په نامه راپاتې شيان د هغه دي او که نه، يا په بله وينا هغه څه چې متی يا لوقا په ده پسې ويلي دي، رښتيا د هغه خپلې خبرې دي که د نورو. د سقراط رښتيني فلسفه هم همداسې د رمزونو په يوه تیته کې پېچلې ده.

خو دا چې سقراط په رښتيا څوک و، دومره مهمه موضوع نه ده، هغه څه چې مهم دي، د افلاطون په فلسفه کې د سقراط انځور دی. هغه څه، چې ۲۴۰۰ کاله يې د غرب فلسفې ته الهام ښندلی دی.

## د ويلو او اورېدلو هنر

د سقراط اصلي هنر په دې کې و چې مستقيم يې چا ته د څه ورښودلو هڅه نه کوله، په دې مانا چې مسقيم به يې نه ويل دا وکړه دا مه کړه، خو په خبرو خبرو کې به يې هغه ته قناعت ورکاوه. هغه به داسې ښوده، چې ګواکې له مخاطب د څه زده کولو هڅه کوي. نو د همدې لپاره به يې د زړو ښوونکو په څېر مستقيم درس نه ورکاوه بلکې په خبرو اترو به بوخت و.

دا خو ښکاره خبره ده، که يې پوازې په اورېدلو بسنه کړې وای، دومره مشهور فيلسوف نه ترې جوړېده. نو ښايي هغه يې په مرګ هم نه وای محکوم کړی. د هغه تګلاره دا وه، چې په لومړي سر کې به يې يوازې پوښتنې کولې، داسې به يې ښودله چې په هېڅ شي يې سر نه خلاصېږي. هغه به خپل مخاطبان داسې حالت ته راوستل، چې د خپل دليل کمزوري به له ورايه ورته ښکارېده. په پای کې به يې هغه اړ ايست، چې د سم او ناسم تر منځ توپير وکړای شي او د سقراط خبره و مني.

سقراط چې مور يې قابله وه، نو خپل هنر ته به يې هم د قابلګی هنر وايه، ده به ويل قابله په خپله اولاد نه زېږوي خو د هغه حضور ددې سبب کېږي، چې د زېږېدو بهير آسانه شي. ده به ويل زه هم خپل کار داسې کوم. سقراط به له خلکو سره مرسته کوله، چې د نړۍ په اړه روښانه ليدلوری ولري. دده په وينا اصلي درک له باطنه راځي. نور خلک نه شي کولای باطني درک مور ته راکړي. د سقراط په خبره، هغه درک چې باطني دی او له باطنه راځي مور ته حقيقي بصيرت هم راکولی شي.

زه به دا خبره لږ درته واضح کړم سوفي! زېږون يوه طبعي ښکارنده (پديده) ده. په همدې توګه که څوک فطري عقل په کار واچوي، کېدای شي فلسفي حقايق درک کړي. له فطري عقل ګټه اخيستل په دې مانا ده، چې د وجودو ژورو ته لاره کوي او په دې توګه هغه پټ شيان له وجوده راوباسي چې تر اوسه نه دي را ايستل شوي.

سقراط ځان ناپوهه ښوده، له همدې کبله يې هغه کوله، چې خلک د خپل عادي شعور کارونې او ګټه اخيستنې ته اړ کړي. سقراط ځان ناپوهه ښوده، داسې يې ښوده، چې په هيڅ نه پوهيږي. دغه کار ته سقراطي تجاهل وايي. دې چارې به ده ته قوت ورکاوه، چې د خلکو د تعقل او تفکر کمزورې تکي پيدا کړي. هغه يې پروا نه کوله، چې دا کار چېرته کوي، د ښار په ميدان کې به هم له خلکو سره پر بحث لګيا و. داسې هم کېدل چې له سقراط سره هسک تيټ کېدونکي کسان به خلکو مسخره کول.

په همدې توګه خلک ورځ په ورځ له هغه لرې کېدل، په تېره هغه کسان چې په اتن کې يې موقف درلود يا چارواکي وو. يوه ورځ يې وويل ( آتن لټې اسپې ته ورته دی، چې زه يې لکه د ځارويو مېچ په هر نيش ښوروم او حرکت ورکوم).

(ربښتيا سوفي! سړی به نو د ځارويو له مچ سره څه وکړي؟)

**الهي غږ**

سوفي يوې خبرې ته دې پام وي، سقراط ددې لپاره نورو بنيادمانو ته نيشونه نه ورکول، چې و يې خوروي. يو څه په هغه کې دننه روان وو، چې دغه کار ته يې اړ ايسته. ده به تل ويل، په خپل باطن کې الهي غږ اوري. د بېلګې په توګه سقراط تل ددې مخالفت کاوه، چې خلک دې پر مرګ محکوم شي. ددې تر څنګ هيڅ وخت يې چارواکو ته له سياسي ښکنځلو لاس وا نه خيست. همدا کارونه يې په پای کې د مرګ سبب شول.

په ۳۹۹ م ز کال کې يې پر هغه تور ولګاوه چې نور خدايان يې پيدا کړي دي او ځوانان يې لارې کوي. ويل به يې سقراط د ټولو د باور وړ پر خدايانو ايمان نه لري. د قاضيانو پنځسوه کسيزې دلې په ډېر کم اکثريت هغه په مرګ محکوم کړ.

په ډېر قوي احتمال سقراط کولای شو بښنه وغواړي. لېږ تر لږه دا خو يې په وس پوره وو، چې آتن پرېږدي او په نورو سيمو کې خپل کار ته ادامه ورکړي. خو که يې داسې کار کړی وای، نور نو سقراط نه و او له منځه به تللای و. سقراط تر خپل ځان او وجود «حق» او «حقيقت» ته ډېر ارزښت ورکړ. د قاضيانو ډلې ته يې وويل، چې تاسې د هېواد په خير او صلاح پرېکړه کړې ده. هغه يې اړ ايست چې شوکران جام پر سر واړوي، څو شېبې وروسته يې ملګرو هغه ته زهر ورکړل او ساه يې ورکړه.

ولې سوفي؟ ولې بايد سقراط مړ شوی وای؟ ۲۴۰۰ کاله کېږي چې ټول دغه پوښتنه کوي. خو لنډه به يې ووايم؛ هغه د تاريخ يوازينۍ څېره نه وه، چې د خپل ژوند لاره يې تر پايه له خپګان او زهرو ډکه وهلې ده او د خپلو باورنو لپاره يې ساه ورکړې ده.

همداسې مخکې مو ياده کړه، چې بله څېره حضرت عيسی(ع) وه. دغه دواړه کسان په څو برخو کې له يو بل سره ورته والی لري.

عيسی او سقراط دواړه د خپلو هم عصرو لپاره مرموزې څېرې وې. يوه هم خپل تعليمات و نه ليکل، له همدې امله اړ يو پر هغو تصويرونو تکيه وکړو چې شاګردانو يې تر موږ را رسولي دي. خو يوه بله خبره هم کولای شو چې دواړه د ويلو او اورېدلو استادان تېر شوي دي. دوی دواړو په دومره ډاډمن لحن خبرې کولې، چې مخاطب يې هم ځان ته جذبولای شو او هم يې ښه غوسه کولای شو. بله د ارزښت وړ خبره دا ده، چې ويل به يې د بل ستر قدرت په استازولۍ خبرې کوي. دوی دواړو پر ټولنې د حاکم وضعيت پر وړاندې غبرګ پورته کړ. دوی له فساد او بې عدالتيو سره مبارزې ته ملا وتړله. په پای کې دواړو د خپلو کړنو لپاره قرباني ورکړه.

د دوی تر تګ وروسته د دوی لاره تازه شوه، زرګونه او آن ميليونونه پيروان يې پيدا کړل. زه نه غواړم سقراط او عيسی(ع) په يوه کتار کې ودروم، يوازې غوښتل مې دې ته دې پام را واړوم چې دواړو يو پيغام درلود، خو ددوی پيغام يې د شخصيت له شهامت او قوته نه بېلېدونکی و.

**یو مسخره سړی په آتن کې**

بیا هم سقراط؛ سوفي!

له سقراط سره مو کار خلاص شوی نه دی. د هغه تګلاره مو ولیده، خو د هغه کار او موخه څه وه؟

سقراط د سوفسطایانو معاصر سړی و. ددوی په څېر یې، له انسان او په طبیعت کې د انسان له ځای ځایګي سره ډېره مینه لرله.

سیسرون[1] روفي فیلسوف، د هغه تر مرګ څو کاله وروسته وویل، سقراط فلسفه له آسمانانو ځمکې ته راکښته کړه، فلسفه یې ښارونو ته یوړه، کورونو ته یې یوړه، فلسفه یې د ژوند، اخلاقو او خیر و شر چوپړ ته راوسته.

خو سقراط له سوفسطایانو سره یو ستر توپیر درلود. ده به ځان سوفیست یا پوه او هوښیار نه باله. هغه د سوفسطایانو پر خلاف د پیسو لپاره خلکو ته زده کړه نه ورکوله. هغه به ځان فیلسوف باله، چې د عقل او پوهې د مینه وال په مانا ده.

سوفي پام دې دی چې څه وایم؟ ځکه د سوفیست او فیلسوف تر منځ توپیر زموږ د درس د ادامې لپاره خورا مهمه مسئله ده. سوفسطایانو د خپلو لږ و ډېرو زده کړو لپاره له خلکو پیسې اخیستې. په دې توګه ډېر سوفسطایان له ډېرو مودو راهیسې راغلي او تللي وو. دوی ځانونه ډېر پوه او خیرک انسانان بلل. دوی د ډېرو هغو مسایلو په پار پر ځان ویاړ کاوه چې هیڅ یې په اړه نه پوهېدل. ته به هم ښایي په دغه کم عمر کې له ډېرو داسې کسانو سره مخ شوې وې، چې ځان یې پوه، پوه ښودلی وي، خو په حقیقت کې هیڅ هم نه وي. ګرانې سوفي! فیلسوف په حقیقت کې له سره یو بدل موجود دی. دوی د یادو ځانګړنو په مقابل کې ولاړ خلک دي. فیلسوف پوهېږي چې په ډېرو کمو شیانو یې سر خلاص دی. نو ځکه تل هڅه کوي چې حقیقي بصیرت ته ورسېږي. سقراط هم ددغو نادرو کسانو

---

[1] Ciceron (۱۰۶-۱۴۲ م ز)

له ډلې يو و. ده به ويل، د نړۍ او انسان په اړه په هيڅ نه پوهيږي. تر ټولو به ډېر دې مسئلې خوراوه چې هيڅوک هم په ډېرو شيانو دومره ډېر نه پوهيږي يا په بله خبره دا چې د انسانانو پوهه څومره کمه ده.

په دې توګه نو فيلسوف داسې څوک دی، چې د خپلې ناپوهۍ په کچه پوهيږي يا په بله وينا په دې پوهيږي چې پر څومره ډېرو شيانو نه پوهيږي، نو د ځان د پوهولو لپاره هڅه کوي. فيلسوفان له خپلې ناپوهۍ ځوريږي. خو يوه خبره کوم، فيلسوف له يادو خبرو سره سره تر هغو کسانو په ډېرو شيانو پوهيږي چې د پوهې لاپې وهي. مخکې مې وويل: (هرڅوک که پوه شول، چې په څه نه پوهيږي تر ټولو پوه دی). نو د سقراط دا خبره په ياد لره، چې په څه نه پوهيږي دا يو نادر اعتراف دی. دغه ډول خبرې د عامو خلکو پر وړاندې کول د سر خطر لري. هغوی چې پوښتنې کوي کله کله ډېر خطرناک خلک وي. پوښتنه کول ډېر خطر نه لري خو يوه پوښتنه کولای شي زر خطرناک ځوابونه ولري.

د امپراطور د نوو جامو کيسه دې په ياد ده؟ امپراطور لوڅ لغړ راوتلی و، خو هيڅ چارواکي خوله نه شوای چوله کولای. يو دم يوه ماشوم چيغه وکړه:

- اهه ده نه ګوره. هيڅ يې نه دي اغوستي!

سوفي! دغه ماشوم قوت درلود. د سقراط په څېر، ده هم جرات وکړ چې له بنيادمانو سره په نوو شيانو خبرې وکړي. د ماشوم او فيلسوف د ورته والي په اړه مو مخکې خبرې کړې دي.

په بله وينا، بشر-له ډېرو داسې پوښتنو سره مخ دی، چې قانع کوونکي ځوابونه نه شي ورته پيدا کولای. نه نو دوه کاره کولای شو. يا بايد ځان او چار چاپېره نړۍ وغولو او ووايو، چې په هر څه پوهيږو. يا بايد تل تر تله پر مسايلو سترګې پټې کړو او پرمختګ ته شا کړو. بشريت له دې اړخه په دوو ډلو وېشل کېږي. انسانان يا سل په سلو کې ډاډه دي. يا سل

په سلو کې بې تفاوته. (خو ګوره دواړه ډلې د سویې د وېښتانو منځ کې ننوتې او لغتې وهي!)

دا دې ته ورته ده ګرانې سوفي! لکه په یوه سپینه پانه، چې یوې خوا ته تور خالونه رسم کړې بلې خوا ته سره، دا نو نه لال شي نه قره، یوازې د قطعې جوکر ځینې جوړ شي. سقراط هم په آتن کې همداسې یو سړی و. نه بې تفاوته و او نه هم ډېر ډاډه. هغه پوهېده چې په هېڅ نه پوهېږې، همدې مسئلې ځوراوه، نو ولاړ فیلسوف شو. فیلسوف داسې کس دی چې تسلیم کېږي نه، حقیقت ته د رسېدو لپاره د ستړیا احساس نه کوي.

وايي، یو وخت د دلفي معبد له غیب ویونکي چا پوښتنه وکړه، چې د اتن تر ټولو هوښیار کس څوک دی؟ غیب ویونکي وویل، تر ټولو هوښیار کس سقراط دی. سقراط چې دا خبره واورېده خوله یې وازه پاتې شوه.

- هغه به ډېر خندلي وي سوفي!

یوه ورځ ولاړ، هغه چا ته چې په اتن کې یې تر ټولو پوه باله. د سقراط پوښتنو ته یې ځوابونه ور نه کړل. بیا نو پوه شو چې غیب ویونکی هم هسې چټیات وايي، نه زه د ښار تر ټولو هوښیار یم او نه هغه سړی د ښار تر ټولو پوه.

سقراط به ویل، چې باید د خپل معرفت لپاره قوي ودانۍ جوړې کړو. باوري وو، چې ددغې ودانۍبنسټ د انسان عقل دی. نو دا چې سقراط پر عقل دومره باور درلود له دې امله یې عقلپال هم بللی شو.

**ښه لیدلوري د ښه عمل سبب کېږي**

سقراط به تل ویل چې په وجود کې یې یو الهي غږ دده ملتیا کوي. دده په وینا همدا وجدان دی چې ده ته سم او ناسم ښيي. (که څوک پوه شي چې سم څه دي په ناسم لاس نه پورې کوي).

موخه یې دا وه چې سم لیدلوری د سم عمل سبب کېږي. دده په وینا یوازینی کس چې سم عمل وکړي هغه ته پاک انسان ویلای شو. که په ناسم عمل لاس پورې کوو، په دې مانا ده چې په سم څه نه پوهېږو. له

دې امله د پوهې او علم حاصلول ډېره مهمه خبره ده. سقراط هڅه کوله، چې د حق او ناحق لپاره يو نړيوال تعريف پيدا کړي. د سوفسطايانو پر خلاف به يې ويل، د حق او ناحق د تميز وسيله د انسان عقل دی نه ټولنه.

دا وروستی برخه؛ سوفي! بې مانا به درته ښکاره شوې وي. ته صبر زه به يې په بله بڼه درته ووايم. سوفي! سقراط به ويل که څوک د خپلې پوهې پر خلاف عمل وکړي نو بد مرغه دی. خو که څوک پوه شي چې نېکمرغي څنګه تر لاسه کولای شي، نو هرو مرو ور پسې ځي. پر همدې بنسټ که څوک پوه شي چې ښه څه دي بد نه کوي. څکه؛ ولې يو سړی په لوی لاس ځان بدمرغه کړي؟

- نظر دې څه دی سوفي؟ که پوهېږې چې کارونه دې ناسم دي او ادامه ورکوې، نو ارامه او ژوند کولای شې؟ ډېر خلک پېژنم چې درواغ وايي، خلک غولوي، دوی پوهېږي چې دا کارونه يې سم نه دي؟ يا که په بله بڼه ووايم؛ کارونه يې ناروا دي؟ دا بنيادمان فکر کوي چې نېکمرغه دي؟

سقراط به ويل، چې نه دي.

ليک يې په بېړه بېړه ولوست. په ډبلي کې يې کېښود. له پټنځي را ووته، مستقيمه کور ته ولاړه. د مور تر راتګ مخکې يې، بايد لوښي يې مينځلي وای. تر څنګ يې بايد ځان لړ منظم کړی وای. هسې نه مور يې بيا شک وکړي، يا د نشې او ترياکو خبره ورته ياده کړي.

د لوښو مينځلو ځانګړی، ځای يې نوی له اوبو ډک کړی و، چې مور يې کړه وړه په ستمبدا تر کوره راغله. دوې درې کڅوړې يې په لاس کې وې. سوفي ته يې ووېل:

- دې ورځو کې سخته په سوچونو کې ډوب يې.

بې له دې چې دا وغواړي يو دم يې له خولې ووتل:

- سقراط هم ډېر په فکرونو کې ډوب و.

- سقراط؟!

د مور خوله يې وازه پاتې شوه، دوه ګوتې يې خولې ته ونيوې، (آه) يې وکړل. خو سوفي فکرونو کې ډوب وه، خپلې خبرې ته يې ادامه ورکړه:

- د خواشينۍ خبره ده، چې په همدې خبرو يې سر ورکړ
- واى واى! سوفي زه هيڅ نه پوهېږم چې د تا سره څه وکړم!
- سقراط هم نه پوهېده چې څه وکړي، يوازې پوهېده چې په هيڅ نه پوهېږي. خو له دې سره سره د اتن تر ټولو هوښيار سړى و.

د مور ژبه يې بنده بنده شوه.

- دا شيان دې په ښوونځي کې زده کړي دي؟

سوفي يې سر د نه په مانا وښوراوه.

- ښوونځى هغه ځاى دى، چې مور هيڅ نه شو په کې زده کولاى. د ښوونکو او فيلسوفانو توپير په دې کې دى، چې ښوونکي فکر کوي په هر څه پوهېږي او دوى کوښښ کوي دا پوهه زموږ په ستوني هم ومنډي. خو فيلسوفان هڅه کوي له زده کوونکو سره يو ځاى پوښتنو ته ځوابونه پيدا کړي.
- بېرته به را وګرځو د سپينې سويې خبرې ته! اصل کې زه غواړم پوه شم چې ستا ملګرى هلک څوک دى.... که نه ورو ورو په دې فکر کې ډوبېږم چې ته ليونۍ شوې يې او غم دې بايد وخورم. يا به هغه ليونى وي.

سوفي يې مور ته مخ ور واړاوه. د لوښو مينځلو جالۍ يې د مور لور ته ونېوله.

- عقل يې ډېر ښه په ځاى دى، يوازې غواړي نورو ته نيشونه ورکړي چې له خوبه پاڅېږي.
- بس کړه نو! زما په نظر يو چټي انسان به وي

سوفي بېرته په لوښو مينځلو پيل وکړ.

- نه چټي دى نه پټي. غواړي رښتينى عقل ولري. د جوکر او نورو پاڼو توپير په همدې کې دى.

- څه! جوکر؟

سوفي يې سر وخوځاوه.

- تـر اوسـه دې فکـر کـړی، چـې د لوبـو پـه قطعـو کـې، خالونـه، لال، قره او دا شيان ډېر وي، خو جوکر يوازې يو دانه وي.

- يا ربه و مـې ژغـوره! دا پـه څـه بـلا واوښـتم، سـوفي څـه ژبـه دې اوږده شوې ها؟

- نو ته خو هم لږ پوښتنې نه کوې مجبوره شم!

مـور يـې کڅوړې کېښودې، ورڅېـانې يـې واخيسـتې، کـوټې تـه ولاړه. سـوفي پوه شوه چې مور يې تـر پخوا ډېـره پـه ځـان پسـې کـړه، اوس بـه يـې نـو لا ډېـره تعقيبوي.

سـوفي لوښـي ومينځـل، خپلـې کـوټې تـه ولاړه. وربښـميني سـور سـالو يـې را واخيست، بيا بيا يې ښه تر نظر تېر کړل.

- هيلده....!

# آتن

**...لوړو ودانیو له کنډوالو سر راپورته کړي...**

د شپې په لومړیو ساعتونو کې د سوفي مور د خپلې یوې ملګرې لیدو ته ورغله. همدا چې له کوره ووته، سوفي د پټنځي په لور منډه کړه. یو ډبل پاکټ د ستر کوټي څنګ ته ایښی و، هغه یې خلاص کړ، د ویډیو یو فلم پکې پروت و.

په منډه منډه یې خان کور ته را ورساوه. فلم! فیلسوف څه پوهېږي، چې دوی د ویډیو غږولو وسیله لري، بیا دا ویډیو د څه شي ده؟

سوفي ویډیو تلویزیون ته واچوله. پلن ښار د تلویزیون پر مخ راغی. کامرې په آکروپولیس تمرکز وکړ، سوفي پوه شوه چې آتن دی. ددغه پخواني ورانې ودانۍ انځورونه یې ډېر لیدلي وو.

ویډیو کې سیلانیان ښکارېدل، کامرې یې په غاړو کې خوړندې وې او پر ورانو کنډوالو ګرځېدل. یو کس، چې کارت یې په غاړه کې خوړند و، په ویډیو کې تېر شو، بېرته راپیدا شو. په هغه کارت لیکل شوي وو. هیلده!

یو دوې دقیقې وروسته، د یوه سړي څېره راڅرګنده شوه. سړی په عمر پوخ و، ډېر زوړ نه و، ونه یې یو څه ټیټه وه، ږیره یې توره وه، خو منظمه. یوه خولۍ یې هم پر سر وه. مخامخ کامرې ته ودرېد. و یې ویل:

سوفي! آتن ته ښه راغلې!

- ګوره زه البرتو کناکس یم، که باور نه لرې زه یو خل بیا وایم، هغه سپینه سویه لا هم د شعبده باز له خولۍ تروپونه وهي.

زه د آکروپولیس په محوطه کې یم. د آکروپولیس کلمه (د تپې پر سر ښار) په مانا ده. د ډېر تورونې د عصر- خلکو دلته ژوند کاوه. ښایي ددغه کار دلیل دا و، چې ډېر په زړه پورې موقعیت لري. دا تپه لوړه وه، نو پر هغه د دښمنانو هجوم ګران و. سره له دې

آکروپولیس په داسې یوه ځای کې و، چې د مدیترانې بندر ښه او ښکلې ترې ښکارېده. د همدې تپو په لمن کې لرغونی یونان پروت و. ددغه سیمې شنې دښتې یې نېولې وې. د آکرو پولیس بالاحصار یا کلا د ښار سپېڅلې زیارت و. د پنځمې پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې د ایران او یونان ترمنځ سخته جګړه وشوه. د ایران پادشا خشیارشاه په ۴۸۰ کال کې آتن و نیو. د آکروپولیس ټولې لرګینې ودانۍ یې وسېځلې. یو کال وروسته ایرانیان مات شول او دا نو د آتن د زرین پېر د پیل وختونه وو. آکروپولیس ودانۍ بېرته په هماغه پخواني شان او شوکت ورغول شوه، خو دا ځل یوازې یو سپېڅلی زیارت و.

په همدې وخت کې سقراط د آتن په لارو او کوڅو کې له خلکو پوښتنې کولې. همدلته به ګرځېده او پر بحث به بوخت و. هغه د آکروپولیس دویم ځل جوړېدل په خپلو سترګو لیدلي دي. دا یې لیدلي چې دغې ودانۍ څنګه له ورانیو سر راپورته کړ. اوه! سوفي چې څه کار به پر دغه ښکلې ودانۍ روان و!

زما شا ته انځور چې وینې، د آتن تر ټولو ستر معبد دی. پارتنون نومېږي، مانا یې د (باکره نجلۍ ځای) دی. دا ودانۍ د آتنه الهې په ویاړ جوړه شوې وه. هغه د آتن ملاتړې الهه وه. که دا معبد سر تر پایه وګورې مستقیم خط نه شې پکې پیدا کولی. ټول ستونونه یې دننه لوري ته کاږه دي یا ویلی شو چې انحنا لري. په دې توګه انسان د سترګو له خطا سره مخ کېږي. داسې فکر کوې چې دا ودانۍ مخ پر ورانېدو ده. خو داسې نه ده، دا له سپینو مرمرو جوړه شوې ودانۍ خورا پیاوړې او قوي ده. دا ستونونه سره یو ځای کېږي تر دې چې د ۱۵۰۰ متري په ارتفاع یو ښکلی هرم جوړوي. ددغه سترې ودانۍ په منځ کې نور هېڅ هم نشته، یوازې د آتنه الهې یوه ۱۲ متري مرمرینه مجسمه پکې ایښې ده. دغه د مرمرو

سترې دبرې چې يو وخت يې سپين رڼا رنګ درلود. له دې ځايه ۱۶ کليومتره لرې له يوه کانه راوړل شوې دي.
سوفي هکه پکه شوه. دا ريښتيا په خپله فيلسوف و؟ دا خبرې ده کولې؟
سوفي يوازې د هغه نيم مخه ليدلی و، هغه هم په تېره تياره کې. نو هغه همدا سړی دی، چې اوس د آتن په آکروپوليس کې ولاړ دی.
سړی د معبد پر مرمرو روان شو. کامره هم له شا ورپسې روانه وه. ګردې، دايروي برخې ته چې ورسېد مخامخ منظرې ته يې اشاره وکړه، کامره مخامخ ځای ته برابره شوه، د ننداره‌چيانو د ناستې ځای يې ښوده. دا نو د آکرو پوليس تر معبد لاندې سيمه وه.
خولۍ پر سر کړي سړي خپلو خبرو ته ادامه ورکړه: هلته کولای شې د ديونوسوس تياتر ووينې. دا نو په ډېر قوي احتمال د اروپا تر ټولو پخوانی تياتر دی. د آشيل، سوفکليس او يوريپيدس مشهورې ننداري همدلته خلکو ته وړاندې شوې دي. هېره دې نه شي چې هغه وخت د سقراط زمانه وه. مخکې مو د اديپوس کيسې ته اشاره کړې ده. د هغه تراژېدي، چې سوفوکليس ليکلې، د لومړي ځل لپاره دلته ننداري ته وړاندې شوې ده. کميډي هم دلته ننداري ته وړاندې کېدلې. د هغه وخت مشهور کميډي ليکوال ارسطوفان و. هغه د سقراط د مسخره کولو لپاره هم يوه ډرامه جوړه کړې وه. دی يې د آتن ښار مسخره نانځکه بللی و. د ډېرين ديوال شا ته وينې چې لوبغاړو لپاره د پردې تر شټ سيمې په ډبر يو ځای جوړ شوی دی. دغه ځای ته سکنه وايي. ددغه لغت ريښه سېن ده. ريښتيا د تياتر کلمه هم د يوناني ژبې له پخوانيو کلماتو جوړه شوې ده، چې د ننداري په مانا ده. خو سوفي بېرته به فيلسوفانو ته را وګرځو. اوس به پارتنون معبد کې را ګرځم او د سترې دروازې له منځه به ووځو.
له ونې ټيټ سړی په معبد کې را وګرځېد. په چپه خوا کې له څو نورو وړو معبدونو هم راتېر شو. وروسته د څو ستونونو مېنځ کې پر شته زينه ښکته شو. د آکروپوليس پای ته ورسېد، پر وړه تپه ودرېد او په خپل لاس يې د

آتن ښار ته اشاره وکړه. (دغه تپه چې زه ورباندې ولاړ یم، آریوپاګوس نومېږي. د آتن د عدالت ستره محکمه دلته وه. د محکمې غړي به دلته کېناستل او جزایي محاکمې به یې تر سره کولې. سل کاله وروسته یو عیسوي پولس دلته ودرېد او د آتن خلکو ته یې د عیسویت په اړه تبلیغ پیل کړ. په یوه بل فرصت کې به ددغه سړي خبرې هم درته وکړم. په چپه خوا کې مې، د اتن ښار د لرغونو میدانونو پاتې شوني لیدلای شې. د هفایستوس له معبد پرته چې د پښې (آهنګر) او فلزکارانو د خدای معبد دی، د نورو ټولو دومره آثار نه دي پاتې یوازې څو څو د مرمرو ډبرې یې پر ځای پرتې دي. څه چې ښکته شو....).
څو شیبې وروسته یې له لرغونو ورانو وېجاړو سر راپورته کړ. د آتنې معبد د آکروپولس د لوړې تپې پر سر ولاړ و. د سوفي د تلویزیون صفحه یې و نیوله. د فلسفې ښوونکی پر یوه مرمرینه وړه ډبره ناست و. سترګې یې په کامره کې خنبې کړې. و یې ویل:

- موږ د آتن په لرغوني میدان کې ناست یو. ګمان نه کوم چې دا دې غمګینه صحنه وي. موخه مې منظره ده.

یو وخت تر دغه میدان ګرد چاپېر محکمې، تیاترونه، هتې، د موسیقۍ تالارونه، آن ستر سپورتي میدانونه هم وو. دا شیان ټول تر دغه میدان ګرد چاپېره ودان وو. د ټولې اروپا تمدن له همدې میدانه پورته شوی دی.

- د سیاست، ولسواکۍ، اقتصاد، تاریخ، چاپېریال پېژندنې، فکر، ریاضي، منطق، الهیات او فلسفه، ارواپوهنه، نظام او نورې دې ته ورته کلمې د همدې سیمې یادګارونه دي. همدې کوچنۍ دلې چې ددغه میدان ګردچاپېره یې ژوند کاوه دا شیان رامنځته کړي دي. دا هغه ځای دی چې د سقراط ټول وخت دلته له خلکو سره په خبرو تېر شوی دی. ښایي سترګې به یې پر هغه غلام لګېدلې، چې د زیتون غوړیو یو لوښی یې په لاس کې دی، له یوه بې کوره او بې کسه به یې د فلسفې پوښتنې کولې.

سقراط باوري و، چې غلام او بادار یوه اندازه شعور او عقل لري. کله کله به له یوه ښاري سره په بحث بوخت و. هغه به ورو ورو له خپل ځوان شاګرد افلاطون سره په خبرو بوخت و. په اړه یې فکر وکړه فوق العاده خبره نه ده؟ دا چې سړی سقراط یا افلاطون وي خبرې نه وریاندې کوو، موږ اوس یوازې د سقراط په اړه خبرې کوو.

دا فکر د سوفي په سر کې فوق العاده ښکارېده، خو دا یې هم تر نظر فوق العاده ورغله، چې د سپي په لاس په راغلې ویډیو کې فلیسوف آن د آتن په اړه معلومات ورکوي.

فیلسوف له مرمریني ډبرې پورته شو. ورو ورو یې خبرې پیل کړې:

- سوفي پرېکړه مې کړې وه، چې همدلته یې پای ته ورسوم. غوښتل مې آکروپولیس او د اتن د میدان پاتې شوني در وښیم. خو باوري نه یم، چې د هغه وخت په ښکلي ژوند دې سر خلاص شوای وي. دا چې هغه وخت دا ځای څومره مهم و، څومره شان او شوکت یې درلود، دا د یوې وړې ویډیو خبره نه ده. له دې امله غواړم یو څه ادامه ورکړم. خو دا غیر عادي خبره ده. له دې سره باوري یم چې خبره زموږ دواړو ترمنځ پاتې کیږي. لږ اشاره هم چې درته وکړم بس ده.

نور یې څه و نه ویل، د اوږدې شېبې لپاره همدلته ودرېد. څیر یې کامرې ته وکتل. همداسې هلته ولاړ و، یو دم څو لوړو ودانیو له ورانو ویجاړو سر راپورته کړ. یوه جادو ټولې زړې ودانۍ نوې کړې. سوفي، آکروپولیس او د میدان شاوخوا ودانۍ لوړې ولیدې، برېښېدې، ځلېدې، او سوفي یې ښکلا ته ګوته په غاښ شوه. خلکو په رنګارنګ جامو کې د آتن په کوڅو کې ګرځېدل پیل کړل. ځینو تورې پر ملا تړلې وې، ځینو لوښي پر سر اېښي وو او روان وو، په دې ډله کې یوه کس د پاپیروس کاغذ یوه ګرده لوله په تخرګ کې نیولې وه او روان و.

سوفي پوه شوه چې د فلسفې استاد یې دی، هماغه خولۍ یې پر سر وه. خو اوس یې د نورو په څېر زېړې لنډ لستوني لرونکې جامې اغوستې وې. سوفي ته را نېږدې شو، کامرې ته یې وکتل:

- اوس بنه شو! موږ په لرغوني يونان کې يو. ګوره سوفي زړه مې و، چې ته پخپله دلته راشې. موږ په ۴۰۲ م زېږدېزه نېټه کې يو. درې کاله مخکې سقراط مړ شوی دی. هيله لرم چې ددې شېبو په قدر پوه شې، ځکه د کامرې کرايه کول او ويډيو جوړول ډېر ګران وو.

سوفي ګنګس شوه. دا عجيب سړی څنګه کولای شي، ناڅاپه ۲۴۰۰ کاله مخکيني يونان ته ولاړ شي. دا ويډيو يې څنګه په هغه وخت کې جوړه کړې ده، هر څه توپير لري. بنايي دا سينمايي فلم وي، همداسې به وي؟
خو له مرمرو جوړې شوې ودانۍ تولې رښتينې وې. که دا ټولې ودانۍ يې يوازې د يوه فلم صحنې ته له سره جوړې کړې وې، نو ميليونونه ډالره لګښت وربانـدې راغلـی دی. نـو دا دومـره ډېـر لګښـتونه يـوازې ددې لپـاره شوي چې سوفي آتن ووينې؟!
خولۍ پر سر سړي، بيا پورته نجلۍ ته وکتل:

- هغه دوه کسان د هغو دوو ستنو څنګ ته وينې؟

سوفي يو زوړ سړی وليد، ګونځې او يو څه خيرنې جامې يې اغوستې وې. ږېره يې لويه وه، پلنه پوزه يې لرله، سترګې يې تېزې وې، غومبوري يې دډ او پړسېدلي وو. ښکلی ځوان يې څنګ ته ولاړ و.

- هغه سقراط او څنګ ته يې ولاړ سړی افلاطون دی، شاګرد يې دی.

فيلسوف دواړو کسانو ته ور روان شو، خولۍ يې له سر لرې کړه، يو څه يې وويل، سوفي پوه نه شوه. هغه په يوناني ژبه غږېدل. وروسته يې کامرې ته وکتل:

- دوی ته مې وويل، چې د ناروې يوه نجلۍ غواړي له تاسې سره معرفي شي. له همدې امله اوس افلاطون څو پوښتنې راکوي، ته به ددغه پوښتنو په اړه له ځان سره فکر وکړې. خو بايد عجله وکړو، چې د ښار ساتونکي موږ پيدا نه کړي.

ځوان سړی يو قدم مخکې راغی، سترګې يې په کامره کې خښې کړې، د سوفي په وجود کې يخې اوبه وځغلېدې.
هلک، په نرم او بهرني ګړدود وويل:

- آتن ته ښه راغلې، سوفي! نوم مې افلاطون دی، زه به تا ته څلور کارونه در وسپارم. اول دا چې د خوږې یا کلچو جوړونکی څنګه کولای شي پنځوس شرینۍ په یوه بڼه جوړې کړي. بیا له ځانه پوښتنه وکړه چې ولې تول آسونه په یوه بڼه دي؟ بیا به پرېکړه کوې چې د بشر-روح تلپاتې دی که نه؟ بل دا چې د نر او ښځې شعور یوه اندازه دی که نه؟ بریا دې غواړم!

انځور د تلویزیون له صفحې ورک شو. سوفي ویډیو وړاندې وروسته بوتله خو نور څه پکې نه و.

سوفي هڅه وکړه، د هغه څه په اړه فکر وکړي چې نن یې لیدلي وو. خو هر څه به چې په فکر کې ډوبېده حالت خرابېده، یو فکر به پای ته نه و رسېدلای، چې بل به یې سر ته راغی.

له اوله باوري وه چې د فلسفې ښوونکی یې غیر عادي انسان دی. خو داسې تدریس چې تول طبیعت یې ګډوډاوه یو څه ورته ګران ښکارېده.

دا دوه کسه یې چې د تلویزیون پر صفحه ولیدل، رښتیا سقراط او افلاطون وو؟ نه وو، د هغوی راتګ نور هسې یو خوب دی، خو کارتونیان هم نه وو.

سوفي فلم له تلویزیون را وایست. په منډه منډه خپلې کوټې ته ولاړه. ویډیو یې د لیګو له توټو سره نېږدې کېښوده. بیا پر کټ اوږده وغځېده. همداسې ویده شوې وه.

څو ساعته وروسته یې مور کوټې ته ورغله، سوفي یې ورو ورو وښوروله:

- سوفي څه دربانده شوي؟
- ام...
- ولې له جامو سره ویده یې؟

سوفي له خوبه ډکې سترګې وموښلې.

خبرې یې سره وژولې.

- آتن ته تللې وم.

دا یې وویل، په لټ واوښته او بېرته د خوب نړۍ ته ولاړه.

# افلاطون

**...د روح سیمې ته دې را گرځېدو هیله...**

سوفي د هغه ورځې په سهار وبرېدلې له خوبه پاځېده. څو دقیقې له پنځو تېرې وې، خو هغه پوره ویښه وه. پر تخت را کېناسته. ولې یې کالي اغوستي دي؟ څو شیبې وروسته هر څه ور په یاد شول. پر څوکۍ ودرېده او د انوارۍ سر ته یې ور وکتل، ویډیو لا هم هلته د لبگو څنگ ته ایښې وه. نو پوه شوه چې خوب یې نه دی لیدلی.

یوه خبره، سقراط او افلاطون خو یې په رښتیا نه و لیدلي..... اوف پرېږده نو! په دې اړه یې د فکر کولو توان نه درلود. مور به یې په حقه وه، له ځان سره یې وویل، په دې ورځو کې به مې په عقل کې ستونزه پیدا شوې وي.

خوب نه وړه، غوښتل یې ولاړه شي او وگوري چې سپي کوم نوی لیک راوړی که نه؟ سوفي ورو ورو له زینو را ښکته شوه، سپورتي بوټان یې پښو کړل او له کوره ووته.

په زړه پورې رڼا بڼ پوښلی و. مرغان دومره په زوره او تېز تېز چغېدل چې سوفي ته خندا ورغله. د سهار شبنم لکه د الماسو دانې پر چمن او بوټو خور و. سوفي د نړۍ حیرانوونکې ښکلا ته گوته په غاښ شوه.

پټنځای هم نم په سر اخیستی و. کوم نوی لیک هم هلته نه و. د ونې پېړه ربښه یې په لاس پاکه کړه او کېناسته.

هو د افلاطون سوالونه یې ذهن ته ورغلل. هغه پوښتنه کړې وه، چې شریني جوړوونکی څه ډول پنځوس شریني په یوه بڼه جوړولای شي؟

سوفي فکر وکړ، چې دا خو کوم آسانه کار نه دی. مور به یې چې هر وخت خوږې ډوډۍ یا کلچې پخولې یو بل ته به ورته نه وې. بله خبره هم شته دا چې مور خو یې کومه مسلکي شریني پخوونکې هم نه ده. کله کله پخلنځی داسې په بل مخ واړوي ته به وایې چې بم چاودلی. له دې ور

هاخوا له دوکانه هم چې شريني راوړي يو بل ته ورته نه وي. هره خوږه يا شريني د شريني جوړوونکي په لاس کې بېله بڼه خپلوي.
سوفي موسکۍ شوه، يوه ورځ يې له خپل پلار سره تللې وه، چې د اختر لپاره سودا راوړي. راغلل چې مور يې له خوږو د بنيادم په څېره شريني جوړې کړې وې. هغه يو بل ته ډېر ورته نه وو، خو له يو بل سره يې ډېر توپير هم نه درلود. په ياد يې شول چې مور يې ددې کار لپاره قالب جوړ کړی و.
سوفي ددې خاطرې په يادولو دومره خوشاله شوه چې اوله پوښتنه يې خواب کړې حساب کړه او بوې خواته يې کړه. که يو شريني جوړوونکی وغواړي چې پنځوس ورته شريني جوړې کړي نو بايد يو قالب را واخلي او خوږه پکې ځای پر ځای کړي يو بل ته به ورته شريني جوړې شي. دا خو ددې ځواب!
وروسته افلاطون کامرې ته کتلي و او ويلي يې وو. ولې ټول اسونه يو بل ته ورته دي؟ خو ټول اسونه په يوه بڼه نه دي! سوفي فکر وکړ، چې دوه اسونه به سره ورته نه وي، لکه دوه بنيادمان چې يو بل ته ورته نه دي.
غوښتل يې دا سوال هم يوې خوا ته کړي، اوس يې پام شو چې شريني په اړه يې څه ځواب ويلی و. هيڅ يوه شريني يو بل ته ورته نه وه، ځينې ځينې پېړې وې، ځينې بيا يوه برخه کې خرابې وې، د ځينو ځنډې ماتې شوې وې. خو سره له دې خلکو له يوه اړخه بيا هم کولای شو هغه سره ورته وبولي.
ددې په نظر به د افلاطون پوښتنه دا وه، چې ولې اسونه ټل اسونه دي. د نورو حيواناتو له ډلې لرې وي، لکه له خوګانو لرې وي. دوی د اس او خوګ له ترکيبه نه زيږي. سره له دې چې ځينې قهوه يي او ځينې خړ دي خو بيا هم ډېر اسونه په خپل ژوند کې يو مشترک څه لري. سوفي يې په ټول ژوند داسې اس نه و ليدلی، چې اته يا اووه پښې دې ولري.

خو د افلاطون موخه به دا وه، چې د اسونو ښه معلومه ده، څکه له یوه قالب راوتلي دي. یا په یوه قالب کې جوړ شوي دي، موخه به یې همدا وي؟

افلاطون یو ګران سوال هم تر کړی و، بشر- تلپاتې روح لري؟ ددې سوال په ځواب نو د سوفي سر نه خلاصېده. خو په یوه څه پوهېده چې د مړي جسد خلک یا سېځي او یا یې خښوي، چې هغه کومه راتلونکې نه لري. که د انسان روح تلپاتې وي، نو باید باور وکړو چې انسان دوې بېلې برخې لري. یو تن دی، چې د کلونو په تېرېدو له منځه ځي او بل روح ده چې څه نا څه تلپاتې دی او له دې سره کار نه لري چې تن په څه جنجال کې دی. نیا یې یوه ورځ ویلي وو، داسې احساس کوي چې یوازې بدن یا وجود یې زوړ شوی دی، خو د ننه په وجود کې لا هم پیغله نجلۍ ده.

د پېغلې تصور؛ د سوفي ذهن ته بله پوښتنه راوسته. د نارینه او ښځو د شعور کچه یوه ده؟ باوري نه وه، خو دا هم نه وه معلومه چې له شعوره د افلاطون موخه څه ده.

د سقراط له قوله یې د فلسفې د ښوونکي خبره ور په یاد شوه، هغه ویلي وو، که انسان خپل شعور په کار واچوي، تول کولای شي فلسفي حقایق درک کړي. همدا راز سقراط ویلي وو، چې غلام هم د خپل بادار هومره شعور لري. سوفي په دې شک نه درلود، چې سقراط به د نارینه او ښځې د شعور کچه هم یوه اندازه ګڼلې وي.

ناسته وه د همدې شیانو په اړه یې فکر کاوه، چې د پانو د ماتېدو غږ شو. داسې عجیبه غږ و، لکه ماشین بغ بغ او هن هن یې کول. څو شېبې وروسته طلایي سپی د ننه پټنځي ته را ننوت، لوی پاکټ یې په خوله کې و. سوفي په لوړ غږ وویل:

- هر مس! خوشې کړه، خوشې کړه!

سپي پاکټ د سوفي په لمن کې خوشې کړ، سوفي د هغه پر سر او غاړه لاس را تېر کړ.

سپی و غځېد او سوفي لاس وربانـدې تېـراوه. څـو شېبې يـې خونـد واخيست، وروسته ودرېد او پـه هغـه لار چـې راغلـی و بېرتـه ولاړ. سـوفي قهوه يي پاکټ پـه لاس کـې نيـولی و او د بوټـو لـه منځـه پـه هغـه پسـې را ووتـه. سپي د ځنګـل لـوري تـه منـډه کـړه، سـوفي هـم څـو متـره وروسـې روانـه وه. سپي مخ را وګرځاوه، و غپېد. خو سوفي لا هـم پـه هغـه پسـې منډې وهلـو تـه ادامـه ورکـړه. پرېکـړه يـې کـړې وه، چـې دا ځـل بـه هـرو مـرو فيلسـوف پيـدا کـوي. آن ويـل يـې، کـه تـر آتـن پـورې هـم پـه هـرمس پسـې منډې ووهـې دا کـار بـه کـوي. سـپی چټـک شـو، يـو دم د نـرۍ لارې پـه يـوه ګرځنـدي کـې و ګرځيـد. سـوفي بيـا هـم منـډې پسـې وهلـې، څـو دقيقـې وروسـته سـپی را وګرځېد. لـه نجلـی سره مخامخ شـو او د ساتونکي سپي پـه څېر يـې هغـه تـه ډول ډول حرکات تر سره کړل. سوفي هغه ته ور نېږدې شوه.

هرمس يې پروا و نـه ساتله بېرتـه يـې خپلـه مخـه و نيولـه، چټـک شـو، لـه سړکه ښکته شو، سوفي پوه شـوه، چـې نـور نـو پـه هغـه پسـې نـه شي رسېدلای. ځـای پـه ځـای ودرېده، تـه بـه وايـې يـو عمـر تېـر شـوی دی، لـه خپلـه ځايـه هـيڅ و نـه ښـورېده، د سـپي د لـرې کېـدو غـږ يـې اورېـده، څـو دقيقـې وروسـته شـاوخوا تـوله چوپتيا ونيوله.

په يوه ښـکلي ځـای کـې يـې د يـوې ونـې ډډه پيـدا کـړه. کېناسـته، لـه قهـوه يـې پاکټ يې، پاڼې را و ايستې او پر لوستلو يې پيل وکړ.

**د افلاطون اکاډمي**

سوفي مننه کـوم چـې لـه مـا سره دې څـو ښـکلي سـاعتونه تېـر کـړل. موخـه مـې هغه وخت دی چـې د آتـن پـه ليـدلو مـو يـو ځـای تېـر کـړ. ګـوره هـيڅ چـې نـه وي ځـان خـو مـې در وښـود. افلاطـون دې هـم وپېژانـده، نـو راځـه چـې ژر خپل کار پيل کړو.

افلاطـون د (۴۲۸ – ۳۴۷) کلونـو تـرمنځ ژونـد کـړی دی. سـقراط چـې د زهـرو پـر څښلـو محکـوم شـو نـو افلاطـون ۲۹ کلـن و. لـه سـقراط سره يـې د شـاګردۍ

ډېره موده نه کېده. د سقراط مرگ او محاکمه يې په خپلو سترگو لېدلي وه. د هغه مرگ پر ده ډېر اغېز وکړ. ده به ويل، د آتن ښار تر ټولو شريف بچی يې وواژه. وروسته همدا هڅې وې چې د افلاطون فلسفه جوړوي، همدا ژور اغېز و، چې هغه يې دومره ستر فيلسوف کړ.

د سقراط مړينه ددې سبب شوه چې افلاطون د يوې ارماني ټولنې انځور په خپل ذهن کې جوړ کړي. ده به ويل، د اوسنی نړۍ او هغې نړۍ تر منځ، چې زما په ذهن کې ده، ستر توپير دی. هغه هڅه کوله ژوند هسې بدل کړي چې بايد وي، هغه څه ته يې ادامه ورکول نه غوښتل چې اوس روان وو. د يوه فيلسوف په توگه د افلاطون لومړی کار دا و، چې د سقراط دفاعيه[۱] يې جوړه کړه. په دې دفاعيه کې يې د قضايه هيئت پر وړاندې د سقراط دفاع کړې وه.

ستا به په ياد وي، ما ويلي و، چې سقراط د خپلو تېرو فيلسوفانو پر خلاف هېڅ هم و نه ليکل. يوه بله ستونزه هم شته چې تر سقراط د مخکينيو فيلسوفانو د پام وړ څه په ميراث نه دي پاتې. خو د افلاطون په اړه بيا دا خبره ده چې ټول مهم آثار يې ساتل شوي دي. افلاطون ددې تر څنگ چې د سقراط دفاعيه ليکلې، د هغه د ډيالوگونو يوه ټولگه يې هم ليکلې ده، چې په ټوليزه توگه پنځه ويشت مکالمې پکې راغلې دي. دا چې د افلاطون آثار ولې له منځه نه دي تللي يو علت يې دا دی، چې هغه د افلاطون اکاډمي جوړه کړه. افلاطون خپله اکاډمي د يونان د يوه افسانوي پهلوان اکاډموس[۲] په ياد جوړه کړه. له هغه ورځې تر دې دمه زرگونه اکاډمۍ د نړۍ په گوټ گوټ کې جوړې شوې دي. موږ هم د اکاډمۍ کلمه ډېره کاروو، ډېر وخت اکاډميک بحث او اکاډميک اشخاص يادوو.

د افلاطون په اکاډمۍ کې فلسفه، رياضيات او سپورت تدريس او ور زده کول کېدل. سره له دې چې د تدريس کلمه دلته مناسبه نه ده. د افلاطون

---

[۱] Apology

[۲] Academus

پـه اکـاډمۍ کـې ډېـرو خـبرو اتـرو او بحـث ځـانګړې ارزښـت درلـود. نـو دا کومـه تصـادفي خـبره نـه ده، چې د افلاطـون ليکنـې د ډيـالوګ پـه بڼـه ليکـل شوې دي.

سم تلپاتې، ښکلې تلپاتې، ښه تلپاتې

ددې درس پـه سر کـې بـه ښـه وي، پـوه شـو چـې ددې يـا هغـه فيلسـوف د کـار بڼـه څـه ډول وه. اوس بـه دا پوښـتنه وکـړو، د افلاطـون د کـار بڼـه څنګـه وه؟ پـر کومو مسايلو يې تمرکز کاوه؟

پـه لنـډه ويلـی شـو، چـې افلاطـون د هغـه څـه تـر مـنځ چـې تلپـاتې او نـه بدلېـدونکي دي او هغـه څـه چـې روان دي اړيکـه پيـدا کـړي. سـم لکـه تـر سـقراط مخکـې فيلسـوفانو چـې څـه غوښـتل، ده هـم همـدا کـار کـاوه. دا مـو هـم ولوسـتل چـې سوفسـطايانو او سـقراط څنګـه د طبعـي فلسـفې لـه مسـايلو څخـه پـام انسـان او ټـولنې تـه اړاوه. سره لـه دې آن سـقراط او سوفسـطايان هـم پـه يـوه شي کـې راګيـر وو، هغـه دا چـې د تلپـاتې او بدلېـدونکي څيـز تـر مـنځ پـه اړيکـه کـې بنـد پـاتې وو. لـه دې موضـوع سره ددوی علاقـه تـر ډېـره د ټـولنې او انسـاني اخلاقـو د اړيکـې لـه املـه وه. پـه لنـډه توګـه ويلـی شـو، چـې سوفسـطايانو بـه ويـل، ښـه او بـد، حـق او نـا حـق پـه يـوه ښـار او بـل ښـار کـې تـوپير لـري. ددوی پـه وينـا نـو حـق او باطـل يـو روان يـا بدلېـدونکي څـه دي. خـو سـقراط بيـا دا خـبره نـه منلـه، ده بـه ويـل حـق او باطـل ځـانګړې او ښـکاره تعريـف لـري. دا تعريـف مطلـق او تلپـاتې دی. ده بـه ويـل د انسـان عقـل تلپـاتې او نـه بدلېـدونکی دی، نـو د عـادي شـعور پـه کـارولو سره کـولی شـو دغو ثابتو معيارونو ته لاسرسی پيدا کړو.

سوفي پـه خـبره خـو مـې پـوهېږې چـې څـه وايـم؟ پـه دې وخـت کـې افلاطـون را رسـېږي. هغـه دداسـې شـيانو پـه فکـر کـې دی، چـې پـه طبيعـت، ټولنـه او اخلاقـو کـې هـم تلپـاتې او نـه بدلېـدونکي دي. دا دوې مسـلې افلاطـون تـه يـو شـان وې، هغـه غوښـتل داسـې حقيقـت پيـدا کـړي چـې ابـدي او نـه بدلېدونکی وي.

کــه ربښــتیا را بانــدې وایــي، فیلســوفان د همــدې لپــاره دي، چــې دغــه ډول مســایل را وســپړي. دوی د ښــکلا ملکــه نــه انتخــابوي. دوی پــه بــازار کــې ورځنــي نرخونــه نــه ټــاکي، نــو ښــایي همــدا یــې لامــل وي چــې هــر څــوک لــه فیلســوفانو سره مینــه نــه لــري، خــو ځینــې ځــانګړي کســان بیــا فلســفه لــولي او لــه فیلســوفانو سره مینــه لــري. لــه همــدې املــه فیلســوفان هڅــه کــوي، ورځنــي عادي او یــا مبتــذل کارونــه لــه پامــه وغورځــوي او زمــوږ پــام مهمــو مســایلو تــه را واړوي.

نو په همدې توګــه مــوږ لــږ لــږ ورځــو او د افلاطــون فلســفې تــه د ننــه کېــږو. مــوږ بــه ووینــو چــې هغــه څــه ویــل غوښــتل. مــوږ بــه ګــام پــر ګــام مــخ تــه ولاړ شــو، څکــه مــوږ اوس غــواړو د فلســفې یــو ســتر مغــز او اصــلي هســته درک کــړو. دداسې کــس د فکر او کار پــه لټــه کــې یــو چــې د اروپــا پــر فلســفه یــې ژور اغیــز پرې ایښی دی.

### د مثال عالم

امپــدوکلس او دموکریتــوس دواړو دې تــه پــام کــړی و، چــې پــه نــړۍ کــې هــر څــه روان دي او بــدلیږي، خــو داســې شــی بــه هــم هــرو مــرو وي چــې تلپــاتې دي او بــدلون نــه کــوي. وروســته افلاطــون دغــه څلــور اصــله یــا اتومونــه، چــې پخوانیــو فیلســوفانو یــې پــه اړه خــبرې کــړې وې، افلاطــون و منــل خــو پــه بېلــه بڼه.

افلاطون بــاوري و، چــې پــه طبیعــت کــې هــر د لمــس وړ شــی بــدلیږي او روان دی. لــه همــدې املــه بــه یــې ویــل چــې د تجزیــه کېــدلو لپــاره نــوی جــوهر پــاتې کېږي. د مادي نړۍ ټــول شیان، لــه داســې مــادې جــوړ شــوي، چــې د وخــت پــه تېرېدو زړېږي او لــه کــاره لوېږي. خــو پــه وینــا یــې هغــه شیان چــې پــه صــورت کــې جــوړ شــوي دي د مــادي نــړۍ نــه دي، دا شــی نــو تلپــاتې دي او د بــدلون وړ نه دي.

پام دې دی چې څه وایم سوفي؟ فکر نه کوم چې پام دې وي!

ولې اسونه ټول يو شان دي؟ سوفي ته به فکر کوي چې هېڅ يو شان نه دي. خو پام دې وي داسې شی هرومرو شته چې د اسونو تر منځ شريک دي. داسې څه چې موږ يې له مخې ټول اسونه، اسونه بولو. يو ځانګړی اس به بې شکه له نورو سره توپير ولري. ښايي زوړ شي، ګوډ شي، ناروغ شي؛ خو په حقيقت کې د اس صورت تلپاتې او نه بدلېدونکی دی.

نو له دې امله د افلاطون نظر د امپدوکليس او د موکريتوس په خبر نه دی. افلاطون به ويل، چې لومړنی مادي جوهر له منځه ځي، خو مفاهيم د افلاطون په نظر تلپاتې او نه بدلېدونکي الګوګان دي. دا الګو ذاتاً معنوي او مجرد مفاهيم دي، چې ټول شيان د هغه له مخې جوړ شوي دي.

اجازه راکړه په بله بڼه يې درته ووايم. تر سقراط مخکې اوسېدونکو فيلسوفانو د طبعي بدلونونو لپاره ښه توضيح ورکړې وه، خو په ربښتيا پر بدلون باوري نه وو. ددوی په خبره په طبيعت کې داسې عناصر شته دي، چې بدلېږي نه، د تجزيې وړ نه دي او تل په يوه حال پاتې کېږي. تر دې ځايه خو پوه شوې سوفي! خو يوه شي ته دې پام وي، چې دوی د خپلې دغې خبرې د وضاحت لپاره معقول دلايل نه لرل. فرض کړه دا ورې ورې ذرې يو وخت د يوه اس د بدن جوړونه کې ذرې وې، نو څنګه څلور پنځه سوه کاله وروسته د يوه بل اس د جوړولو لامل شوې يا څنګه دومره وخت پس له هغه يو فيل يا بل موجود جوړ شو؟ د افلاطون د پام وړ خبره همدلته وه چې ولې د دموکريتوس له اتمونو د دومره وخت په تېرېدو د فيل پر ځای فيلمار يا بل شی جوړ نه شول. همدا خبره وه چې د افلاطون فلسفي افکار يې وخوځول.

که مې په خبره پوه شوې وې، نو دا لاندې څو نورې کرښې مه لوله، خو زه بيا هم ددې لپاره چې ته لا ښه پوه شې خپله خبره يو څه سپړم. د لېګو له ټوټو يو ډک ډبلی لرې او غواړې له دې ټوټو اس جوړ کړې. بيا دا ټوټې ټولې سره بېلوې، آس رنګوې، بېرته ورې ټوټې په خپل ډبلي کې اېږدې. اوس که هر څه ډبلی وښوروې له دې ټوټو اس نه جوړېږي. څنګه

کېدای شي چې د لېګو ټوټې سره يو ځای شي او له هغې اس جوړ شي؛ دا کار ناشونی دی. سوفي! ددې کار لپاره بايد ته له سره آس جوړ کړې، ددې کار د کولو لپاره بيا اړ يې چې په ذهن کې لومړی د يوه اس تصوير ولرې. اوس نو ته د لېګو له ټوټو د اس له هغه معنوي او تلپاتې الګو مادي اس جوړوې چې تلپاتې دی او د اسونو تر منځ ددغو الګو توپير نشته دی.

د پنځوسو سره ورته کلچو خبره دې په ياد ده؟ فرض کړه چې ته له فضا په يوه سپوږمکۍ ځمکې ته راغلې يې. په ټول ژوند کې دې د خوړو يا کلچو د پخولو ځای نه دی ليدلی. له داسې يوه ځای تېرېږې چې ستا اشتها راپاروي. هلته له خوړو جوړ شوي پنځوس سره ورته سړي په شيشه کې ايښي دي. ته نو اوس حيرانېږې چې دا پنځوس سره ورته سړي يې څنګه جوړ کړي دي. کېدای شي، د يوه لاس نه وي، د بل له سره لږ اوږه الوتې وي، د يوه بل به خېټه غټه وي، خو که لږ څير شي نو پوهېږې چې د ټولو تر منځ يو څه شريک دي. يو يې هم کامل نه دی، خو له دې سره سره ته فکر کوې چې دا ټول سړي يو اصل لري. ته پوهېږې چې دا ټولې شرينۍ په يوه قالب کې پخې شوې دي. له دې چې تېره شې نو غواړې چې دغه قالب ووينې. خو ښايي دا قالب هم مکمل نه وي، له دې سره سره هغه شرينۍ چې له دې قالب راوتلې دي هم مکملې نه دي خو د شرينيو په پرتله ښايي قالب ښکلی وي.

که دې دا مسله پخپله حل کړای شوه سوفي، نو هغه پايلې او ځواب ته رسېږې چې افلاطون رسېدلی و. هغه هم د نورو فيلسوفانو په څېر، د چا خبره له آسمانه ځمکې ته راغلی و. (د سوېې د يوه ويښته پر څوکه ولاړ و). هغه حيران شو چې ولې په طبيعت کې ټولې ښکارنده (پدېدې) دومره سره ورته دي. هغه دې پايلې ته ورسيد، چې زموږ د چاپېريال د موجودو شيانو تر شا په شمار شمارلي الګو يا صورتونه موجود دي. افلاطون دغه صورتونه مثال وبلل. د هر انسان، هر خوګ او هر اس تر شا،

مثالي خوګ، مثالي انسان او مثالي اس شته دی. دا د همغه اشپز په خبر دي، چې کولای شي له خپلو خوړو، اس، انسان او خوګ جوړ کړي، څکه هغه هلته څان ته بېل قالبونه لري او یوازې قالب ورته بدلوي.
افلاطون پر دې باوري شو، چې د مادي نړۍ تر شټ یو حقیقت پټ دی. ده دغه حقیقت د مثال عالم و نوماوه. دده په وینا دغه عالم د مادي نړۍ د هرې پدیدې تر شا تلپاتې، نه بدلېدونکې او کلک ولاړ دی. دغه حیرانوونکې خبره په نړۍ کې اوس هم د افلاطون د مُثل په نظریه مشهوره ده.

## حقیقي پېژندنه

ګرانې سوفي! پوهېږم چې تر دې ځایه سمه راسره راغلې یې. ته له ځانه دا پوښتنه وکړه چې افلاطون دا خبرې جدي کولې؟ هغه باوري و، چې د هر شي صورتونه ټول په یوه بله هستۍ کې دي؟
ښایي ټول عمر به یې پر دې خبره سل سلنه همداسې باور نه درلود. خو په دې کې شک نشته چې هغه پر خپله خبره ډېر باوري و. دا خبره یې له ثبت شوو مکالمو ښه څرګندېږي. نو سوفي راځه چې د هغه فکر نور هم را وسپړو.
مخکې مې وویل، هر فیلسوف هڅه کوي چې تلپاتې او نه بدلېدونکې شی پیدا کړي. د ژوند د بېلو اړخونو په اړه څه ویل ښه دي؛ خو د بېلګې په توګه، د یوه حباب په اړه یو کتاب لیکل، عبث او بې ګټې کار دی. څکه حباب په څو ثانیو کې چوي، ددې جوګه نه ده چې په اړه یې ډېره مطالعه وشي، نو څوک نه غواړي ډداسې یوه شي په اړه په ډېر څه پوه شي. بل ددې کتاب لپاره بازار پیدا کول هم ګران کار دی، څکه څوک نه غواړي د هغه څه په تړاو ډېره مطالعه وکړي، چې ژوند یې یوازې څو ثانیې دی او له انساني ژوند سره هیڅ اړیکه نه لري.
افلاطون به ویل، هر څه چې موږ په خپل چاپېریال کې وینو، په ځانګړې توګه هر هغه څه چې ملموس دي، همدې حباب ته ورته دي. څکه په

نړۍ کې هیڅ محسوس شی تلپاتې او دوامداره نه دي. موږ تول باور لرو، چې په نړۍ کې هر شی بدلېدونکي او له منځه تلونکي دي. هر انسان او حیوان یوه ورځ مړ کېږي. آن د مرمر ډبره هم د وخت په تېرېدو زړېږي او له منځه خي. اې سوفي! له مرمرو جوړ شوی آکروپولیس هم د ورانېدو لور ته روان دی، د شرم خبره ده. خو څه کولای شو.

د افلاطون موخه دا ده چې د بدلون په حال کې شیان نه شو مطالعه کولای. موږ ددوی حقیقي پېژانده ته ځکه نو شو رسېدلای، چې هر څه د بدلېدو په حال کې دي. دده په وینا د ملموس او محسوس جهان په اړه یوازې اتکل او گومان کولای شو او د اشیاوو حقیقي پېژانده یوازې هغه وخت ممکن دی، چې هغه موږ د عقل په وسیله تشخیص کړي وي.

مه دارېږه، سوفي زه یې په اړه وضاحت درکوم!

پخلی وشو، د سړي په بڼه ډول ډول شریني جوړې شوې. سړي کاږه واږه دي، تشخیص یې گران دی. خو دا چې موږ دغه ډول ډېر جوړ شوي سړي لیدلي نو پوهېږو چې ددغو شرینیو قالب به څه ډول وي. که مو اصلي قالب هیڅ لیدلای هم نه وي خو بیا هم وړاندوینه کولای شو چې دا له یوه قالب راوتلي خواږه دي. که اصل قالب و نه وینو لا ښه ده، ځکه په سترگو باندې ډېر باور نه شي کېدلی. د ټولو انسانانو د لید قوه یو ډول نه ده. ډېر کله هغه معلومات چې له محسوساتو موږ ته راځي تاسم وي. پر وړاندې یې پر هغه څه باور کولای شو چې زموږ عقل راته وایي، ځکه عقل د ټولو لپاره یو دی.

گوره، که په ټولگي کې دیرش زده کوونکي وي، ښوونکی پوښتنه وکړي، چې په زرغونې (بوډۍ ټال) تر ټولو ښایسته رنگ کوم دی؟ ښایي ډول ډول ځوابونه واورې، خو که ووایي چې ۳*۸ څو کېږي؟ نو انشا الله د ټول صنف ځواب به یو وي. ځکه اوس عقل خبرې کوي، عقل بیا د (احساس کوم) او (فکر کوم) د جملو پر وړاندې ولاړ دی. افلاطون ریاضیاتو ته ډېر پام کاوه. ده به ویل ریاضي په هیڅ حالت کې توپیر نه کوي. نو ځکه

کولای شو د رياضي په اړه حقيقي پېژاند پيدا کړو. زه بايد دلته يوه بېلګه راوړم.
ته او يووانا په ځنګل کې روانې يې. يو شی پيدا کوی، کاجو ته ورته شی. ته وايې فکر کوم شکل يې ګرد دی. يووانا وايي يو لوری يې ښوی او مستقيم دی. په همدې توګه مو په منځ کې تا ويلي ما ويلي را پورته کيږي. خو يوه هم د هغه څه په اړه حقيقي تعريف نه شی لرلای، چې په سترګو يې وينئ. له بلې خوا په زغرده ويلای شی، چې د زوايو مجموعه يې ۳۶۰ درجې ده. دلته بېرته هغه آرماني يا معنوي دايرې ته ور ګرځئ چې انځور يې ستاسې په ذهن کې دی، خو په حقيقي نړۍ کې نشته ده. هغه په خپل ذهن کې ښه روښانه انځورولای شو. زما موخه دا ده چې ستاسې سرو کار د شرينيو له هغه قالب سره دی، چې انځور يې ستاسې په ذهن کې شته دی. له هغه شريني سره کار نه لرئ چې پر ميز ايښې دي. د حقيقي شناخت لپاره قالب ته ورګرځئ.
په لنډه که ووايم، د افلاطون په خبره، د هغه څه سم پېژندل ممکن نه دي، چې د حواسو له لارې يې حس کوو يا درک کوو. برعکس د هغه څه په اړه حقيقي شناخت يا پېژاند لرلای شو، چې په عقل مو پيدا کړي وي. د مثلث د زاويو مجموعه په هر حالت کې ۱۸۰ درجې ده. همداسې که د ټولې نړۍ اسونه په يوه پښه ګوډ هم شي، بيا يې هم د افلاطون د مُثل په نړۍ کې جوړې او په څلورو پښو روان دي.

## تلپاتې روح
ما مخکې هم ويل سوفي، افلاطون باوري و، چې حقيقت په دوه ډوله دی:
د نړۍ يوه برخه په محسوساتو پورې تړلې ده. موږ د نړۍ دا برخه د خپلو پنځګونو حواسو (چې ناقص يا تقريبي) دي پېژنو. نو له دې امله به دا شی بيا تقريباً حقيقي او يا ناقص وي. په حسي-نړۍ کې هر څه

روان دي، هېڅ شی ثابت او تلپاتې نه دي. د محسوساتو په نړۍ کې هېڅ شی تلپاتې نه دي، هر شی راځي او بېرته تلونکي دي.

د نړۍ بله برخه، چې د عقل په مرسته یې په حقیقي توګه پېژنو. د مثال نړۍ په حواسو نه شو درک کولی، خو مثال (صورتونه) تلپاتې او نه بدلېدونکي دي.

د افلاطون په خبره انسانان هم دوه ګوني موجودات دي. موږ داسې بدن لرو، چې پر له پسې د بدلون په حال کې دی. په یو ډول نه یو ډول د محسوساتو له نړۍ سره زموږ د بدن اړیکې نه پرې کېدونکې دي. د هغه برخلیک هم لکه د نړۍ د نورو موجودات په څېر دی. حواس مو په بدلېدونکي وجود کې دي، نو ځکه هغه هم د باور وړ نه دي. خو زموږ روح تلپاتې دی. روح نو بیا له عقل سره تړلی دی. دا چې مادي اړخ نه لري نو هغه د مثال په عالم کې ځای لرلای شي.

خو دا ټولې خبرې د قضیې پای نه دی. سوفي! دا کیسه دومره آسانه نه خلاصېږي.

افلاطون به ویل، روح په وجود کې تر ننوتو مخکې هم موجوده وه. (لکه هغه د شرینیو قالبونه چې مخکې په پخلنځي کې تیار ایښې دي). خو روح همدا چې د انسان وجود ته د ننه شوه پخواني مثالونه یې هېر دي. دا وخت نو یوه پېښه رامنځته کېږي. ورسره سم د حیرانتیا پړاو پیلېږي. بشر چې د نړۍ ډول ډول طبعي صورتونه ویني، په روح کې یې یوه مبهمه خاطره راګرځي. مبهم یادونه یې تازه کېږي. یو اس ویني خو دا اس ناقص دی. له خوړو د جوړ شوي اس انځور زموږ په روح کې د یوه کامل اس یاد تازه کوي. دا مو کېدای شي روح د مثال په عالم کې لیدلی وي. کله چې دا یادونه زموږ په روح کې را وېښ شي، نو اصلي نړۍ ته د ور ګرځېدو غریزه په موږ کې پیدا شي. افلاطون دغه غریزه او ارمان ته اروس[1] وایي، چې د مینې او عشق په مانا ده. له دې وروسته جسم او ټول

---

[1] Eros

محسوس عالم ناقص او بې اهميته درته ښکاري. روح غواړي چې د عشق او مينې پر وزرونو د مثال پر عالم والوځي. روح غواړي د تن له زندان او ځنځير ځان خلاص کړي.

زه به په لنډه درته ووايم سوفي، افلاطون غواړي دلته د حيات يا ژوند ارماني مسير واضح کړي. څکه انسان په هيڅ وخت کې ددې اجازه نه ورکوي، چې خپله روح وبايلي څو هغه د مثال به نړۍ کې خپل الوت پيل کړي. ډېرى انسانان هڅه کوي چې په نړۍ کې مثالونه تشريح کړي. يو اس ويني، بيا بل اس ويني، دوی فکر کوي چې دا هر څه له يو بل تقليد شوي دي. له اصلي اس سره چې د مثال په نړۍ کې دی پېژندنه نه لري. په منډه منډه ورځي پخلنځي ته چې د اس په بڼه جوړ شوي خواړه وخوري خو دا فکر نه کوي چې دا څنګه جوړ شوي دي. افلاطون غوښتل په دې توګه د فلسفي مسلک وسپړي او خلکو ته يې شرحه کړي. د هغه فلسفې ته داسې تعريف هم ورکولی شو، چې د افلاطون فلسفې، فلسفه او فلسفي مسايل تشريح کړي دي.

سوفي که يو سيورى ووينې څه فکر کوې چې د څه شي به وي؟ د يوه حيوان سيورى وينې. له ځان سره فکر کوې چې د اس سيورى دی، خو باوري نه يې. بېرته چې مخ ورته را اړوې نو پخپله اس وينې. اس نو بيا د هغه تر سيوري څو برابره ښکلی دی. سيورى يې تور او تياره و، خو اس پخپله ښکلی دی، خالونه يې له ورايه ښکاري. افلاطون پر همدې تګلاره باور درلود. ده به ويل، چې طبعي ښکارندې او موجودات د خپل اصلي او تلپاتې صورت يا مثال سيوري دي. دده په باور انسانانو تر ډېره د سيورو منځ کې ژوند کړی او په همدې پوري يې زړه تړلی دی. هيڅ وخت په دې اړه فکر نه کوي چې سيورى د څه شي دی؟ ددې سيوري اصل څه دی؟ دا تصور نه شي کولی چې دا موجودات يوازې سيوري دي. په دې توګه دوی د خپلې روح تلپاتې والی هېر کړی دی.

## د غار له تيارو د وتلو لار

افلاطون د خپلې نظريې د تشريح لپاره يوه افسانه وايي. موږ دغه افسانه د غار افسانه بولو. زه يې په خپله ژبه درته راوړم.

په ذهن کې داسې انځور کړه چې يوه ډله خلک تر يوه ډېره لاندې په يوه غار کې ژوند کوي. دوی د غار خوله کې ناست دي، لاس پښې يې داسې تړلي دي چې ښوربدلی نه شي. دوی ددغه غار يوازې هغه ديوال ويني چې د غار خولې ته مخامخ دی. ددوی شاته ستر دېوال دی. ډول ډول موجودات د دېوال شاته تېرېږي. دوی هر يو له ځان سره بېل شيان لېږدوي. ددې موجوداتو شاته اور بل دی، ددوی لړزانده سيوري، په مخامخ ديوال لګېږي. نو هغه کسان چې په دغه غار کې دي هغوی يوازې همدا سيوري ويني چې پر دېوال تېرېږي. دوی همدا چې پيدا شوي دي په همدې غار کې ناست دي، دغه انځورونه ويني، دوی فکر کوي چې تر دې سيورو ور هاخوا بل شی نشته دي.

اوس فکر وکړه چې دا کسان له غاره په وتلو بريالي کېږي. لومړنی پوښتنه چې له ځانه يې کوي دا ده، چې دا سيوري له کومه ځايه راتلل. همدا چې شاته را وګوري او دا متحرک موجودات ووينې فکر وکړه څه حالت به ولري؟ په لومړي سر کې يې د لمر رڼا سترګې برېښوي. د موجوداتو له ښکلا او رڼا حيرانېږي، ځکه تر اوسه يې يوازې ددوی تياره سيوري ليدلي وو. که له دېواله واوړي، له اور تېر شي او په بهر نړۍ کې ګام کېږدي تر دې به هم حيران شي. ددې دومره ښکلا له ليدلو به خپلې سترګې وموښي. رنګونه او شکلونه به د لومړي ځل لپاره په پوره وضاحت ووينې. هغه حيوانات او ګلان چې د هغوی کمرنګه سيوري يې په غار کې ليدلي وو، ښه واضح ليدلی شي. خو بيا هم له ځانه پوښتنه کوي، چې دا دومره ګلان او حيوانات له کومه شوي دي؟ په دې وخت کې يې په اسمان کې پر ولاړ لمر سترګې لګېږي، نو وايي هرو مرو د ټول طبيعت او دې شيانو

سرچینـه همـدا دی، ځکـه پـه غـار کـې یـې د موجوداتـو سیوري هـم جـوړ کړي وو.
نېکمرغـه غارمیشـتی کـولای شي تـر دې هـم څـو گامـه مخکـې ولاړ شي. شـاوخوا تـه وگرځـي او لـه خپلـې نـوې پیـدا کـړې آزادی خونـد او گټـه واخلي. خـو ددې پـر ځـای د هغـو نـورو پـه فکـر کـې ډوب شي چـې لا تـر اوسـه پـه غـار کـې دي. بېرتـه را گرځـي، هلتـه غـواړي نـورو تـه دا خبره واضـح کـړي، چـې پـر دېوال لړزانـده سیوري د حقیقـي شیانو دي. خـو دوی یـې پـه خبره بـاور نـه کـوي. د غـار دېوال ورتـه ښـيي، وایـي څـه چـې وینـو هغـه سـم دي، تر دې ور هاخوا کوم شی نشته دي، په پای کې دا سړی وژني.
افلاطـون غـواړي پـه دې افسـانه کـې دا وښـيي، چـې فیلسـوف غـواړي، پـه نـړی کـې لـه سـیوري ډولـه انځورونـو، هغـو حقیقـي شـیانو تـه ځـان ورسـوي چـې ددې نـړی د موجوداتـو تـر شـا پـټ دي. هغـه بـه کېـدای شي د سـقراط پـه اړه فکـر کـاوه، چـې د غـار میشـتو لـه لـوري ووژل شـو. ځکـه سـقراط ددوی معمـول او منـل شـوي تصـورات او خیالونـه لـه منځـه وړي وو. هغـه غوښـتل چـې یونانیـان حقیقـي بصـیرت تـه ورسـوي. د غـار افسـانه، ښـيي چـې سـقراط غوښتل خپل مسوولیت ادا کړي، دا افسانه د هغه شهامت او وړتیا ښيي.
افلاطـون غـواړي ووایـي، چـې پـه غـار کـې د تیارې او بهـر نـړی د ځرنگـوالي اړیکـه، د انځورونـه او مثـال د عـالم لـه اړیکـې سره ورتـه ده. ده نـه ویـل، چـې طبعي نـړی تیـاره او ځـورونکې ده، بلکـې ویـل بـه یـې چـې د مثـال د عـالم پـه پرتله دا نړی تیاره او ځورونکې ده. خو په هر حال دا یو تصویر دی.
### د فیلسوفانو دولت
د غـار افسـانه د افلاطـون پـه جمهوریـت کـې راغلـې ده. پـه دې مکالمـه کـې افلاطـون د خپـل ارمـاني دولـت انځـور هـم وړانـدې کـړی دی. هغـه د خپـل خیـالي ښـار یـا مدینـه فاضـله انځـورگري کـړې ده. پـه یـوه جملـه کـې وایـم. افلاطـون وایـي حکـیمان بایـد د دولـت پـر گـدی ناسـت وي. هغـه ددغـه کـار د توضیح لپاره د انسان بدن د بېلگې په توگه وړاندې کوي.

دده پـه خـبره د انسـان وجـود درې برخـې لـري. دا درې برخـې سر، سينه او خېټـه دي. دده پـه وينـا ددې هـر قسـمت لپـاره پـه روح کـې يـوه قـوه پرتـه ده. عقـل پـه سر پـورې اړه لـري. اراده پـه سينه پـورې او اشـتها بيـا پـه خېټـه پـورې اړه لـري. لـه دې قـواوو هـره يـوه يـې بيـا مثـال يـا فضيلت هـم لـري. عقـل د پـوهې خـبرې پـه سر کـې کـوي. اراده بايـد د شـهامت کارونـه وکـړي او نـر خېټـې بايـد مخکـې وي څـو اعتـدال رامنځتـه شي. کـه د بـدن دا درې واړه برخـې سره همغـږې وي او همغـږی عمـل وکـړي، نـو پـه پايلـه کـې يـې يـو همغـږی انسـان يـا د فضيلت وړ انسـان را منځتـه کېـږي. ماشـوم لـومړی بايـد پـه ښـوونځي کـې زده کـړې وکـړي، خپلـه اشـتها خلاصـه وسـاتي، پـه ځـان کـې شهامت پيدا کړي، څو يې عقل ده ته د پوهې په لور لارښونه وکړي.

افلاطـون اوس پـه خپـل ذهـن کـې يـو دولـت رسـموي. داسـې دولـت چـې لکـه د انسـان وجـود لـه دريـو برخـو جـوړ شـوی وي. پـه دې دولـت کـې د سر، سـينې او خېټـې پـر ځـای، حکمـران، سـاتونکي او زيـارکښ (لکـه بزګـران، کـارګران) او نـور ځـای لـري. افلاطـون پـه دې ځـای کـې پـه ښـکاره توګـه د يونـان د طـب علـم ځـان تـه الګـو تـاکلی دی. هغـه دول چـې يـو سـالم او همغـږی انسـان تعـادل او تناسـب سـاتي، د فضيلت د خاونـد دولـت ځانګړنـه هم دا ده، چې هر څوک په يوه توليز (کلي) انځور کې خپل ځان ويني.

د افلاطـون سـياسي حکمـت، هـم لکـه د هغـه د فلسـفې نـور اړخونـه، د عقـل پالنې غوښتنه کـوي. دده پـه وينـا د ښـه دولـت پيـدا کېـدل پـه عقـل پـورې تړلې خـبره ده. لکـه عقـل چـې پـه سر کـې فرمـان صـادروي، همداسـې دې حکـيمان هـم پـه ټولنـه کـې فرمانونـه صـادر کـړي. زه بـه لـه دې خـبرو يـو سـاده انځـور درته رسم کـړم، پـه هغـه کـې بـه د دولـت ددريـو برخـو او انسـان د دريـو برخـو اړيکې درته واضح شي.

| جسم | روح | فضیلت | دولت |
|---|---|---|---|
| سر | عقل | پوهه | حکمرانان |
| سینه | اراده | شهامت | ساتونکي |
| خېټه | اشتها | اعتدال | کارکوونکي |

د افلاطون ارماني دولت د هندوانو کاست حکومت ته ورته دی. په هغه حکومت کې هر فرد، هم نارینه هم ښځینه د عامه خلکو د خیر او سوکالۍ لپاره خپل رول او ځانګړی مسوولیت لري. د هندوانو کاست نظام، تر افلاطون مخکې همدا دلبندي لرله. کاست ساتونکي (همغه کاهنان)، کاست جنګیالي او کاست کارکوونکي. د افلاطون دولت ته په اوس وخت کې ځانپالی یا توتالیتر وایي. افلاطون په یوه بل شي هم باوري و، هغه دا چې ښځې هم کولی شي د نارینه وو په څېر حکومت وکړي. ځکه دده په باور د حکومت او مشرۍ معیار عقل دی نه جنسیت. ده به ویل ښځې په همغه اندازه د استدالال او تعقل قوه لري، په کومه اندازه یې چې نارینه لري. ده بیا ددې کار لپاره شرط دا ایښی و، چې که ښځې او نارینه، په یوه کچه روزنه ووینې او له کورنیو کارونو لاس واخلي. د افلاطون په آرماني حکومت کې، جنګیالي، حکمرانان یا دې ته ورته خلک له کورنۍ ژوند محروم دي. دوی نه شي کولی کورنۍ ولري او یا شخصي-ملکیت واخلي. ده به ویل چې د ماشوم روزنه د حکومت تر کولو ډېر سخت کار دی. افلاطون لومړنی کس و، چې له دولتي ښوونځیو او دولت د ماشومانو له روزنې یې تر عمر ملاتړ کاوه.

افلاطون تر مهمې سیاسي ناکامۍ وروسته، ځینې قوانین[1] طرحه کړل او هلته یې ولیکل، که تر آرماني حکومت تېر شو، نو مشروطه حکومت، د حکومتولۍ تر ټولو غوره بڼه ده. په دې ځای کې نو له شخصي-شتمنۍ او کورنۍ درلودلو ملاتړ کوي. په دې توګه نو د ښځو آزادي یو څه محدوده

[1] The lows

ده. ده بـه ويـل، هغـه حکومـت چـې ښـځې و نـه روزي داسـې دی لکـه يوازې چې خپل ښی لاس پياوړی کړي خو چپ يې فلج وي.

پـه تـوليزه توګـه د وخـت او زمـانې پـه پـام کـې نيولـو سره ويـلای شـو، چـې د افلاطـون نظـر د ښـځو پـه اړه مثبـت و. هغـه د (مېلمسـتيا[1]) پـه مکالمـه کـې پـه ديـوتيما[2] کـې د يـوې کـاهنې پـه افسـانه کـې د ښـځو پـه اړه د سـقراط ليـدلوری بيانوي.

سـوفي دا و افلاطـون. تـر دوو زرو ډېـر کلونـه کېـږي چـې د هغـه نظريـه تـر بحـث او انتقـاد لانـدې ده. لـومړنی کـس چـې پـه افلاطـون پسـې يـې نقـد او خـبرې پيـل کـړې، هغـه دده شـاګرد ارسـطو و. ارسـطو د افلاطـون پـه اکـاډمۍ کې زده کړې کړې وې. هغه د آتن درېيم ستر فيلسوف دی.

- بس به يې کړم!

سـوفي چـې د افلاطـون کيسـه لوسـته، لمـر پـر ځنګـل را وخـوت، سـړي تـه ورسـېد، د هغـه سـترګې يـې و برېښـولې، لمـر نـور هـم د آسـمان منـځ تـه راغلـی و. هغې فکر کاوه چـې لـه غـاره راوتلـې ده، سـوفي حـس کـړه چـې لـه افلاطـون سره تـر اشـنا کېـدو وروسـته، طبيعـت کـاملاً بـل ډول وينـي. دې فکـر کـاوه چـې مخکـې ړنـده وه خـو اوس يـې سـترګې روښـانه شـوې دي. سـيورې يـې ليـدلې وو، خو روښانه څېرې يې نه وې ليدلې.

هغـه بـاوري نـه وه، چـې د افلاطـون دا خـبره دې سـل سـلنه سـمه وي، خـو فکـر يـې وکـړ، چـې ښـکلې مفکـوره ده. ټـول ژونـدي موجـودات د يـوه کامـل مثـال، نيمګړې نسـخه ده. سـوفي ويـل، نـو ګـلان، ونـې، بـوټي، ژوي او انسـانان هـر يـو کامل موجود دی؟

هـر څـومره بـه يـې چـې خپلـې شـاوخوا تـه کتـل، هـر څـه دومـره ښـکلي او زړه وړونکـي ورتـه ښـکارېدل، چـې د تـازه والي احسـاس يـې وکـړ، مجبـوره شـوه سترګې يې وموښلې خـو بـاوري شي چـې دا هـر څـه حقيقـي دي. خـو هـر څـه

---

[1] Symposium
[2] Diotima

بې چې ليدل فکر يې وکړ چې دا تلپاتې نه دي، ښايي سل کاله وروسته دا بو هم دلته نه وي. آن که يو يو ګل او يو يو ژوی له منځه ولاړ شي او هېر شي. بيا به هم داسې يو شی وي، چې په ليدلو يې دا ټول شيان را په ياد شي.

سوفي خپلې شاوخوا ته ځير ځير وکتل، ناڅاپه موش خرما پر ونه پورته شوه، منډه يې کړه او په پاڼو کې ورک شو. سوفي فکر وکړ چې هغه يې بل ځای هم ليدلای دی. بيا په سوچ کې شوه، چې ښايي دا يې مخکې ليدلی وي. څه پته ده، کېدای شي په دې برخه کې افلاطون په حقه وي.

سوفي فکر وکړ چې، روح به يې مخکې تر دې چې د هغې بدن ته د ننه شي د مثال په نړۍ کې دا موجود ليدلی وي.

دا شونې ده، چې هغې دې مخکې هم ژوند کړی وي؟ روح يې تر دې وړاندې چې د سوفي وجود ته د ننه شي موجوده وه؟ دا حقيقت دی؟ چې موږ د نړۍ له دومره اړو دوړو سره سره بيا هم، يو قيمتي غمی له ځان سره لرو، هغه زموږ روح دی چې د وجود له شړېدو او زړېدو سره سره بيا هم خپل ژوند ته ادامه ورکوي؟

# د قومندان جونګړه

## ..په هېنداره کې نجلۍ په دواړو سترګو سترګک وواهه...

د سهار لـه اوو پـنځلس دقيقـې اوښتې وې. کـور تـه يـې بېـره نـه وه، د سوفي مور د يکشنبې د ورځې پـه رخصـتيو تـر ناوختـه ويـده کېـده. ښايي نـن هـم تـر دوو نـورو سـاعتونو ويـده وي. زړه کـې يـې را وګرځېـده چـې راځـه نـن پـه آلبرتو کناکس پسـې پـه ځنګـل کـې لـږ مخ تـه ولاړه شـه. خـو سـپي ډېـر ورتـه غـېل.

سوفي پورتـه شـوه او هغـه لار يـې ونيولـه چـې سـپي وربانـدې روان و. د افلاطـون د ليکونـو قهـويي پاکـټ يـې پـه لاس کـې و. هـرې دوه لارې تـه بـه چې رسېده نو په هغه به روانه شوه چې تر نورو پراخه وه.

مرغـانو پـه پـانو، ونـو، هـوا او هـر ځـاى کـې چـغ چـوغ بنـد کـړى و. دوى هـر يـوه خپـل ورځنـى کـار کـاوه. رخصـتي او نارخصـتي تـوپير نـه ورتـه کـاوه. دا کارونـه مرغـانو تـه چـا ښـودلي وو؟ لکـه کـوم کـوچني کمپيـوتر چـې پـه هـر مرغه کې ځاى پر ځاى شوى وي، هر يو په خپل کار پسې روان و.

په تلو تلو کـې وړې تپې تـه ورسـېده. همداسـې د شـنو ونـو پـه منـځ کـې ښـکته روانـه شـوه. ونـې دومـره ګڼـې وې چـې خـو ګامـه مخکـې لاره نـه ښـکارېده. ناڅاپه يې سترګې د ونو پـه منـځ کـې پـر يـوه شي ولګېدې. د اوبـو لويـه وياله تېره شوې وه. لاره پـه يـوه لـوري تللې وه، خـو سـوفي ناڅاپـه د اوبـو لـوري تـه مخـه کـړه، نـه پوهېـده چـې ولـې يـې پښـې د اوبـو لـوري تـه روانـې دي. اوبـه د فوټبـال د يـوه ميـدان پـه کچـه وې. د اوبـو بـل لـور تـه، کـوچنى کـور و، د لـوړو ونو په منځ کې يې سـور رنـګ لـه ورايـه ښـکارېده. لـه بامـه يـې نـرى دود پورتـه آسمان ته روان و.

سوفي د اوبـو غـاړې تـه ودرېـده. د سـترې ويـالې ځنـډې ختينـې او لمـدې وې. سـترګې يـې پـر وړه کښـتۍ ولګېـدې. پاروګـان يـې د ننـه پکـې پراتـه وو. کښتۍ تـر نيمايـي لـه اوبـو را ايسـتل شـوې وه. سـوفي شـاوخوا وکتـل، غوښـتل يـې لـه اوبـو تېره شي او ځان هغـه سرې جونګړې تـه ورسـوي. پښـې يـې پـه

ختهو ککړې شوې، خو د کېښتي لور ته روانه شوه. دواړه لاس يې پکې بند کړل، شا ته يې تيله کړه، د اوبو پر سر ودرېده. پکې سپره شوه، پارو يې په حلقه کې بند کړ او د اوبو بلې غاړې ته روانه شوه. کښتي ډېره ژر د اوبو پورې غاړې ته ورسېده، سوفي وچې ته ووته، کوښښ يې وکړ کېښتي له اوبو په څان پسې را کاږي. خو وچه دلته تر هغه بلې غاړې ډېره لوړه وه.

شاوخوا يې وکتل، جونګړې ته ور روانه شوه، له خپلې بې باکۍ حيرانه وه، ددغه کار جرات پکې له کومه پيدا شو؟ پخپله نه پوهېده، خو دې ته ورته و لکه يو څوک يې چې په زور غواړي يوې خوا ته کش کړي.

سوفي وره ته ورسېده، ور يې ودباوه، ودرېده، خو څوک را نه غلل، د وره لاستی يې ورو تاو کړ، ور خلاص شو، سر يې ننه ايست. غږ يې وکړ:

- څوک شته؛ اوهو غږ مې اورئ، څوک شته؟

ننوته، په سالون کې کېناسته، دا جرات يې ونه کړ چې ور په څان پسې وتړي، په دې کې خو شک نه و چې دلته کوم څوک ژوند کوي. په پخوانۍ او زړه بخارۍ کې د بوټو د سولو تک توک اورېدل کېده. ښايي څو شيبې وړاندې به دلته څوک و.

د ډوډۍ خوړلو پر اوږده ميز د ليکلو يو ماشين، يو څو کتابونه، قلمونه او يو بنډل کاغذونه ليدل کېدل. يو کوچنی او څنګ ته يې دوه کوچني کوچونه کړکۍ ته نېږدې ايښي وو. کړکۍ د اوبو لوري ته خلاصه وه. تر دې ور هاخوا په کور کې دومره مهم شيان نه و. خو يو ديوال سر تر پايه انوارۍ و او دغه انوارۍ له کتابونو ډکه وه. يوه هېنداره چې برنجي قالب يې درلود د کړکۍ پر سر را څوړنده وه، ډېره پخوانۍ ښکارېده.

پر بل دېوال دوه انځورونه لګېدلي وو. په يوه کې په روغني رنګ رسامي شوې وه. د سمندر څنډې سپين کور ښکارېده، وړه سره کښتي چې سره کوته پکې وه په ساحل کې ولاړه وه. د کښتۍ او کور تر منځ يوه باغچه ښکارېده چې په هغه کې د منې يوه ونه وه. څو نور بوټي هم ښکارېدل او

ځينـې هـواري ډبـرې پرتـې وې. د بـڼ گـرد چـاپېره لـوړې ونـې ولاړې وې. داسې ښکارېدې لکه د گولونو حلقه. د رسامی نوم برکلي[1] و.

د رسامی څنگ تـه د عمر خـوړلي سـړي انځـور و. پـر يـوه څوکی د کړکی مخـې تـه ناسـت و. لـوی کتـاب يـې پـه غيـږ کـې ايښـی و. لـه دې کړکی لرې هـم، کـور، سـاحل، ونـې او هـوارې ډبـرې ښـکارېدې. داسـې ښـکارېده چې څو کالـه مخکې بـه کښـل شـوی وي. ددې عکـس نـوم بيـا بـارکلي[2] او د رسام نوم يې، سميبرت[3] و.

بارکلي او برکلي، عجيب نومونه ورته ښکاره شول.

سوفي پلټنې تـه ادامـه ورکـړه. پـه سـالون کـې پخلنځي تـه يـو کـوچنی ور وتلی و. کـوم چـا همـدا څـو شـېبې وړانـدې لوښـي مينځلي وو. پيـالې او پيشـقابونه يـو پـر بـل پـه يـوه جـالی کـې ايښـي وو. د اوبـو څـاڅکي لا هـم د پخلنځي پـر سـتره ډبـره ښـکارېدل. يـو څـه پـاتې خـواړه پـه يـوه وسـپنيز لوښـي کـې د پخلنځي پـر غـولي ايښـي وو. داسـې ښکارېده چې دلتـه ژونـد کـوونکی کـس، سپی، پيشو يا کوم بل اهلي ژوی لري.

سـوفي بېرتـه سـالون تـه را وگرځېـده. بـل ور د خـوب کـوټې تـه ورغلـی و. دوه پتوگانه په يـوه تـوټـه کـې نغاړل شـوي و او د کـوټې پـر غـولي ايښـي وو. سوفي لـږ طلايـي وېښـته هـم پـر يـوه پتـو وليـدل. لـه دې سره نـو بـاوري شـوه چـې پـه دې کور کې آلبرتو کناکس او هرمس ژوند کوي.

بېرتـه سـالون تـه را وگرځېـده، آينـې تـه مخـامخ ودرېـده. د هېنـدارې مـخ تيـاره او خـط خـط و. ددې انځـور هـم پـه هېنـداره کـې همداسـې تيـاره او خـط خـط ښـکارېده. سـوفي عـادت وه، د حـمام د آينـې پـه څېـر يـې هڅـه وکـړه چـې پـر دغـه هېنـداره هـم څېـرې رسـم کـړي. پـه هېنـداره کـې يـې د سـوفي انځـور هـم همدا کار کاوه، دا خو نو طبعي خبره وه.

---

[1] Berkely
[2] Berkeley
[3] Smibert

خو ناڅاپه يوه وېروونکې پېښه وشوه. يو ځل، يوازې يو ځل، يې د سترګو په رپ کې وليدل چې په هېنداره کې شته نجلۍ سوفي ته سترګک وهي. هغه سترګک ته ورته خپلې دواړه سترګې پټې کړې. سوفي له وېرې شا ته ټوپ واچاوه. که يې په خپله په دواړو سترګو سترګک وهلی وي، نو په هېنداره کې د شته څېرې سترګک يې څنګه وليد؟ يا به داسې وه چې د هېنداري څټ ته نجلۍ غوښتل سوفي ته کوم څه ووايي، ويل به يې چې زه تا وينم. زه د آينې په بل اړخ کې يم.

سوفي د خپل زړه د حرکاتو غږ اورېده. په دې وخت کې يې د سپي غپېدا تر غوږ شوه. ښايي غږ يې له ډېر لرې راته.

- آه! هرمس دی بايد له دې ځايه وتښتم

ناڅاپه يې سترګې پر يوه شنه بکس ولګېدې، په هغه کې يو څه پيسې وې. د سلګون يو لوټ د پنځوسګون يو لوټ او د ښوونځي يو کارت پکې وو. پر کارت د يوې نجلۍ انځور سرېښ و، تر انځور لاندې ليکل شوي و. هيلده مولرکناګ...

د سوفي وجود لړزې واخيست، د سپي غږ را نږدې کېده. له ځنډ پرته بايد له کوره وتلې وای.

په منډه يې له کوره د وتلو هڅه وکړه، د تګ به وخت کې يې د پانو په منځ کې په يوه پاکټ سترګې ولګېدې، سپين پاکټ و، د پاکټ پر څټ ليکل شوي و. سوفي!

د فکر کولو وخت نه و ورسره، سپين پاکټ يې په منډه د افلاطون د ليکونو په قهويي پاکټ کې کېښود. په منډه له کوره ووته او ور يې به زوره په ځان پسې وتاړه.

د سپي غږ را نږدې کېده، تر ټولو بده خبر خو دا وه چې کښتۍ پر خپل ځای نه وه. خو شېبې وروسته يې وليده، چې د اوبو په منځ کې هسکه تيته کېده. د کښتۍ يو پارو هم د اوبو پر څپو پروت و. پخپله ملامته وه،

کېښـتي يـې لـه اوبـو پـوره نـه وه را ايسـتلې. د سـپي غـږ ډېـر را نـږدې شـو. د اوبو پورې غاړې ته ونې او پانې باد رپولې.
سـوفي و نـه درېـده، سـتر پاکـټ يـې بـه لاس کـې و، د جـونګړې پـه څـټ کـې ولاړو ګنـو ونـو تـه ننوتـه. لـږ نـه وه تللـې چـې پـه لمـدو ختمـو سر شـوه، شـړپ شړوپ يې و، پکې روانـه وه. بلـه چـاره نـه وه، مـخ تـه روانـه وه، بايـد خـان يې کور ته رسولی وای.
پـر يـوه سـرک ور برابـره شـوه، دا همغـه لاره وه چـې مخکـې وربانـدې راغلـې وه؟ و دربده، جامې يې په لاسونو لږ و څنډلې، بس يو دم په ژړا شوه...
ولـې يـې دومـره سـادتوب وکـړ. تـر ټولـو بـده خـو دا کښـتي وه. پـه اوبـو کـې خوشـې کښـتي او څپـو پـر سر اخيسـتي پـارو يـې پـه سـترګو سـترګو کـې کېـده. څومره رشخند، څومره له شرمه ډکه پيښه...
معلـم بـه نـو اوس حـتما د اوبـو څنـډو تـه رسـېدلای وي. د فلسـفې معلـم هـم خپـل کـور تـه د رسـېدو لپـاره کښـتي تـه اړتيـا لرلـه، هغـه سـوفي پـه اوبـو لاهـو کړې ده. سوفي د جرم احساس وکـړ، خـو ويـل يـې څـه قصـدا خـو مـې دا کـار نه دی کړی.
- آه! پاکټ ته ګوره، دا مې څومره تېروتنه کړې ده، پاکټ څه کوم؟
فکـر يـې وکـړ، چـې څـه خـو نـوم مـې وربانـدې ليکـل شـوی و، نـو خپـل شـی مې و. بيا يـې هـم احسـاس کـاوه چـې غـلا يـې کـړې ده. ښـه نـو اوس يـې معلـم ته دا معلومات په لاس ورکړل چې سوفي دلته راغلې ده.
د پاکـټ خولـه يـې خلاصـه کـره، پانـه يـې تـرې را و ايسـته. وربانـدې ليکـل شوي و:
- کوم يو اول پيدا شوی؛ چرګ که د چرګ (مثال)؟
- موږ له ذاتي (مثالونو) سره نږی ته راڅو؟
- د بوټي، انسان او حيوان توپير په څه کې دی؟
- ولې باران اوري؟
د ښه ژوند کولو لپاره بايد څه وکړو؟

سوفي اوس ددې خبرو حوصله نه لرله، خو فکر يې وکړ چې هرو مرو د کوم بل فيلسوف اړوند پوښتنې دي. نوم يې څه شی و؟ ارسطو؟
له يو څه منډې وروسته، د کور شاوخوا تاو شوې احاطه را ښکاره شوه، د ګڼو ونو په منځ کې ښکارېده. حالت يې هغه ماتې بېړۍ ته ورته و، چې نوې ساحل ته رسېدلې ده. له شنو بوټو جوړه شوې د کور احاطه له دې خوا بده ښکارېده، خو له ننه خوا يې پلار سمه جوړه کړې وه.
پينځې ته يې نټوته او ساعت ته يې وکتل، لس نيمې بجې وې. ستر پاکټ يې له نورو پاڼو سره يو ځای په ډبلي کې کېښود، خو د نوو پوښتنو پاڼه يې به خپله جرابه کې پټه کړه.
کور ته چې ننوته مور يې پر ټيليفون کولو بوخته وه. سوفي يې چې وليده، ټيليفون يې په غوسه کېښود.
- په دې پوهېږې چې چېرته وې؟
- ز..زه زه تللې، وم ځنګل ته، تازه هوا کې ګرځېدم.
- هو هو له حالته دې ښکاري
سوفي پټه خوله ولاړه وه، له کاليو يې اوبه څڅېدې.
- يووانا ته مې زنګ وواهه
- يووانا ته؟
مور يې وچې جامې ورته راوړې. سوفي په سختۍ د فيلسوف يادښت پټ کړ. په پخلنځي کې يو ځای سره کېناستل. مور يې تودې ککوې شيدې ورته راوړې. څو شېبې وروسته يې پوښتنه وکړه:
- له هغه سره وې؟
- له چا سره؟
د سوفي ټول سوچ د فلسفې له ښوونکي سره و.
- له هغه سره، له هغه سويې واله سره...
سوفي يې سر وخوځاوه.
- سوفي تاسې چې يو ځای شی څه کوئ؟ ولې دومره لمده يې؟

صوفي وخوځیده، یو څه جدي شوه، میز ته یې وکتل، خو په زړه کې یې خندل.

- د مور ماشوم اوس نوې کیسې پیدا کړې دي؟

بیا یې سر وخوځاوه، خو د پوښتنو تر امبار لاندې شوه.

- ربښتیا وواېه، ټولـه شپـه بهـر وې؟ ولـې تېـره شـپه لـه دې جـامو سره ویـده شـوې وې؟ لـه وېـده کېـدو مخکـې د غلـې پـه څېـر چېرتـه ووتـې؟ سـوفي تـه ځـوارلس کلنـه یـې، ولـې سر نـه خلاصـوې. زه باید پوه شم چې ته له چا سره ګورې، هغه څوک دی؟

سـوفي پـه ژړا شـوه، پـه خـبرو یـې پیـل وکـړ، لا هـم وېـره ورسره وه، انسـان چې کله ووېرېږي، نو خبرې کوي.

خپلـې خـبرې یـې پیـل کـړې. چـې سـهار وختـي لـه خوبـه پاڅېـده. و یـې غوښـتل پـه ځنګلـه کـې وګرځـي. د کښـتۍ، اوبـو، جـونګړې او وېرووونکـې آینې کیسه یې مور تـه وکـړه. خـو د لیکونـو او شـنه بکـس پـه اړه یـې هـېڅ و نـه ویل.

نه پوهېده ولـې. خـو بایـد د هیلـده خـبره یـې لـه ځـان سره سـاتلې وای. مـور یـې هغه په غېږ کې ونیوله او سوفي پوه شوه چې په خبرو یې باور کړی دی.

په ټیټ غږ یې وویل:

- زه کـوم ملګـری نـه لـرم. دا مـې همداسـې وویـل، ځکـه تـه د سـپینې سویې له کیسې ډېره خپه شوې.

مور یې خپه وه، په فکرونو کې ډوب شوه.

- ته د قومندان تر جونګړې پیاده ولاړې؟

سوفي یې په حیرانۍ مور ته وویل:

- د قومندان جونګړه؟

- هـو پـه ځنګـل کـې کـوچنۍ کـور د قومنـدان پـه جـونګړه مشـهور دی. ځکـه کلونـه مخکـې یـو قومنـدان هلتـه اوسـېده. خـو اوس نشـته دی.

له هغې وروسته هغه کور هم همداسې پاتې دی. هغه عجیب سړی و، عقل یې هم سم نه و، خو پرپرده یې اوس کور تش دی.

- نه تش نه دی، هلته فیلسوف اوسي
- چوپ شه نورې دا خیالي خبرې مه کوه

سوفي یې خپلې کوټې ته ولاړه. لا هم د نن ورځې د پېښو په سوچونو کې وه. یوه غوغا یې په سر کې جوړه وه. په سر کې یې سترو فیلونو یوې بلې خوا ته شیان لېږدول، مسخرو خلکو لوبې او مسخرې کولې، بیزوګانو یوې بلې خوا ته منډې وهلې، دوی د تقلیدونو په زده کړه کې ډوبې وې. د سوفي په سر کې داسې حال و.

یوه منظره یې تل په ذهن کې را ګرځېده، د وړې کښتۍ منظره، چې د ځنګل په زړه کې د اوبو پر سر روانه وه او یو ستړی سړی باید په دې کښتۍ کې خپل کور ته رسېدلای وی.

سوفي باوري وه چې فیلسوف د دې بد نه غواړي او که یوه شي چې دا یې کور ته ورغلې نو هرو مرو یې ببښي. خو دې یې ژمنه هېره کړې وه. د دومره درسونو او زده کړو پر ځای یې باید همداسې مننه کړې وای؟ څه ډول یې دا تېروتنه جبران کړې وای؟ حیرانه وه. ستړه زېړه کتابچه یې را و ایسته، په لیکلو یې پیل وکړ:

ښاغلی فیلسوف: د یکشنبې په ورځ سهار وختې ستا جونګړې ته درغلم، زړه مې غوښتل تا ووینم او د ځینو فلسفي مسایلو په اړه خبرې وکړو. زه اوس د افلاطون ډېره مینه وال او مریده یم. خو باوري نه یم چې د هغه نظر دې د مثال په نړۍ کې د انځورونو د حقیقي موجودیت په اړه سم وي. دا شیان طبعاً زموږ په روح کې موجود دي. خو زما په نظر اوس لا تر اوسه بل مطلب شته دی. یوه بله خبره هم کوم، چې زما په نظر د روح د تلپاتې والي نظریه هم سل په سلو کې د منلو نه ده. زه شخصاً د خپل مخکیني ژوند په اړه هېڅ شی په ذهن کې نه لرم. که تاسې ما ته په دې اړه

یو څه ووایی، چې د نیا روح مې د مثال په نړۍ کې خوشاله ده دېره به دې منندویه وم.
خو که رښتیا را باندې وایي ددې له لیک له لیکلو مې موخه فلسفي مسایل نه و. لیک به په زېړ پاکټ کې کېږدم یوه ټوټه خواږه هم ورسره ایږدم. ما غوښتل، بښنه وغواړم، له تا سره کړې ژمنه مې ماته کړه او ستا خبره مې ونه منله. ما غوښتل چې کېښتي له اوبو را وباسم، خو ښايي زور مې نه دی ورته رسېدلای یا ستره څپه راغلې او کېښتي یې له ځان سره وړې ده.
هیله لرم چې له لمدېدو پرته خپل کور ته رسېدلای وې. خو که لوند شوی وې او زما له حال خبر شې نو زړه به دې یخ شي. زه ښه سمه لمده شوم، ښه ساړه مې هم شوي، ښايي ښه ناروغه هم شم. خو دا هر څه مې خپله ګناه ده.
ما په جونګړه کې په هیڅ شي ګوتې نه دي وهلې، خو یو څه ووایم، طاقت مې ونه شو، د میز پر سر پروت لیک مې له ځان سره راوړی دی. د غلا پلان مې نه درلود، خو پر هغه مې خپل نوم ولید نو فکر مې وکړ چې زما دی. د زړه له تله بښنه غواړم. ژمنه کوم چې بیا به هېڅ وخت تاسې و نه خوروم.
نوټ: د نوو پوښتنو په اړه به له همدې شېبې دقیق فکر وکړم.
۲ نوټ: رښتیا! د کړکۍ پر سر را خوړنده هېنداره هسې معمولي هېنداره ده؟ که د کوم جادو خبره ده پکې؟ دا خبره مې ځکه وکړه، چې زه نه غواړم انځور مې راته په دوو سترګو سترګک ووهي.
په درنښت، ستاسې هڅانده او مینه واله شاګرده:
سوفي!
لیک یې دوه ځله ولوست، بیا یې په پاکټ کې کېښود. فکر یې وکړ چې تر مخکني لیک یې دا یو څه ښه او ساده لیکلی دی. مخکې له دې چې

پخلنځي تـه د خـوړو پـه تـوتـه پسـې ولاړه شـې يـو ځـل بيا يـې د فيلسـوف پوښتنې وکتلې.

- کوم يو اول پيدا شوی؟ چرگ که د چرگ مثال؟

دا پوښتنه هم هغه د چرگـه اول پيـدا شـوې کـه يـې هگـۍ؟ پوښتنې تـه ورتـه يـو څه وو. نه چرگه له هگـۍ پرتـه پيـدا کـېږي نـه هگـۍ لـه چرگـې پرتـه. خـو ددې اټکـل کـول، چـې چـرگ/ چرگـه مخکـې پيـدا شـوې کـه يـې مثـال همـدومره گـران کـار و؟ سـوفي پوهېـده، چـې د افلاطـون موخـه څـه ده. افلاطـون ويـل مخکې لـه دې چـې چرگـه دلتـه زمـوږ پـه حسي-نـړۍ کـې پيـدا شي، د مثـال پـه عـالم کـې شـته ده. د هغـه پـه بـاور، زمـوږ روح مخکـې لـه دې چـې زمـوږ بـدن تـه د ننـه شي د چرگ/چرگـې مثـال ليـدلی دی. اوس نـو سـوفي فکـر وکـړ، چې ښايي افلاطون پـر ناسـمه تللـی وي. يـوه بنيادم چـې هـېڅ وخـت چـرگ يـا د چـرگ انځـور نـه دی ليـدلی، څنگـه کـولای شي د چـرگ مثـال پـه ذهـن کـې ولري؟ همدې خبرې پخپله دويمه پوښتنه را مخ ته کوله.

- موږ له ذاتي مثالونو سره نړۍ ته راځو؟

د سـوفي پـه نظـر دا ناشـونی کـار و. دا بـه سـتونزمنه وي چـې ووايـو يـو نـوی زېږيـدلی ماشـوم د يـوې مفکـورې او يـوه ليـدلوري خاونـد دی. خـو دا خـبره څوک په پـوره بـاور نـه شي کـولی. دا چـې ماشـوم خـبرې نـه شي کـولی پـه دې مانا نه ده، چې هغـه بـه فکـر هـم نـه لـري. خـو پوښـتنه دا ده چـې کـه يـوه انسـان کوم شی نه وي ليدلي هغه به و پېژندلی شي؟

- د حيـوان او نبـات تـوپير پـه څـه کـې دی؟ دې پوښـتنې نـو دومـره کـار نـه غوښـت. سـوفي ددې دواړو شـيانو تـوپير پـه ښـکاره توگـه ليـدلای شو.

داسې گومـان يـې نـه کـاوه چـې بـوټي يـا نباتـات دې ډېـر پېچلـي عـاطفي ژونـد ولـري. تـا تـر اوسـه اورېـدلي چـې کـوم گـل پـه زړه زخمـي وي يـا خپـه شـوی وي؟ بـوټي شـنه کـېږي، خـوراک کـوي، د مثـل د توليـد لپـاره تخـم شـينـدي. تـر دې ور هاوخوا د بوټـو پـه اړه څـه ويـلای شـو. سـوفي فکـر وکـړ چـې د بوټـو يـا

نباتاتو دغه ځانګړنې په انسانانو او حیواناتو کې هم پیدا کولای شو. خو حیوانات د بوټو او نباتاتو په پرتله یوه بله ځانګړنه هم لري. د بېلګې په توګه: دوی حرکت کولای شي. تر اوسه دې لیدلي چې سره ګلاب د منډې سیالي کړې وي؟ د انسان او حیوان د توپیرونو په ګوته کول یو څه ګران کار دی. انسان کولی شي فکر وکړي. خو دا کار کوم حیوان کولی شي؟ سوفي داسې و انګیرله چې پیشو یې فکر کولی شي. هیڅ چې نه وي په لاره، د خپنو شیانو په وخت او خپل کار پوهېږي. خو هغه د فلسفي مسایلو په اړه خبرې کولی شي؟ کومه پیشو کولی شي، چې د انسان، حیوان او نبات په توپیرونو خبرې وکړي؟

نه هیڅ وخت. دا کار د یوې پیشو په وس پوره نه دی. کېدای شي پیشو یو وخت خوشاله یا خپه وي. خو هیڅ وخت له ځانه دا پوښتنه نه شي کولی، چې روح به یې تلپاتې وي که نه؟ د سوفي په باور د پیشو له خولې ددې پوښتنو ځوابول ناشونی کار و. له ماشوم او فطري مفکورې سره هم زموږ ستونزه همدا ده. ددې مسایلو په اړه له یوه ماشوم سره خبرې کول، له یوې پیشو سره خبرو کولو ته ورته کار دی.

- ولې باران اوري؟ سوفي یې اوږې پورته واچولې، ښایي له دې امله وي، چې په سیند کې اوبه په بړاس (بخار) بدلیږي، له ګازونو یې وریځ جوړیږي. وریځې تراکم وکړي او د باران په بڼه را اوري. دا شیان یې په دریم ټولګي کې لوستي وو.

بل دول هم ویلی شو. باران ځکه اوري چې نباتات او حیوانات ژوندي پاتې شي. خو دا خبره سمه ده؟ د باران د اورښت تر شټ کومه موخه شته ده؟

وروستۍ پوښتنه نو بې موخې نه وه. (د ښه ژوند لپاره باید څه وکړو؟) فیلسوف د خپلو درسونو په هغه لومړیو کې په دې اړه څه لیکلي وو. ټول خلک، خوړو، تودې هوا، مینې، محبت او ساتنې ته اړتیا لري. دا لومړنۍ اړتیاوې او د ښه ژوند اصلي غوښتنې دي. هغه دا یادونه هم کړې وه، چې

انسان د فلسفي پوښتنو د ځوابونو پیدا کولو ته هم اړتیا لري. دا هم مهمه خبره ده چې هر څوک دې د خپلې خوښې دنده او کار ولري. لکه یو څوک چې له موټروانۍ سره مینه نه لري، نو د ټکسي- چلول یې د خوښې کار نه دی. که یو څوک د زده کوونکو د پاڼو له سمولو او کتلو زړه توري وي نو هغه ښوونکی ګومارل ښه کار نه دی. سوفي له حیواناتو سره مینه لرله او غوښتل یې ویترنري ووایي. ښه نو بیا هم هغه داسې فکر نه و کړی، چې سړی دې باید د ښه ژوند لپاره د پچې یا قرعې له لارې د یو میلیون ډالرو ګټونکی شي. ددې برعکس ښه به وي چې، انسان زیار وباسې، کار وکړې او خزانه وګټي.

سوفي یې په کوټه کې پاتې شوه. ماسپښین یې مور غږ وکړ چې راشه د غرمې ډوډی تیاره ده. څو ډوله خواړه یې تیار کړي وو. کچالو، ډاډه کړي کچالو، سره کړي، د غوایه غوښه، سبزي او نور شیان پر میز ایښي وو.

له شاوخوا یې خبرې وکړې. مور یې پوښتنه وکړه چې، د پنځلسمې کلیزې نمانځنه به یې څه ډول کوي. یوازې څو اونۍ هغه ته پاتې وې. سوفي یې اوږې پورته واچولې.

- څوک نه را غواړې؟ ښه سم جشن نه جوړوو؟
- غواړم ولې نه.. مارتا، انه ماریا .... او هلن، هو رښتیا یووانا او جرمي به هم را وغواړم.
- هغه نو ستا خپل زړه دی، زما د پنځلس کلنۍ کلیزه مې داسې په یاد ده لکه همدا اوس. هیڅ فکر نه کوم چې یوه زره دې بدله شوې وم.
- نه هیڅ نه یې بدله شوې، انسان یوازې وده کوي او عمر یې ډېرېږي.
- · اوه..... ډېره خوسا خبر دې وکړه. ما غوښتل ووایم چې هر څه ډېر ژر تېر شول.

# ارسطو

**... هغه دقيق او ژور تنظيموونکی چې هغه يې وکړه زموږ مفاهيم روښانه کړي...**

مور يې په کوټه کې وه. سوفي خپلې جونګړې ته ولاړه. په زېړ پاکټ کې يې يوه ټوټه خواږه کېښودل او پر څټ يې وليکل: آلبرټو ته!

کوم نوی ليک نه و راغلی، خو څو شېبې وروسته سوفي د سپي د را نږدې کېدو غږ واورېد. غږ يې کړل:

- هرمس!

سپی پټنځي ته د ننه شو. لوی قهوه يي پاکټ يې په خوله کې و. سوفي وويل: آفرين، آفرين، سپي تېزه تېزه سا اخيسته. سوفي کلک په غېږ کې ونيو. زېړ پاکټ يې سپي ته په خوله کې ورکړ. سپی د ګېو ونو او پاڼو له منځه ووت، مخ په ځنګل يې منډه واخيسته.

سوفي زړه نا زړه پاکټ پرانيست. په دې نه پوهېده، چې د کښتی او هغه وړې جونګړې په اړه به کوم څه وي پکې که نه. ټايپ شوې پاڼې د تل په څېر له يو بل سره تړلې وې. له دې سره يوه ټوټه بېل کاغذ هم په پاکټ کې و. پر دې کاغذ ليکل شوي وو:

- او! په کار يوه نجلۍ. که په بل ډول درته ووايم او غلې. د غلا دوسيه مې دې پوليسو ته سپارلې ده.

توکه مې وکړه؛ زه غوسه نه يم. که فلسفي معماګانو ته په خواب لټولو کې هم همدومره هڅانده او ځيرکه وې نو بيا مې هيله درته ډېره شوه. ستونزه دا ده چې اوس بايد ځان ته ځای پيدا کړم. په اصل کې تېروتنه ما پخپله کړې ده، بايد پوه وای چې ته ډېره ځيرکه نجلۍ يې او د هر څه د دليل پيدا کول غواړې.

په دعا دې
آلبرتو!

د سوفي زړه آرام شو. پوه شوه چې فیلسوف غوسه نه دی. خو ولې غواړې ځان ته امن ځای پیدا کړي. پاڼې یې واخیستې او د خپلې کوټې په لوري روانه شوه. مخکې له دې چې مور یې له خوبه پاڅېږي باید دا پخپله کوټه کې وای. پر کټ یې اوږده و غځېده او د لیکونو په لوستلو یې پیل وکړ.

**فیلسوف او عالم**

ګرانې سوفي! ښایي د افلاطون د مُثل نظریې حیرانه کړې وې. په دې برخه کې نو ته یوازې نه یې ملګري دې ډېر دي، دوی هم همداسې حیران دي. نه پوهېږم چې په خبرو یې پوره پوهېدلې یې که نه، خو پوهېږم چې د ځینو خبرو په اړه یې نیوکې لرې. بیا هم د تشویش خبره نه ده؛ ځکه ارسطو (۳۸۴- ۳۲۲ م ز) نږدې شل کاله د افلاطون په اکاډمۍ کې شاګرد و. هغه هم پر خپل استاد ځینې داسې نیوکې لرلې.

ارسطو په اصل کې د آتن و. په مقدونیه کې زېږېدلی و. کله چې افلاطون ۶۱ کلن و، نو ارسطو هم د هغه اکاډمۍ ته راغی. د ارسطو پلار د خپل وخت تر ټولو مشهور او نامي ډاکټر و. له همدې امله ارسطو هم له علم او پوهې سره بلد سړی و. دغه مخینه په خپله مور ته د ارسطو د تګلارې په اړه ځینې شیان ویلای شي. هغه یوازې د یونان ستر او وروستی فیلسفوف نه و، بلکې د اروپا تر ټولو ستر او لومړنی چاپېریالپوه هم و.

که وغواړو چې مبالغه وکړو نو داسې هم ویلای شو، افلاطون د مُثل په نظریه کې دومره ډوب شو، چې په چاپېریال کې روانو بدلونونو ته یې هېڅ پام نه و. ارسطو بیا دغو بدلونونو ته ډېر دقیق متوجه و، هغه بدلونونه چې نن په نړۍ کې د مهمې مسلې په سترګه ورته کتل کېږي.

یو بل څه هم ویلی شو، افلاطون د محسوساتو نړۍ ته شا واړوله، هغه په خپله شاوخوا کې شیان هېڅ وګڼل. ده غوښتل له غار یا سوري و تښتي او

د مثالونو تلپاتې نړۍ ته سر ورښکاره کړي. ارسطو بیا د هغه خلاف چاره پر مخ وړله. هغه لستوني بډ وهل، د کبانو، څنګښو او نورو شیانو په څېړنه یې پیل وکړ.
افلاطون یوازې خپل عقل په کار واچاوه، ارسطو بیا له خپلو حواسو هم ګټه پورته کړه. ددې دواړو ترمنځ ژور مخالفتونه لیدلای شو، ددوی په اثارو کې ډېر ښکاره اختلافات شته دي. داسې ویلای شو، چې افلاطون تر ډېره اسطوره پوه او شاعر پوه و. په دې مانا چې د شاعرانو او اسطورو په اړه یې معلومات لرل. د ارسطو لیکنې بیا د یوه پوهنغونډ په څېر وچې او کره دي. ددې تر څنګ څه چې ارسطو لیکل، د هغه د وروستیو مطالعاتو او تجربو پر بنسټ لیکل شوي وو.
تاریخي کتابونه او روایات وايي چې ارسطو ۱۷۰ کتابه لیکلي وو. له دې ډلې یوازې ۴۷ آثار پاتې دي. په دې کتابونو کې یو هم پوره نه دی. ډېرې یادښتونه د هغه درسي لکچرونه دي؛ ځکه فلسفې په هغه وخت کې لا شفاهي بڼه درلوده.
ارسطو ځکه په اروپايي هېوادونو کې ډېر مشهور دی، چې د هغه ټاکل شوې علمي کلمې او اصطلاحات لا هم ژوندي دي. هغه لا هم په علمي مرکزونو او محفلونو کې يادېږي. هغه ستر اداره کوونکی و، داسې ویلای شو، چې ارسطو د بېلابېلو علومو د بنسټ ډېرې ابښې دي. ډېرې علوم ده طبقه بندي کړي او ويشلي دي.
ارسطو تقریبا د ټولو علومو په اړه ځینې شیان ولیکل. له دې امله نو موږ یوازې د هغه پر مهمو کارونو یو نظر اچوو. سوفي! ما د افلاطون په اړه دومره ډېرې خبرې درته وکړې، اوس نو دې ته غوږ شه چې ارسطو څنګه د افلاطون د مثل نظریه رد کړه. بیا به دا وګورو چې ارسطو څنګه خپله طبيعي فلسفه تدوین کړه. دا هم ارسطو و، چې د مخکنيو طبعي فیلسوفانو خبرې یې تر موږ را ورسولې. دا به هم وګورو چې څنګه ارسطو زموږ مفاهیم طبقه بندي کړل، په همدې توګه یې د منطق د علم بنسټ کېښود. په پای کې هم دا درته وایم، چې د انسان او ټولنې په اړه د ارسطو نظر څه

**ذاتي مثالونه**

افلاطون هم د مخکنیو فیلسوفانو په څېر غوښتل، ددې ټولو بدلونونو په مېنځ کې دایمي او نه بدلېدونکی شی پیدا کړي. نو له همدې امله یې د کاملو مثالونو خبره را منځته کړه چې د محسوساتو تر نړۍ یې هغه غوره وبلل. افلاطون پر دې هم باوري و، چې مُثُل تر طبعي ښکارندو ډېر حقیقي دي. لومړی مثالي اس پیدا شوی دی. بیا د محسوسې نړۍ اسونه پیدا شوي دي. مثالونه لکه په غار کې د اس سیوری، چې ټولو پر هغه د حقیقي اس گومان کاوه، خو حقیقي اس تر هغه ښکلی و. لکه د چرگې مثال تر چرگې مخکې موجود و.

ارسطو فکر وکړ، چې افلاطون هر څه سرچپه او ناسم لیدلي دي. له خپل استاد سره تر دې ځایه موافق و، چې اس هم لکه موږ بدلېدلی شي او تلپاتې عمر نه لري. هغه پر دې هم باوري و، چې د اس صورت تلپاتې او نه بدلېدونکی دی. خو مثالي اس بیا هغه مفهوم دی چې موږ انسانانو د ډېرو اسونو په لیدلو سره په خپل ذهن کې پر ځای کړی دی. نو له دې امله ویلای شو، چې د اس مثال یا صورت په خپل سر نه شي رامنځته کېدلای. د ارسطو په باور، د اس مثال یا تصویر د هغو معلوماتو ټولگه ده چې موږ یې د اس په اړه لرو. یا د هغو ځانگړنو ټولگه ده چې اس یې له نورو شیانو بېل کړی او همدې ځانگړنو اس ته یو تعریف وربښلی دی. دا ځانگړنې چې څوک وویني یا محسوسې کړي نو اس یې په ذهن کې راګرځي او هغه پېژني.

که لږ خبره نوره هم درته واضح کړم، د ارسطو په باور د اس صورت د هغو ځانگړنو ټولگه ده، چې د ډېرو اسونو تر منځ مشترک دي. دلته نو د شرینو او کلچو د قالب مثال درد نه دوا کوي. ځکه قالب له خوږو او کلچو ور هاوخوا بېل او مستقل شی دی. ارسطو پر دې باور نه درلود، چې له طبعي نړۍ دې بهر د هر شي او هر موجود لپاره یو ځانگړی قالب وي.

ارسطو به ویل، چې صورتونه پخپله په همدې موجوداتو کې دي. صورتونه د همدې موجوداتو ځانګړې خصوصیت دی.

په دې توګه ارسطو له افلاطون سره موافق نه و، چې د چرګې مثال دې تر چرګې مخکې پیدا شوی وي. هغه څه چې افلاطون د چرګې مثال باله د ارسطو په باور هغه د چرګې د خاصو ځانګړنو ټولګه ده. دا ځانګړنې په هره چرګه کې لیدلی شو. لکه هره چرګه هګۍ اچوي. نو له دې امله حقیقي چرګه او مثالي چرګه لکه روح او جسم له یو بل نه بېلېدونکې دي.

دا د ارسطو له لوري د افلاطون د مُثل پر نظریه د نقد یو څرک و. خو دا مه هېروه چې دغه مسئله د یوه ستر فکري تحول ارزښت لري. د حقیقت د موندلو لپاره د افلاطون تر ټولو ستره وسیله او لوړ میزان عقل و، خو ارسطو بیا د عقل تر څنګ واقعیت د حواسو له لارې هم درک کاوه. افلاطون به ویل، هر څه چې موږ په خپل چاپېریال کې وینو، د مثال په نړۍ کې تر هغه د یوه غوره شي سیوری دی. ده به ویل نو ځکه دغه شیان د انسان په روح کې دي. ارسطو به بیا د هغه برعکس ویل، چې د انسان په روح کې موجود شیان په طبیعت کې د موجود څېزونو انعکاس دی. نو حقیقي نړۍ همدا طبیعت دی. د ارسطو په باور افلاطون ځان په ډېرو اسطوروي انځورنو کې بند کړی و، د بشر ـ او حقیقي نړۍ تخیلات یې له یو بل سره بدل کړي وو.

ارسطو وایي هر هغه څه چې زموږ په ضمیر کې موجود دي، مخکې له مخکې زموږ د حواسو له خوا ازمویل شوي دي. افلاطون به بیا ویل هغه څه چې د مثال په نړۍ کې نشته په حقیقي نړۍ کې هم نشته دي. ارسطو بیا وایي چې افلاطون په دې توګه د څېزونو شمېره دوه برابره کوي. د اس د پېژندنې لپاره د اس د مثال خبره کوي. دا خو نو پېژندنه او توضیح نه شوه. سوفي زما پوښتنه دا ده چې د اس مثال له کومه ځایه راغی؟ نو ښایي

درېيم اس هم موجود وي چې د اس مثال د هغه له مخې جوړ شوی دی همداسې نه ده؟

ارسطو باوري و، چې زموږ په ضمير کې شته شيان، ټول د اورېدلو، ليدلو يا نورو احساساتو له لارې هلته ځای پر ځای شوي دي. له دې ور هاوخوا موږ ټول د عقل په نامه له ځان سره يو ذاتي قدرت لرو. خو د افلاطون د خبرې پر خلاف موږ ټول ذاتي مفکورې نه لرو. په موږ کې دا وړتيا او قوت شته دی، چې خپلې حسي- تجربې او اغيزې په معقولاتو وويشو او هغه تنظيم کړو. د ډبرې، حيوان، نبات، انسان مفاهيم په تجربه او ليدلو تر لاسه کېږي. دې ته ورته د اس، چرګ او نور سلګونه څېزونو مفاهيم هم همداسې در واخله.

ارسطو دا هم منله چې بشر- فطري عقل لري. خو ويل به يې چې عقل د انسان تر ټولو غوره او مهمه ځانګړنه ده. دا به يې ورسره زياتوله چې که کوم څه احساس نه کړو، نو عقل مو خالي دی. نو د بشر- په ژوند کې د ذاتي مثالونو په نامه کوم شی نشته دي.

**د هر شي اړوند ځانګړنې، د هغه په صورت کې دي**

ارسطو د مثال په اړه له افلاطون سره خپله مسله يوې خوا ته کړه. دې پايلې ته ورسېد چې هستي يو لړ بېلابېل شيان دي، چې صورت او جوهر سره تړي. جوهر د څېزونو جوړونکی عنصر- دی او صورت يا د هغه څېز اړوندې ځانګړنې دي.

سوفې! په مخ کې دې يوه چرګه وزر رپوي، د چرګې صورت دقيقا همدا وزر رپول او هګۍ اچول دي. له همدې امله وايو، چې د چرګې صورت د هغه اړوندې ځانګړنې دي. يا په بله خبره، هغه کارونه چې چرګه کوي د چرګې صورت دی. که چرګه مړه شي، نور کوټ کوټ و نه کړي، نو صورت يې له هغې وروسته نشته دی. يوازينی شی چې پاتې کېږي، سوفي پوهېږي؛ هغه د چرګې جوهر دی. دا نو بيا چرګه نه ده.

مخکې مې هم وويل، چې ارسطو د طبيعت د بدلونونو په فکر کې و. جوهر تل ددې وړتيا لري چې يوه صورت ته حقيقي بڼه ورکړي. داسې هم ويلی شو، جوهر تل په هڅه کې دی، چې وکړی شي يو شی له بالقوې په بالفعل واړوي. د ارسطو په باور په طبيعت کې هر بدلون، له قوې په فعل د يوه جوهر د بدلېدلو عمل دی.

ښه ده مه کوه خبره اوس درته واضح کوم. سوفي! ښايي دغه خندوونکې کيسه مرسته درسره وکړي. يو کس مجسمه جوړوي. تک ټوک يې بند کړی او غواړي يوه ستره ډبره وتوږي. هره شېبه سوټک او قلم را واخلي ډبرې ته کېوځي او وهل ټکول پيل کړي. يوه ورځ يو ماشوم راځي او وايي؛ له دې ډبرې څه غواړې، څه شی ترې جوړوې؟ ډبر توږوونکی کس ورته وايي؛ ودرېږه او په خپلو سترګو يې ووينه چې څه ترې جوړوم. څو ورځې وروسته بيا هغه هلک راځي، اوس نو مجسمه جوړوونکي يو ښکلی اس له ډبرې جوړ کړی دی. هلک حيران شي، هنرمند ته سترګې واړوي او ووايي، ته له کومې خوا پوهېدې، چې په دې ډبره کې اس دی؟

رښتيا څه پوهېده؟ داسې هم ويلای شو، چې هنرمند په ډبره کې د اس خبره ليدلې وه، دې ډبرې ددې قوه درلوده چې په هغه کې يو اس جوړ شي. په همدې توګه د ارسطو په باور، په طبيعت کې هر څه ددې قوه لري، چې په هغه کې يو ښکلی صورت له قوې په فعل بدل شي.

راځه بېرته چرګې او د چرګې هګې ته را وګرځو. د چرګې هګې ددې توان لري چې چرګوړی ترې را ووځي. دا په دې مانا نه ده چې ټولې هګې چرګوړي کېږي، ډېری هګې په غوړو کې پخې شي او سهار پر دسترخوان د خوراک لپاره ايښې وي. په دې توګه نو ددوی بالقوه وړتيا نه را برسېره کېږي. دا هم بيا حقيقت دی، چې هېڅ هګې پر ګاز نه شي بدلېدای. څکه دا وړتيا د چرګې په هګې کې نشته ده. په دې توګه نو ويلای شو، چې د هر شي صورت د هغه شي، د وړتياوو او محدوديتونو ښکارندوی دی.

د جوهر او صورت په اړه د ارسطو خبر يوازې په ژوندیو موجوداتو پورې نه ده تړلې. که کوټ کوټ کول، هګۍ اچول، وزر رپول د چرګې په صورت پورې اړه لري، نو پر ځمکه لوېدل او دروندوالی هم د ډبرې صورت ښيي. کېدای شي ډبره پورته واچوو، خو بېرته ځمکې ته را لوېږي، ځکه د ډبرې طبيعت دا شی دی، چې پر ځمکه ولوېږي نه چې سپوږمۍ ته پورته شي. که دې کوم وخت دا کار کولو سوفي پام دې وي هسې نه چې ډبره غچ درنه واخلي او ځمکې ته د رسېدو لپاره نېږدې لاره انتخاب کړي.

**غايي علت**

ما مخکې هم وويل، سوفي چې د ارسطو په باور، هر موجود که هغه ساکښ وي يا بې ساه، يو صورت لري. دا صورت د هغه بالقوه عملونه يا وړتياوې ښکاره کوي. نو اوس به دا خبره هم ور زياته کړم چې ارسطو په طبيعت کې د علت په اړه د پام وړ نظرونه درلودل.

اوس که موږ د کوم شي د علت په اړه پوښتنه کوو، موخه مو دا وي چې ددغه کار د کېدو لامل څه و. يا هغه څه وو چې له امله يې دا کار وشو؟ د ښېښې د ماتېدو علت دا و، چې ماشوم په ډبره وويشته. بوټ ځکه جوړ شو، چې بوټ جوړوونکي د چرم څو ټوټې سره يو ځای کړې. ارسطو به ويل، د علت بېلابېل ډولونه په طبيعت کې موجود دي. هغه په همدې توګه څلور بېل علتونه ياد کړل. خو دده موخه له يوه شي روښانه کولای شو، هغه ته ارسطو (غايي علت) ويلی دی.

که د کړکۍ ښيښه ماته شوه، ددې پوښتنې کول سمه خبره ده، چې هلک ولې کړکۍ په ډبره وويشته؟ د هغه موخه څه وه؟ په دې کې هم شک نشته چې بوټ جوړوونکي د بوټونو له جوړولو کومه موخه درلوده، موخه يې څه وه؟ خو ارسطو د بې سا موجوداتو لپاره هم ورته موخې په ګوته کوي. زه يوه بېلګه دلته يادوم.

سـوفي ولـې بـاران اوري؟ ښـايي پـه ښـوونځي کـې دې لوسـتي وي، چې پـه وريځـو کـې کلـه رطوبـت او بخـار سـوړ شي، نـو د اوبـو د څـاڅکو پـه بڼـه را اوري. همـدا د بـاران علـت دی. همـدا څـاڅکي د ځمکـې جاذبـه قـوه ځان تـه راکـاږي. ارسـطو لـه دې خـبرې سره کـوم مخالفـت نـه لـري. خـو هغـه وايـي، چې تـر دې خايـه دې د بـاران د کېـدو يـوازې درې علتـه پـه ګوتـه کـړي دي. لـومړی مـادي علـت، پـه وريځـو کـې د بخـار او رطوبـت موجوديـت دی، چې د سړښـت لـه املـه د اوبـو پـر څـاڅکو بـدلېږي. دويـم فـاعلي علـت، د هـوا لـه بـدلون سره د رطوبـت او بخـار د سـړېدو فعـل. درېـيم صـوري علـت، چې د اوبـو ماهيـت او صـورت ښـيي. بـل دا چې اوبـه پـر ځمکـه را غـورځي د اوبـو ځانګړنـه شـوه. تـه نـور څـه نـه وايـي همدلتـه ودرېـدې خـو ارسـطو وايـي، باران يو بل علت هـم لـري، بـاران ځکـه اوري چې نباتـات او حيوانـات اوبـو تـه اړتيـا لري. دوی د اوبـو پـر مـټ وده کـوي. ارسـطو دغـه علـت غـايي علـت بالـه. هغـه پـه دې توګـه د اوبـو څـاڅکو تـه حيـاتي دنـده ورکـوي او د څـاڅکو موخـه هـم همدا بولي.

مـوږ تـل ځينـې موضـوعات لـه سره تېـروو، سـوفي پـوهېږې؛ وايـو بـوټي شـنه کېږي، ځکـه رطوبـت ورتـه رسـېږي. تـوپير لېـدلای شـې سـوفي؟ ارسـطو بـاور درلـود چې پـه طبيعـت کـې د هـر څـه تـر شـا يـوه موخـه پرتـه ده. باران اوري، چې مـالتې او مڼـې وده وکـړي، بـاران اوري. چې طبيعـت تـه ژونـد ور وبښـي او ژوندي موجودات له هغو ګټه واخلي.

د نننـي علـم دليـل بيـا دا شـی نـه دی. مـوږ وايـو، اوبـه او خـواړه د ساکښـو د ژوند تر ټولـو مهمـه اړتيـا ده. کـه د اړتيـا وړ شيان زمـوږ پـه واک کـې نـه وي نو د ژونـد امکـان هـم نشـته دی. پـه دې توګـه نـو د اوبـو موخـه دا نـه شـو بللای چې دوی راشي او زمـوږ ژونـد وژغـوري. يـا د مـالتې موخـه دا نـه ده چې ځـان زمـوږ د خـوراک لپـاره سـمبال کـړي، بلکـې مڼـه يـا مالتـه بيچـاره زموږ موخه ده، بايد د ژوند د بقا لپاره هغه وخورو.

کله کله سرې شکمن شي، چې د علیت په بحث کې ارسطو تېروتنه کوي. خو ښه به وي، چې په دې اړه د قضاوت لپاره بېره و نه کړو. ډېرې په دې باور دي، خدای(ج) نړۍ همداسې پیدا کړه، څکه په همدې ډول نړۍ کې یې مخلوقات ښه ژوند کولای شي. په دې توګه طبعاً دا دعوه کولای شو، په سیندونو کې څکه اوبه روانې دي چې انسان، حیوان او نبات د خپل ژوند ددوام لپاره اړتیا ورته لري. دلته نو د خدای(ج) اراده ښيي. که نه د بارانو اوبه، یا په سیندونو کې روانې اوبه زموږ د ودې، پرمختګ او ښه ژوند پروا نه لري، دوی روانې دي دا موږ یو چې کولای شو هغه د خپلې ګټې لپار وکاروو.

## منطق

د جوهر او صورت ترمنځ د ارسطو له وضع کړي توپیر په استفادې کولای شو، د خپل چاپېریال ډېر شیان تشخیص کړو. ددوی د بېلوالي او پېژندنې لپاره موجودات په بېلو ډلو او کټګوریو ویشو. اس وینو، بیا بل اس وینو، بیا بل، بل همداسې دوام کوي، ټول اسونه پوره یو بل ته ورته نه دي، خو دوی څینې ګډ شیان لري. دا ګډ څېزونه د اس صورت نومېږي. هغه څه چې یو اس له نورو بېلوي، یا د یوه اس فردي ځانګړنه ده، د ارسطو په باور دا د اس په جوهر پورې اړه لري.

په همدې توګه مخ ته څو او څیزونه ډلبندي کوو. غواګانې په غوجله کې دروو. خوګان پخپله ځانګړي ځای کې دروو. مرغان بیا په قفسونو او پنجرو کې ساتو. سوفي آموندسن هم د خپلې کوټې د تنظیمولو او سمولو پر مهال همدا کارونه کوي. کتابونه د کتابونو په انوارۍ کې ایږدي، د اړتیا وړ کتابچې د ښوونځي په بکسه کې ایږدي، مجلې او ورځپاڼې په خپل ځای کې ایږدي. بیا خپل کالي منظم ټولوي او په ځانګړې انوارۍ کې یې ځروي. پتلونونه په یوه ځای کې، جورابې د انوارۍ به بل پوړ کې، همداسې د انوارۍ په هر پوړ کې په هغه پوړ پورې اړوند شیان ایږدي. پام دې وي چې موږ په خپل ذهن کې هم همدا کارونه کوو. د پلاستیکي،

دبریونو او ربړي شیانو تر منځ توپیر ښکاره کولای شو. په همدي توګه ساکښ او بې سا شیان له یو بل بېلوو؛ د انسان، حیوان او نبات توپیر له یو بل سره کولای شو.

زما په موخه پوهیږې سوفي؟ ارسطو غوښتل چې د طبیعت په کور کې به خیر خیر وګرځي او هر څه وپلټي. ده هڅه وکړه څو وښیي چې په طبیعت کې هر څه تر یوې خانګړې مقولې لاندې راځي او په همدې ډلې پورې اړه لري. د بېلګې په توګه، هرمس ژوندی موجود دی، که لږ څېره واضح کړم، نو ویلای شم چې یو حیوان دی، په فقاریه حیواناتو کې راځي، که نور یې هم واضح کړم، د تي لرونکو له ډلې دی. نور یې چې توضیح کړم، د سپیو په ډله پورې اړه لري، نور یې هم چې توضیح کړم، یو نر سپی دی.

اوس ډې کوټې ته ولاړه شه، هسې اتکلي یو څه له ځمکې پورته کړه. هر څه چې پورته کړې پوهیږې چې تر ځان په سترې ډلې پورې اړه لري. که کومه ورځ له داسې څه سره مخامخ شې چې هغه ډلبندي نه شي کړای نو ښایي حیرانه شې. فرض کړه یو څه چې هیڅ نه پوهیږې څه شی دی، پیدا کوې. که ته پوه نه شې، چې دا حیوان دی، نبات دی که کوم بل څه نو فکر نه کوم چې هغه ته دې د لاس ور وړلو جرأت وکړې.

د حیوان، نبات او جامدو شیانو په اړه خبرو ما ته یوه لوبه را په یاد کړه. په میلمستیاوو او مجلسونو کې به یې یو کس له کوټې بهر استاوه، بیا به یې ورته ویل، هغه څه ووایه چې مونږ انتخاب کړی دی او یا زمونږ په زړه کې دی. فرض کړه په کوټه کې د ناستو خلکو موخه د ګاونډي د کور پیشو ده. اوس نو بیچاره یو کس راځي کوټې ته او په اتکل کولو او له خانه په خبرو پیل کوي. نور یوازې د هو او نه په کلیمو ځواب ورکوي. راغلی کس که ارسطو ته ورته وي نو د حل ډېرې لارې ورسره شته دي، که نه نو بیچاره په همدې لوبه کې غرق دی. دا لوبه به یې په دې بڼه مخ ته وړله:

هغه شی چې تاسې یې ښیې، د لمس وړ دی؟ (هو!) جامد شی دي؟ (نه!) ژوندی شی دی (هو!) نبات دی؟ (نه!) حیوان دی؟ (هو!) الوځي؟ (نه!)

تي لرونکي دي؟ (هو!) اهلي حيوان دي؟ (هو!) پيشو ده؟ (هو!) خواب به پيدا شو، ټولو به وخندل....

ارسطو يو ډېر ځيرک تنظيموونکی و. ده غوښتل زموږ ټول مفاهيم روښانه او توضيح کړي. ده د منطق د علم بنسټ کېښود. هغه په پايلو او دلايلو د حاکمو قوانينو يوه ټوټه ورانديز کړه. زه يوه بېلګه راوړم. که ووايو چې ټول ژوندي موجودات مړه کېږي (لومړی مقدمه)، بيا ومنو چې هرمس ژوندی موجود دی (دويمه مقدمه) اوس نو په اسانۍ ويلی شو، چې هرمس مړ کېدونکی موجود دی.

پورته بېلګه ښيي، چې د ارسطو منطق پر يووالي او اړينو شرايطو ولاړ دی. چې په پورته جملو کې يې مړ کېدونکی او ژوندی موجود ښه بېلګه ده. دا پايله سل سلو کې سمه ده، خو دا هم بايد ووايو چې يادو جملو موږ ته کوم نوی شی نه دي را زده کړي. موږ مخکې هم پوهېدو چې هرمس مړ کېدونکی موجود دی؛ ځکه هرمس سپی دی او ټول سپي ژوندي موجودات دي، ټول ژوندي موجودات د غرونو او ډبرو پر خلاف مري. سوفي په دې خبرو خو هرو مرو ته هم پوهېدې، خو د شيونو د اړيکو لړۍ تل همداسې ښکاره نه وي. کله کله ددې اړتيا ليدل کېږي چې خپل مفاهيم لا را وسپړو او لا يې روښانه کړو.

د بېلګې په توګه: دا شونې ده چې د موږک بچوني دي، د وري يا خوګ د بچې په څېر د مور له تي شيدې وروي؟ په دې کې شک نشته چې موږک هګۍ نه اچوي. تا تر اوسه د موږک هګۍ ليدلې ده؟ نه دې ده ليدلې، نو ځکه وايو چې ددوی هم لکه د مېږي يا خوګ په څېر بچې زېږي؛ نو هغه حيوانات چې خپل بچي په خېټه کې روزي هغه ته تي لرونکي ژوي وايو. په دې مانا چې دوی د مور له تيو تغذيه کېږي. نو مسله حل شوه، دغه خواب زموږ په ذهن کې شته و، خو بايد په اړه مو يې فکر کړی وای. ښايي يوه شېبه مو هم دا نه وه په ياد چې موږک دې هم شيدې روي. ښايي هېڅ وخت مو نه وي ليدلي چې يو موږک د خپلې مور شيدې روي، خو دوی دا کار کوي، موږ يې ځکه نه وينو چې موږک بچونو ته د شيدو ورکولو پر مهال له انسانانو ځان پټوي.

**د طبیعت جدول**

ارسطو د طبیعت په کور کې شه وگرځېد. لومړی یې د طبعي ژوند ټول څیزونه په دوو برخو وویشل. یوې ډلې ته یې بې سا موجودات وویل، لکه ډبره، د اوبو څاڅکي یا یوه لپه خاورې. دغه شیان د بدلون شونتیا او وړتیا نه لري. د ارسطو په خبره دغه شیان یوازې د بهرنیو عواملو پر مټ بدلېدلای شي. دویمه ډله ژوندي یا ساکښ موجودات دي چې د بدلون وړتیا او شونتیا لري.

ارسطو ژوندي موجودات هم په دوو ډلو وویشل. یوې ته یې بوټي وویل او بلې ډلې یې مخلوقات وبلل. هغه بیا مخلوقات په دوو فرعي څانگو وویشل، یوې ته یې انسانان وویل او بله ډله یې حیوانات و نومول.

په دې خو باوري یې چې د ارسطو ډلبندي ښکاره او روښانه دي. ساکښو او بې سا موجوداتو تر منځ ځمکه او آسمان توپیر دی. لکه د ډبرې او سره گل تر منځ ستر توپیر دی. همداسې د بوټو او حیواناتو تر منځ لوړ توپیر دی. لکه سور گل او آس ځومره توپیر لري. دا خبره هم کولای شم چې د انسان او اس تر منځ هم ډېر توپیر دی. خو که په دقیقه توگه ووایې دا توپیرونه څه شی دي؟ ویلای شې؟

له بدمرغه وخت نه لرم چې ستا ځواب ته په تمه پاتې شم. ته به بیا پورته کېږې هغه به لیکې، بیا به یې د خوږې له یوې ټوټې سره په زېړ پاکټ کې اچوې، هرمس ته به یې ورکوې چې را یې وړې، دا کیسه نو بیا ډېره اوږده شوه. نو پخپله به یې ځواب ووایم. کله چې ارسطو موجودات ډلبندۍ کول، نو ددوی څانگړنو ته یې وکتل، هغه څه دي چې یو موجود یې کولای شي او خاص په همدغه موجود پورې اړه لري. یا په بله وینا، موجودات د هغه څه له مخې ډلبندي شوي وو، چې دوی تر سره کولای شوی یا یې دنده وه.

هر ژوندی موجود هغه، که انسان، حیوان یا نبات وي، کولای شي ځان تغذیه کړي، وده وکړي او د مثل د تولید وړتیا ولري. ژوندي مخلوقات

لکه انسان او حیوان، نه یوازې دا چې خپله شاوخوا نړۍ ویني، کولای شي په هغه کې حرکت وکړي او فعالیت تر سره کړي. انسان پر دې سربېره د فکر کولو وړتیا لري. دوی د فکر له لارې خپلې لیدنې او له طبیعته اخیستنې، په بېلو مقولاتو او ډلبندیو کې بیانولی شي.
نو اوس ویلی شو، چې په طبیعي نړۍ کې په حقیقت کې قطعي مرزونه نشته دي. په دې مانا، دا مونږ یو چې له ډېرو ساده لارو د بوټو پیچلو ډیو ته پام واړوو، همداسې، له ساده ژوو، تر پیچلو حیواناتو پورې ورسېږو. انسان، چې د ارسطو په باور د طبیعت ټول ژوند تجربه کوي، ددې جدول په سر کې ولاړ دی. انسان د بوټو په څېر ځان تغذیه کوي او وده کوي، د حیواناتو په څېر احساس لري او حرکت کولای شي. په ورته وخت کې د انسانیت ځانګړې مشخصه هم لري. یانې کولای شي د عقل پر مټ فکر وکړي او مفکورې وزېږوي.
پر دې بنسټ نو سوفي! انسان د خدایي عقل یو څرک دی. هو، ما د خدای کلمه یاده کړه! ارسطو به کله ناکله، دا خبره کوله، چې باید یو خدای وي، چې د نړۍ حرکت طبعي شي. نو ده به ویل، چې خدای د طبیعت د جدول په تر ټولو هسک ځای کې موقعیت لري.
ارسطو دا تصور هم له ځان سره درلود، چې د ستورو او سیارو حرکتونه په ځمکه کې د ټولو حرکتونو لاربښوونکي دي. ده به ویل داسې شی هم باید وي چې آسماني موجودات په حرکت راولي. ارسطو دغه قوت لومړی محرک باله، د هغه په باور دغه قوت خدای دی، چې په خپله حرکت نه لري، خو د ټولو فلکي موجوداتو د حرکاتو صوري علت دی. نو په دې توګه هغه په طبیعت کې د هر حرکت لامل دی.
**اخلاق**
سوفي بېرته انسان ته راګرځو. د ارسطو په باور روح د انسان په صورت کې دی او روح، د حیوان یوه برخه، د نبات یوه برخه او د عقل یوه برخه له ځان سره لري. په دې اړه ارسطو پوښتنه کوي، چې څه ډول ښه ژوند

وکړو؟ بنه ژوند کول کوم شي ته اړتیا لري؟ بېرته په خپله خواب ورکوي:
انسان یوازې هغه وخت کولای شي نېکمرغه وي چې خپله تولنه وړتیا او پوهه په کار واچوي.
د ارسطو په باور نېکمرغي درې ډوله ده. اوله نېکمرغي دا ده چې ژوند دې له خوشالي او خوښي ډک وي. دویمه دا چې د یوه مسوول او خپلواک ښاري په توگه ژوند وکړي. درېیم ډول نېکمرغي دا ده، چې له فلسفې او فکر ډک ژوند ولري.
ارسطو بیا پر دې سربېره زیاتوي چې که انسان خوښي غواړي نو یادې درې واړه نېکمرغي باید په یوه وخت کې په یوه انسان کې موجودې وي.
ارسطو د یادو درېواړو نېکمرغیو تر منځ د تعادل نشتوالی نه مني. که نن هم ژوندی وای ویل به یې، چې سالم عقل په سالم بدن کې دی. یو څوک چې تولنه ورځ یوازې د خپل بدن پر وده بوخت وي، له هغه څوا سره دومره توپیر نه لري چې یوازې د خپل عقل په وده بوخت دی، په دې دواړو برخو کې د تعادل نه ساتل په ژوند کې په کږه بوول دي.
دغه اصل د انسان په اړیکو کې هم ثابت پاتې کېدلای شي. ارسطو دلته هم د منځلاریتوب سپارښتنه کوي. باید نه ډېر دارن و، نه ډېر سرتېری. باید زړور وو، که زړورتیا و نه لرو، د کمزورۍ په مانا ده، خو که زړورتیا تر حد واوړي دا نو بیا د سرتېرۍ په مانا ده. باید نه ډېر سخت و او نه ډېر خلاص لاسي. باید سخاوت ولرو او په دې برخه کې هم مٌنځلاري وو. لږ سخاوت سختي ده او ډېر سخاوت بیا اصراف دی. همداسې په خوراک کې هم اعتدال یا منځلاریتوب ولرو. لږ خوړل او ډېر خوړل دواړه خطرناک دي. د افلاطون او ارسطو اخلاقي درسونه تر ډېره د یونان پر دودیز طب ولاړ دي. یوازې د منځلاریتوب او اعتدال پر مټ کولای شو، خوشاله او همغږې ژوند ولرو.

سياست

له ټولنې د ارسطو په اخيستنو کې هم همدا افراط او تفريط ليدلای شو. هغه وايي انسان طبعتاً سياسي موجود دی، يې له شاوخوا ټولنې، مورې حقيقي انسانان نه يو. کورنۍ او کلي زموږ لومړنۍ اړتياوې لکه، خوړل، څښل، ګرمي، ساړه، واده، کالي، روزنه، وده او نورې پوره کوي، خو د ملګرۍ او دوستۍ شر ټولو ښه بڼه پوازې په دولت کې ليدلای شو. نو دا پوښتنه رامنځته کېږي، چې دولت بايد څه ډول جوړ کړو؟ د افلاطون د فيلسوفانو دولت دې په ياد دی؟ ارسطو د ښې حکومتولۍ درې بڼې وړاندې کړې دي.

يو شاهي نظام دی. په دې نظام کې د حکومت يا دولت يو رييس وي. دده په باور دا د ښه حکومت يوه بڼه ده، خو په دې شرط چې استبداد پيل نه کړي. همدارنګه پادشا يوازې خپله ګټه پام کې و نه نيسي-ا بلکې د ټولې ټولنې او وطن غم ورسره وي. دده په باور د ښه حکومت بله بڼه د اشرافو حکومت دی. په دې حکومت کې يوه، څه نا څه ستره ډله حکومت کنترولوي. دا ډول حکومت بايد احتياط وکړي او دې ته يې پام وي چې اوليګارشي [1] يا د څو کسانو د فرمان صادرولو جوګه نه شي. په دې مانا چې په حکومت کې څو کسان مشران دي، خو له دې ډلې بايد يو کس د فرمان ورکولو حق ولري او هر سړی ځان، ځان ته فرمان ور نه کړي. د ښې حکومتولۍ درېيمه بڼه د ارسطو په باور ټولنه [2] نومېږي، چې دا يا همغه ولسواکي يا ديموکراسي ده. دده په باور دا حکومت هم خپلې نيمګړتياوې لري. ديموکراسي کولای شي ډېر ژر د ناکاره خلکو لاس ته ولوېږي. که ديکتاتور هيتلر د آلمان د حکومت مشر-نه وای شوی، نو نورو نازيانو به هلته د ناکاره او کوڅه ډبو خلکو حکومت جوړ کړی وای.

---

[1] Oligarchi

[2] Polity

**د ښځو په اړه د ارسطو څېړنې څرګندونې**

اوس به د ښځو په اړه د ارسطو څینو خبرو ته یوه څغلنده کتنه وکړو. دده باورونه په دې برخه کې دومره په زړه پورې نه دي او تر افلاطون پورې نه شي رسېدلای. ارسطو پر دې نظر یو څه ډېر باوري و، چې ښځې له څینو اړخونو نامکملې دي. دده په وینا ښځه نامکمل نارینه دی. د ارسطو په باور ښځه د مثل په تولید کې د منفعل رول لري، په داسې حال کې چې د هغه په نظریه کې نارینه فعال او د مثل تولېدوونکی دی. له همدې کبله ارسطو دا ادعا هم وکړه، چې اولاد یوازې د پلار خویونه او ارثي ځانګړنې لري. د ارسطو په باور د اولاد ځانګړنې د نارینه په نطفه کې دي. ښځه یوازې خاوره ده، تخم زرغونوي، وده ورکوي، خو نارینه دا تخم کري او اصلي کروندګر نارینه دی. یا په بله بڼه هم ویلای شو: ارسطو وایي، نارینه د ماشوم صورت رامنځته کوي او ښځه یې جوهر.

دا د حیرانتیا او خفګان خبره ده، چې دومره پوه انسان د نارینه او ښځې تر منځ د اړیکو په اړه دومره ستره تېروتنه وکړي. خو دا خبرې دوه څېزه ښیي. یو دا چې ارسطو د ښځو او ماشومانو د ژوند او ددوی د اړیکې په اړه پوره علمي تجربه نه لرله. بله دا چې که نارینه د علم او حکمت په برخه کې یوازې پرېښودل شي څومره سترې تېروتنې کولای شي. له دوی سره باید ښځې وې څو علم او حکمت په سمه توګه وسپړل شي.

د ارسطو دغه ناسم لیدلوري تر حد وتلی زیان بشري ژوند ته واړاوه. څکه دا ده نظریه وه، چې په تیاره پېړیو یا (وسطا پېړیو) کې یې راج چلاوه نه د افلاطون. د ښځې کوم انځور چې د ارسطو د اثارو له لارې کلیساګانو ته په میراث پاتې شو، په هیڅ مقدس کتاب کې نه و. همدارنګه په هیڅ مذهبي کتاب کې یې بنسټ نه درلود.

باوري یو چې عیسی (ع) له ښځو سره دښمني نه لرله!

تر دې ډېر تا ته څه نه وایم سوفي، خو څینې خبرې درته کوم.

سوفي د ارسطو برخه يو دوه ځل ولوسته. بيا يې بېرته په قهوه يي پاکټ کې کېښوده. همداسي کېناسته او سترګې يې په شاوخوا کې ځنبې کړې. پام يې شو چې څومره شيان يې په کوټه کې شنلي دي. کتابونه او پاڼې پر غولي پرتې وې. جورابې، کالي، پتلونونه او نور شيان نيم په انوارۍ کې وو، نيم بهر څوړند وو. د مطالعې د ميز شا ته يوه پنډه خيرن کالي هم پراته وو.

سوفي وغوښتل خپل کالي سم کړي. ټول شيان يې له انوارۍ را وايستل، ټول يې پر غولي کېښودل. هر څه بايد له سره ځاى پر ځاى کړي. ټول شيان يې يو يو ټول کړل او منظم يې په انوارۍ کې کېښودل. انوارۍ اوه پوړه لرل. په يوه کې يې نرۍ جامې کېښودې، په بله کې يې جورابې او پتلونونه، بل هم د سپورتي او خوب د کاليو ځاى و. هر پوړ يې په نوبت ډک کړ. د هر څه ځاى ښه ورته معلوم و. ککړ کالي يې ټول په يوه کڅوړه کې ځاى پر ځاى کړل بيا يې په لاندې پوړ کې کېښودل. په دې مېنځ کې يې د يوې پښې يوه سپينه جورابه پيدا کړه. فکر يې ګډوډ شو، ستونزه دا ده چې د جورابې بله جوړه يې پيدا نه کړه. بله خبره دا چې دا جورابه د سوفي نه وه.

په خير خير يې وکتله، د هغه ښتن يې اټکل نه شو کړاى. هڅه يې کوله چې ښتن يې وپېژني. دا جورابه يې هم د انوارۍ سر ته واچوله، هلته يې د ويډيو، د غاړې دسمال او لېګو سره يو ځاى کېښوده. شکمنه شوه چې دا جورابه هم په همدې ډله پورې اړه لري.

بيا يې پر غولي ټول شوي، کتابونه، مجلې او انځورونه راټول کړل، ټولې همداسې منظم کېښودل لکه استاد يې چې د ارسطو په برخه کې په اړه څرګندونې کړې وې. تر هغه وروسته يې خپل تخت منظم کړ، بيا د ليکلو ميز ته ولاړه او په ليکلو يې پيل وکړ.

بيا يې د ارسطو په اړه ټولې پاڼې منظمې کړې، هغه يې سورى کړې او په يوه دوسيه کې يې کېښودې. دا دوسيه يې هم د انوارۍ په لوړ پوړ کې

کېښوده. نن ماسپښين يې بايد د نورو ليکنو ډېلې هم له پټنځايه را ايستلې وای.
ژمنه يې وکړه چې له دې وروسته به خپل ټول شيان همداسې منظم ساتي. موخه يې پوازې د کوټې شيان نه وو، د ارسطو له لوستلو وروسته په دې پوه شوه چې د فکر او نظريې تنظيم هم خورا مهم دی. د انواری اووم پوړ يې همدې کارونو ته ځانګړی کړی و.
دوه ساعته وشول چې د مور غږ يې نه راته. سوفي ښکته ولاړه، غوښتل يې لومړی حيواناتو ته خواړه ورکړي. وروسته يې مور له خوبه ويښه کړي. په پخلنځي کې د کبانو پر واړه لوښي ور کږه شوه، يو کب تور و. بل نارنجي و او درېيم هم سپين او سور و. له همدې امله يې دوی ته، تور، زرين او سور خولی ويل.
همداسې يې د کبانو خواړه ددوی په ځانګړي ښيښه يي لوښي کې تويول. له ځان سره يې وويل:

تاسې هم د طبيعت ژوندي موجودات يې، کولی شئ خواړه وخورئ، وده وکړئ او اولاد ولرئ. تاسې کولای شئ حرکت وکړئ او نړۍ ووينئ. که لږ نور هم دا خبره کره وکړم، تاسې کبان يې. تاسې د برانشيو له لارې تنفس کوئ. همداسې کولای شئ د ژوند په اوبو کې غوټې ووهئ.

سوفي د کبانو د لوښي سر بند کړ. له دې چې د طبيعت په جدول کې د کبانو د ځای پر ځای کولو هنر يې زده کړی و، خوشاله وه. په ځانګړې توګه د ژوند د اوبو اصطلاح يې ډېره خوښه شوې وه. ښه اوس نو د مرغانو د مړولو وار دی.
ګرانو بچونو! تاسې د کنرۍ له وړو او نازکو هګيو راوتلي يې. وروسته د کنرۍ خواړه او واړه بچوني شوئ. نو دا چې دغو هګيو په ځان کې د کنرۍ صورت درلود، نو له نېکه مرغه د طوطي په څېر کې نړۍ ته را نه غلئ.

سوفي بیا د کېښپ حمام ته ورغله. لټ او ستر کیشپ هلته په خیرنو اوبو کې خوړین پروت و. هر څل به یې مور ویل، چې یوه ورځ به دغه تمبل او مردار خور کیشپ وژني؛ خو له نېکمرغه تر اوسه ژوندی و او دا خبرې یوازې د ګواښونو تر بریده وې. د کاهو یوه پاڼه یې واخیسته په ډبلي کې یې ورته کېښوده.

- کیشپ جانه! ته د چټکو حیواناتو له ډلې نه یې. وېښه نو لټ یې. خو کولای شې ددې سترې نړۍ یوه برخه احساس کړې. خپه کېږه مه په نړۍ کې یوازې ته نه یې چې سست یې او چټک نه یې، ډېر داسې موجودات به نور هم وي.

پیشو به یې له کوره بهر د موږکانو ښکار کاوه. ښه دا نو د پیشو طبیعت دی. سوفي له سالونه ووته او د مور کوټې ته ور روانه شوه. له نرګس ګلانو ډکه ګلداني پر نېږدې میز اېښې وه. د هغه څنګ ته چې تېرېده، زېړو ګلانو سرونه لکه درناوی چې کوي کښته اچولي وو. ور نېږدې شوه لاس یې ورباندې تېر کړ.

- تاسې هم د طبیعت یوه برخه یی. په حقیقت کې تر هغه ګلداني ډېر ارزښت لرئ چې پکې اېښي یی. خو له بدمرغه تاسې دا حقیقت نشی درک کولای.

سوفي ورو ورو د مور کوټې ته ور نېږدې شوه. مور یې په ژور خوب ویده وه. سوفي یې د مور پر تندي لاس کېښود.

و یې ویل:

- ته تر ټولو موجوداتو نېکمرغه یې، ځکه نه یوازې لکه صحرایي ګلان ژوندی یې، نه یوازې لکه پیشو او کیشپ ساکښه یې، بلکې انسان یې. له همدې امله ویلی شم چې د فکر کولو وړتیا لرې.

- ولې چټیات وایي سوفي؟

مور یې د تېر په پرتله نن زر له خوبه وېښه شوې وه.

- ما ویل چې ته هم لکه کیشپ لته یې. ددې تر ځنګ غواړم دا راپور هم درکړم، چې ما خپله کوټه په فلسفي دقت او ځیرکتیا منظمه کړې ده.

مور یې سر پورته کړ.

- زه اوس درځم په خپلو سترګو یې ګورم، ته ورشه، زما تر درتګ پورې قهوه تیاره کړه.

سوفي د مور امر پر ځای کړ او څو دقیقې وروسته دوی دواړو له قهوې غړپونه کول. سوفي ناڅاپه له خپلې مور پوښتنه وکړه:

- مورې تر اوسه دې فکر کړی چې موږ ولې ژوندي یو؟
- آه! بیا دې دا لیونتوب پیل کړ؟
- هو، زه اوس پوهېږم چې ولې. موږ څکه په دې نړۍ کې ژوند کوو، چې ابخوا دېخوا ولاړ شو، ښه ژوند وکړو او پر موجوداتو نومونه کېږدو.
- عجیبه ده ولا، ما یې تر اوسه په اړه فکر نه و کړی
- که دې فکر نه دی کړی نو ستره ستونزه لرې. څکه بنیادم متفکر حیوان دی. څوک چې فکر و نه کړي په حقیقت کې بنیادم نه دی.
- سوفي!!!
- فکر وکړه، که یوازې نباتات او حیوانات پر ځمکه وای، بیا به نو څوک نه وو، چې د سېي، پیشو، سوسن ګل، انګور او توت تر منځ توپیر وکړي. نباتات او حیوانات ټول ژوندي موجودات دي. خو موږ پر ځمکه یوازیني مخلوقات یو، چې کولای شو طبیعت په بېلو ډلو ووېشو او هغه ډلبندي کړو.

مور یې وویل:

- که رښتیا ووایم، ما تر اوسه په نړۍ کې تا غوندې عجیبه نجلۍ نه ده لیدلې. ته نادره او عجیبه یې.

- هیله ده چې همداسې وي موري! مور ټول لر او ډېر عجیب یو. زه هم انسان یم نو یو څه عجیبه یم. ته هم تر یوه لوره ډېر اولاد نه لرې نو ځکه زه تر ټولو عجیبه یم.
- نه؛ موخه مې دا ده چې ته په خپلو دې نوو خبرو زما حوصله نوره تنګوې

د همدې ورځې پر ماسپښین سوفي خپل پټنځي ته ولاړه او پرته له دې چې د مور یې ورته پام شي، د لیکونو ټولګه یې، خپلې کوټې ته یوړه. ټولې پاڼې یې له سره تر پایه په ترتیب کېښودې. ټولې یې سورې کړې او د ارسطو تر برخې یې وړاندې په دوسیه کې ځای پر ځای کړې. له ښي لوري یې پر ټولو پاڼو نمبر ولیکه. تر څو پنځوسو پورې د پاڼو شمېره ورسېده. سوفي په دې توګه د ځان لپاره د فلسفې کتاب جوړاوه. کتاب دې نه و لیکلی، خو ددې لپاره لیکل شوی و.

نور وخت نه و. د ښوونځي د دوشنبې ورځې کارونه یې باید خلاص کړي وای. ښايي د دیني تعلیماتو ازموینه ولري. ښوونکي به یې تل ویل، چې په ازموینه کې ددوی نظر او قضاوت ډېر مهم دی. سوفي فکر وکړ چې دلته د خپلو ځینو نظرونو لپاره بنسټونه پیدا کولی شي.

# یوناني ګري[1]

## .... د اور شغله...

د فلسفې ښوونکي بې له دې وروسته لیکونه مستقیم پتنځې ته لېږل. سره له دې هم سوفي نن دوشنبه د عادت له مخې، پستي بکس ته سر ور پورته کړ. تش و. حیرانه شوه. ښوونځي ته ولاړه. ناخاپه یې په پیاده رو کې سترګې پر یوه عکس ولګېدې. انځور د یوه سپین جیپ و. پر سر یې شین بیرغ ولاړ و. دوه حرفونه *UN* وربانـدې لیکل شوي وو. دا د ملګرو ملتونو بیرغ نه دی؟

سوفي عکس واړاوه را واړاوه. و یې لیدل چې عادي انځور دی. پر شا یې لیکلي وو. هیلده مولرکناګ ته د سوفي آموندسن په لاس... د ناروې ټیکټ وربانـدې سرېښ و. د ملګرو ملتونو ټاپه وربانـدې لګېدلې وه. نېټه یې هم د ۱۹۹۰ کال د جون ۱۵ د جمعې ورځ وه.

د جون پنځلسمه د سوفي کلیزه وه.

پر کارت لیکل شوي وو:

ګرانې هیلدې! ګومان کوم، چې د پنځلس کلنی د خوښی جشن دې تر اوسه نه دی خلاص شوی. یا دا چې اوس مې ناوخته کړې ده؟ خو خیر ډالۍ دې لا هم شته ده. هغه یو تلپاتې شی دی. یو ځل بیا دې هم د کلیزې په ویاړ تا ته د نېکمرغۍ دعا کوم. اوس به پوه وې، چې ولې د سوفي په لاس لیکونه درته لېږم. زه باوري یم چې هغه یې تا ته رسوي.

نوټ: مور جانې ویل، چې د پیسو بکسه دې ورکه شوې. ژمنه کوم چې ۱۵۰ کرونه دې زه درکړم. ښایي په ښوونځي کې هم د اوړي تر رخصتیو مخکې بل کارت درکړي.

---

[1] Hellnism

پلار درنه جار شه!

سوفي بې حرکته لکه میخ پر خپل ځای ودرېده. د مخکیني کارت د تاپې او ټیکټ نښه څو وه؟ ور په یاد شوه، چې په ساحلي کور کې یې په پیدا کړي کارت هم همدا نښه لوستې وه. هو د جنوري میاشت وه. سره له دې چې تر اوسه جون ته یوه میاشت پاتې وه، خو ښايي سم یې نه و کتلای. په منډه منډه کور ته را وګرځېدله. نن ښايي ښوونځي ته ناوخته ورسېږي.

کور ته ننوته او مخامخ یې کوټې ته منډه کړه. د هیلډې لومړنی کارت یې پیدا کړ، د غاړې تر سره وربښمني دسمال لاندې و. هو! پستي مهر یې د جون پنځلسم و. همدا د سوفي د زېږېدنې ورځ هم ده. دا نو د اوړي تر رخصتیو یوه ورځ مخکې ورځ ده.

سوفي د یووانا خوا ته د ستر پلورنځي لور ته په منډه ولاړه. ذهن یې ټول په یوه کار بوخت و.

هیلډه څوک ده؟ د هغه پلار ولې دومره باوري دی، چې سوفي به هغه پیدا کوي؟ دا کار خو بیا ډېر بې مانا و، چې د هیلډې پلار د خپلې لور پر ځای لومړی سوفي ته لیک استوي. دا کله کېدای شي، چې د خپلې لور پته ورسره نه وي. غواړي کومه شوخي وکړي؟ یا ښايي غواړي د بیګانه سړي په لاس د لیکونو د لېږلو له لارې خپله لور حیرانه کړي؟ همدا لامل دی چې کارتونه یې میاشت مخکې لېږلي دي؟ که یې پلار غواړي د خپلې لور لپاره نوی دوست پیدا کړي له همدې امله غواړي د سوفي په لاس خپلې لور ته لیکونه ولېږي؟ په دې مانا هغه ډالۍ چې یو عمر دوام کولای شي زه یم؟

که دا مسخره سړی په رښتیا په لبنان کې دی، نو د سوفي پته یې له کومه کړې ده؟ ددې تر څنګ سوفي او هیلډې دوه شریک اړخونه لرل. که د هیلډې د زوکړې ورځ د جون پنځلسمه وي، په دې مانا ده چې دوی په یوه ورځ زېږېدلې دي. دواړه داسې پلرونه لري چې ددنیا په بل سر کې دي.

په منځ کې احساس کړ. ښايي پر سوفي خان د يوه غير طبعي نړۍ په منځ کې احساس کړ. ښايي پر سرنوشت باور هم ډېر احمقانه کار وي. خو په پرېکړه او قضاوت کې هم بېره نه ده په کار. ښايي ډېر قوي او ښه دليل ددغه کار لپاره شته وي. خو يوه بله خبره، که هيلده په ليله سن کې ژوند کوي، نو آلبرتو کناکس د هغه بکسه څنګه پيدا کړې ده؟ ليله سن له دې ځای سره سلګونه کيلومتره واټن لري. حيرانوونکې خو لا دا چې سوفي ولې دغه کارت په پياده رو کې پيدا کړی دی؟ دا اتکل به سم وي، چې له پوست رسوونکي به بکس ته تر رسېدو مخکې دلته لوېدلی وي؟ نو که داسې وي بيا ولې همدا يو کارت ترې لوېدلی؟ سوفي ستر پلورنځي ته ورسېده، يووانا چټه خانګړی کره، ته بيخي ليونی شوې يې!

- وېښه!

يووانا د ښوونځي د ښوونکو په څېر خان وړاندې ببر کړ، په غوسه يې ورته وويل:

- انشا الله ښه ښېښه دې وغوښته، ښه عذر دې درلود '
- د ملګرو ملتونو سازمان بايد منځګړيتوب وکړي، د دښمن عسکرو په لبنان کې زما مخه نيولې ده
- ته مينه يې..... هيڅ شک نه لرم!

په منده منډه د ښوونځي په لور روانې شوې.

د ديني تعليماتو ازموينه په دريم ساعت کې وه. سوفي هيڅ درس نه و ويلی. د پاڼې په سر کې دا پوښتنه ښکارېده.

فلسفه او ژوند

۱. د هغه شيانو يو لېست جوړ کړئ، چې کولای شو وړاندې يوه شو، بيا د هغه شيانو لېست جوړ کړی چې يوازې کولای شو، باور وړاندې وکړو.

۲. د انسان د ژوند په فلسفه کې د مهمو شيانو يوه برخه ياده کړئ.

۳. وجدان څه مانا لري؟ ستاسې په نظر د ټولو وجدان يو شان دی؟

٤. د ارزښتونو له مخکېوالي مو موخه څه ده؟

سوفي مخکې له دې چې قلم پورته کړي او ليکل پيل کړي، څو شېبې يې پښې اوږدې کړې او فکر يې وکړ. کولای شي د آلبرتو کناکس نظريې دلته يادې کړي؟ پوه شوه، چې بله چاره نه لري، ډېره موده وشوه، چې ددېني کتاب يوه پاڼه يې هم نه وه اړولې. قلم يې چې پر کاغذ کېښود، د کليماتو سيلاب پخپله را روان شو.

و يې ليکل: پوهېږم سپوږمۍ له پنير نه ده جوړه شوې، د سپوږمۍ په تياره اړخ کې ژورې کندې دي. سقراط او عيسی(ع) دواړه په مرګ محکوم شول، هر څوک ژر يا پس مړه کېږي. د آکروپولس معبدونه د پنځمې مخکې زېږدېزې پېړۍ پر مهال له ايرانيانو سره تر جګړو وروسته ودان شول او د دلفي معبد غيب ويونکې په يونان کې تر ټولو مشهوره وه. د هغه څه په اړه چې يوازې باور کولای شو. سوفي وليکل: په نورو سيارو کې د ژوند شونتيا، د خدای موجوديت، يا دا چې عيسی(ع) د درناوي او وياړ وړ کس و، هغه څه و چې سوفي ورته وليکل، دا شيان د باور وړ دي. بيا يې هڅه وکړه ددويم فهرست په اړه لږ څه وضاحت ورکړي. موږ په پوره توګه نه يو باوري چې نړۍ له کومه شوې ده. د کايناتو نړۍ د مداري له خولې راوتلې سويې ته ورته بللی شو. فيلسوفان هڅه کوي، د سويې پر نريو وېښتو پورته ولاړ شي او د مداري سترګو ته نېغ وګوري. دا چې دوی به په دې کار کې بريالي شي که نه څوک يې په اړه معلومات نه لري. خو که يو فيلسوف د بل فيلسوف پر اوږو ودرېږي نو باوري يم چې يوه ورځ به د هغه سترګو ته نېغ وګوري. دوی به په دې توګه د سويې د وېښتو څوکو ته ورسېږي او په خپله موخه کې به بريالي شي.

نوټ: په سپېڅلي کتاب کې يو څه شته دي، چې له همدې بېلګې سره نږدې دي. هغه د بابل برج دی. دا برج له خاورو سره خاورې شو، ځکه

مداري نه غوښتل چې واړه موجوداتو دداسې سويې پر ويښتو پورته وخيژي چې نوی، نوی يې صورت او حرکت ورکړی و.
د بلې پوښتنې وار راغی. د انسان د ژوند په فلسفه کې اغېزناک عوامل په ګوته کړئ. چاپېريال او روزنه دلته مهمه ده. د افلاطون د وخت انسانانو له نننيو خلکو سره ډېر توپير درلود. هغه وخت ژوند بل ډول و. دوی په بېل چاپېريال کې ژوند کاوه. تر لاسه شوې تجربه بل لامل دی چې د انسان د ژوند پر فلسفه اغېز لري. عادي شعور له چاپېرياله نه تر لاسه کېږي. ټول دا شعور لري. چاپېريال او ټولنيز حالت، کولای شو د سقراط د غار په نامه له فرضيې سره پرتله کړو. انسانان کولای شي، چې د خپل هوښ او عقل په کارولو، ځان له تيارو رڼا ته را وباسي. خو له تيارو تېښته کول هم شهامت او قوت غواړي، د هر سړي د وس خبره نه ده. سقراط د هغو انسانانو يوه غوره بېلګه ده، چې د خپل هوښ په ملتيا په دې بريالی شو، ځان د خپل وخت د تصوراتو له بنده خلاص کړي. خو نن په نړۍ کې د بېلو ځمکو انسانان له بېلو فرهنګونو سره سره يو ځای ژوند کوي. مسلمان، بودايي او مسيحي آن په يوه ودانۍ کې سره اوسي. په داسې حالت کې نو په کار ده، چې د نور ګروهو او باورونو ته درناوی ولرو، نه دا چې ووايو ولې نور لکه موږ داسې نه دي. سوفي له ځان سره وويل، ولا ځوابونه خو مې بد نه دي! و يې کتل چې د پاڼې يوه برخه يې له هغو خبرو ډکه کړې چې د فلسفې له استاده يې زده کړې وې. دې وويل، چې اوس خپل فکر هم لېږ په کار اچولای شي. نو هڅه يې وکړه چې مطلبونه نور هم واضح کړي او هغه شيان وليکي، چې له يوې او بلې خوا يې اورېدلي وو.
درېيمې پوښتنې ته را ورسېده. وجدان څه مانا لري؟ ستاسې په نظر د ټولو وجدان يو شان دی؟ په دې خبره يې په ټولګي کې ډېرې خبرې کړې وې. سوفي وليکل: وجدان د حق او باطل په اړه د انسان د غبرګون وړتيا ده. زما په نظر ټول دا وړتيا لري، خو د وجدان قوت بيا په بېلو کسانو کې توپير لري. زه ويلای شم، چې سوفسطايانو په دې اړه رښتيا ويل. دوی به

ویل، چې سم او ناسم یا حق او باطل په بېلو فرهنګونو کې فرق کوي، دا مسله په هغه چاپېریال پورې تړلې ده، چې انسان ژوند پکې کوي. سقراط به بیا ویل چې د ټولو وجدان سره برابر دی. ښایي دواړه نظرونه سم وي. ښایي یو کس له دې امله و نه شرمېږي چې د بدن کومه برخه یې لوڅه ده. یو کس به له دې امله د وجدان تر عذاب لاندې راشي چې ولې یې یو کس څورولی دی. خو سره له دې دا خبره باید هېره نه کړو، چې د وجدان لرل او د وجدان کارول دوه بېل شیان دي. ډېر وخت ښایي له داسې کسانو سره مخ شو، چې د وجدان ضد کارونه کوي، موږ ته بې وجدانه ښکاري، خو ددوی د وجود په یوه خوا کې هرو مرو وجدان پروت دی. څینې وخت ډېر خلک پوره بې شعوره ښکاري، خو داسې نه ده، دوی هرو مرو شعور لري خو له خپل شعور کار نه اخلي.
نوټ: شعور او وجدان له عضلاتو سره ورته بللی شو. هره عضله چې و نه کاروو او تمرین ورباندې و نه کړو، ورځ په ورځ کمزورې کېږي.
یوه بله پوښتنه پاتې وه. د ارزښتونو له مخکېوالي او مهموالي موخه څه ده؟ دا بله موضوع وه، چې په ټولګي کې به دې وروستیو کې ډېر بحث ورباندې شوی و. د بېلګې په توګه، دا یو ارزښتمن کار دی، چې یو انسان وکړای شي، موټر وچلوي او په سرعت له یوه ځایه بل ځای ته ځان ورسوي. خو دا موټر چلول بیا زیان هم لري، ونې وچوي او ځنګلونه له منځه وړي، دا نو داسې مهال دی، چې انسان د ارزښتونو له ټکر سره مخ کېږي. حیران شي چې کوم ارزښت وټاکي. سوفي تر لږ فکر وروسته دې پایلې ته رسېږي چې د ونو او بوټو ژوند او همدارنګه د چاپېریال پاکوالی تر زر رسېدلو ډېر مهم دی. په پای کې یې ولیکل: زه شخصا باوري یم، چې فلسفه د انګلیسي- ګرامر تر لوستلو مهمه ده. له دې امله د ارزښتونو په مخکېوالي او مهموالي کې به دا ډېره ښه خبره وي، چې فلسفې ته د ښوونځیو په مضمونونو کې ځای ورکړو، همدارنګه د انګلیسي-ژبې درسونه لږ را کم کړو.

د تفریح تـر زنـګ وروسـته، اسـتاد راغـی او سـوفي یـې وغوښـته، ورتـه و یـې
ویل:

- ستا پاڼه د نـور پـاڼو پـر سر وه، مـا تـر پایـه ولوسـته، هغـه څـه و چـې مـا غوښـتل، ډېـر اړخونـه یـې دې قـوي او معقـول لـیکلي وو. پـر ځـان بـاوري ښـکارې. سـړی حیرانـوي، خـو درسـي کتـاب دې یـو ځـل هـم لوستی و، سوفي؟

سوفي یو څه ځان یوې بلې خوا ته کوږ کړ:

- ښه خو تا ویلي و، چې سړی باید خپله شخصي عقیده ولري.
- هو ما ویلي و، خو هر څه حد لري

سوفي د ښـوونکي سـترګو تـه ځـیر شـوه، لـه وروسـتیو تجربـو یـې زده کـړي وو، چې کولای شي ځان ته ددې کار اجازه ورکړي.

- مـا د فلسـفې لوسـتل پیـل کـړي دي. فلسـفه د شخصـي- نظریـاتو د څرګندولو لپاره ښه زمینه برابروي.
- خـو دا زمـا د نـومرو ورکولـو کـار سـختوي، سـتا نـومرې یـا شـل دي یـا صفر.
- یانې یا مې هر څه سم ویلي یا ټول ناسم دي؟ موخه دې همدا ده
- څنګه ووایم چې شل؟ خو بل ځل دې درسي کتابونه هم ووایه!

د هغې ورځې پـه ماسپښـین کـور تـه ورسـېده، د ښـوونځي بکسـه یـې پـه زینـو کې و غورځوله، د پټنځي پـه لـور یـې منـډه کـړه. پـه یـو بـل کـې پـر تـاو شـوو جـرړو قهـوه یـي پاکـټ ایښـی و. د پاکـټ کـونج وچ کلـک و، پـوه شـوه چـې هرمس ډېر وختي راوړی دی.

پاکـټ یـې ورسره واخیسـت او پـه سـتر وره کـور تـه د ننـه شـوه. ژوو تـه یـې خواړه ورکـړل او بیا ولاړه خپلې کوټې تـه. پـر خپـل کـټ پرېوتـه او د آلبرتـو د لیک په لوستلو یې پیل وکړ.

# یونانیګري

سوفي بیا راپیدا شوم! اوس دې د طبعي فیلسوفانو او سقراط، افلاطون یا ارسطو ژوند او کارونه ولوستل. د اروپايي فلسفې په شالید پوه شوې. نو تر دې وروسته به په پاکتونو کې د ساده پوښتنو پاڼې نه وي. خکه اوس د ښوونځي ستونزې هم ډېرې دي او ازموینې دې هم پیل شوې دي.

اوس غواړم پر یوه بل څه بحث وکړم. غواړم د ارسطو د زماني یا ۴۰۰ م ز او تیاره پېړیو یا ۴۰۰ ز تر منځ د واټن او پېښو په اړه خبرې وکړم.

اوس موږ پر ډېرو مسایلو خبرې کولای شو. موږ د مسیح تر میلاد د مخکې او وروسته کلونو په اړه مفصلې خبرې کولای شو. یوه بله خبر چې په همدې وخت کې مسیحیت ظهور وکړ، هغه څه چې ددې دوران د رامنځته کېدو تر ټولو مهم او عجیب لامل دی.

ارسطو په ۳۲۲ م ز کال کې ومړ. آتن په دې وخت کې خپل قوت بایللی و. ددې لامل تر ډېره د ستر سکندر (۳۵٦- ۳۲۳ م ز) لښکر کشي وې.

ستر سکندر د مقدونیې پادشا و. ارسطو هم د مقدونیې و. هغه تر یوه وخته د ځوان سکندر د روزنې او تعلیم دنده پر مخ وړه. سکندر له ایرانیانو سره سختې جګړې وکړې، چې په پای کې سکندر پر ایرانیانو بریالی شو او دوی ته یې ستره ماتې ورکړه. سره له دې سوفي، سکندر په خپلو لشکرکشیو د یونان تمدن خپلو ټولو مستعمرو، منځني ختیځ او آن د هند تر پولو پراخ کړ. دا نو د بشریت په تاریخ کې د یوه نوي عصر- پیل و. داسې یو تمدن رامنځته شو، چې د یونان ژبې او فرهنګ په هغه کې پوره رول ادا کړ. دغه دوره نبږدې ۳۰۰ کاله اوږده شوه. وروسته بیا دا دوره د هیلنیسم یا یونانې کولو په نامه مشهوره شوه. د هیلنیسم اصطلاح هم د یوې دورې لپاره او هم پر دریو هېوادونو (مقدونیه، سوریه او مصر-) د حاکم یوناني فرهنګ لپاره کاروو.

شپه نو، تر میلاد شاوخوا ۵۰ کاله مخکې، روم په نظامي او سیاسي چارو کې تر ټولو غوره شو. ورو ورو یې د یونان تر واک لاندې سیمې ونیوې او تر دې وروسته نو په سیمو کې د یوناني ژبې او فرهنګ پر ځای، لاتین ژبه او فرهنګ حاکمېدل. دا لړۍ نو په غرب کې له هسپانیې پیل شوه او د اسیا تر ژوره پورې یې پراختیا پیدا کړه. دا نو د رومیانو لپاره یو پیل و، چې د یونانیانو له فرهنګ په استفادې خپل فرهنګ ته کار وکړي. دا وخت مورږ د لرغونو متاخرانو[1] په نامه یادوو. یو څه دې هېر نه شي سوفي، مخکې تر دې چې رومیانو هلني نړۍ تسخیر کړي، روم پخپله تر یوناني فرهنګ او نفوذ لاندې ددوی یو ایالت و. سره له دې چې د یونان سیاسي قدرت له منځه ولاړ، خو فرهنګ یې کلونه وروسته هم، خپل قوت او ځواک ساتلی و.

## دین، فلسفه او علم

د یوناني کولو ځانګړنه دا وه، چې د ډول ډول فرهنګونو او هېوادونو ترمنځ یې شته پولې ماتې کړې. تر دې مخکې یونانیانو، رومیانو، مصریانو، بابلیانو، سوریانو او ایرانیانو هر یو خان ته ځانګړی خدای لاره او هغه به یې د خپل ملي دود په چوکاټ او اصولو کې لمانځه. اوس فرهنګونه، د دیني، فلسفي او علمي مفکورو په یوه ستره ونه کې سره نښتي دي.

داسې ویلی شم، چې د یونان د میدان صحنه په ټوله نړۍ کې وغوړېده. د لرغوني ښار میدان، د ټولو هغو شیانو او مفکورو د پلور میدان و، چې نوې بازار ته راغلې وې. خو په نوي وضعیت کې ټوله نړۍ د هغو افکارو پر بازار بدله شوه چې د ښارونو په ګوټ ګوټ کې را ټوکېدلي وو. په بېلو ژبو خبرې او افکار تر غوږونو رسېدل.

مخکې مې هم وویل، چې اوس نو د یوناني فرهنګ تر اغېز لاندې سیمو کې، د ټېر په پرتله د نړۍ په اړه یوناني لیدلوری ډېر پراخ شوی و. ددې تر

[1] Late antiquity

خنګ ورو ورو د مدیترانې په شاوخوا هېوادونو کې د شرقي خدایانو لمانځل هم پیل شول. داسې مذهبونه رامنځته شول، چې د پخوانیو ملتونو له لرغونو باورونو یې الهام اخیستی و. دې ته التقاط یا یو بل سره یو ځای کېدل وايي.

تر دې وړاندې خلک له خپل فکر او ښار سره ډېر تړلي ... خو چې مرزونه مات شول، نو پر خپل فکر او باور یې شک پیدا شو. دوی د خپل ژوند د فلسفې په اړه دوه زړي شول. د وروستي لرغوني دورې تر ټولو ستري ځانګړنې، شک، بې باوري، مذهبي شک او نور موارد دي. خلکو به په دې وخت کې ویل (نړۍ زړه شوې ده).

د یوناني کولو د وخت د نوو رامنځته شوو دینونو یوه شریکه ځانګړنه دا وه، چې خلک یې له مرګه ژغورل او یا به یې دوی ته د ابدي ژوند په اړه تعلیمات ورکول. دا تعلیمات تر ډېره پټ و او رمزي بڼه یې درلوده. با ایمانه خلکو ددغو تعلیماتو په زده کولو او منلو، ځینې ځانګړي مذهبي مراسم تر سره کول او په دې توګه به یې پر ابدي ژوند او د روح په تلپاتې والي باورونه پخول. دوی به ویل چې د کایناتو په اړه د ریښتیني بصیرت تر لاسه کول هم کولای شي د روح د ژغورنې لپاره مهم وي.

سوفي! له دې تازه مذهبونو ور هاخوا؛ د فلسفې په اړه درته غږېږم. سوفي! فلسفې هم تر ډېره، د آرامتیا، خوشالي او پاکي پر لور حرکت کاوه. په دې وخت کې نو باور داسې و، چې فلسفه نه یوازې دا چې د ارزښت وړ ده، بلکې انسان د مرګ له وېرې او بد بیني ژغوري. په دې توګه نو ورو ورو د دین او فلسفې تر منځ شته مرزونه له منځه ولاړل.

که ریښتیا ووایم، نو د هیلینسم د وخت فلسفه اصیله او نوې فلسفه نه وه. نوی افلاطون یا ارسطو پیدا نه شو. ددې پر خلاف د آتن درې پخواني فیلسوفان وو، چې ځینو فلسفي بهیرونو ته یې الهام ورباښه. ددوی په اړه به ډېر ژر لنډې خبرې وکړو.

هلنيستي علم هم دېبلو فرهنگونو تر اغېز لاندې و. سکندريه ښار د ختيځ او لوېديځ د تمدنونو د ليدنې او يو بل سره د تعامل مرکز شو. آتن لا هم د فلسفې مرکز پاتې شو. د ارسطو او افلاطون د فلسفې ښوونځي لا هم ودان او فعال وو. سکندريه بيا د علم مرکز شو. ستر کتابتونونه پکې جوړ شول. د رياضي، نجوم، چاپېرياليپوهنې او طب ستر علمي مرکزونه پکې وو.

د هغه وخت يوناني فرهنگ له نننۍ نړۍ سره يو شان گڼلی شو. يوويشتمه پېړۍ هم له يوه خلاص تمدن نه برخمنه ده. د تمدنونو همدا پراخوالی او آزادي ددې سبب شوې، چې په نړۍ کې ستر بدلونونه رامنځته شي او موږ ددې بدلونونو شاهدان يو. همغه ډول چې د مسيحيت د پيل په وخت کې، يوناني، مصري او نور شرقي مذهبونه په روم کې پيدا کېدل، نن د شلمې پېړۍ په پای کې هم د اروپا په سترو او کوچنيو ښارونو کې او همدا راز د نړۍ په گوټ گوټ کې بېل دينونه او مذهبونه د يو بل څنگ ته ليدل کېږي.

نن هم وينو، چې د لرغونې فلسفې او پخوانيو يا نوو علومو لاس ته راوړنې او آثار د انسانانو د نړۍ ليد په بدلون کې څومره او څنگه اغېز لرلی دی. دا معرفت په اصل کې د هغه تونې يوه برخه ده چې له لرغونې يونانه د نننۍ نړۍ د انسانانو لاسونو ته اوبو راوړې ده. دغه هر څه د يوناني کولو په عصر کې يوه جرړه لري.

ما مخکې هم وويل، چې په دې وخت کې فلسفه تر ډېره پر هغو مسايلو چورلېده، چې د افلاطون او ارسطو له لوري مطرح شوي وو. ددوی گډه وجه دا وه، چې د بشريت لپاره يې د غوره ژوند کولو لارې چارې لټولې. ددوی کار تر ډېره له اخلاقو سره و. په هلنيستي تمدن کې هم اخلاقيات د فلسفې د کار په لومړيتوبونو کې راغلل. تر ډېره په ريښتينې او دايمې خوښۍ او نېکمرغۍ ټينگار کېده او هڅه يې کوله چې د تلپاتې خوشالۍ لارې چارې پيدا کړي. له دې دلې پر څلورو تگلارو خبرې کوو.

۱) کلبیان[1]

وایي چې سقراط یوه ورځ د یوه دوکان مخې ته ودرېد. ډول ډول شیانو ته یې وکتل. وروسته یې وویل: کومو، کومو شیانو ته چې زه اړتیا لرم!

دغه خبرې ته کلبي شعار ویلی شو. دغه مکتب نېږدې ۴۰۰ کاله تر میلاد مخکې جوړ شوی دی. بنسټګر یې آنیسیتېنېس[2] و او په آتن کې یې دغه مکتب رامنځته کړ. هغه د سقراط د شاګردانو له ډلې و. په ځانګړې توګه د سقراط د قناعت لیونی و.

کلبیان باوري و، چې رښتینې نېکمرغي، په سیاست، ظاهري ښکلا، مادیاتو، یا روغتیا کې نه ده. ددوی په وینا رښتینې نېکمرغي دا ده، چې انسان ددې زر تېرېدونکو خوندونو له بنده ځان خلاص کړي. نو دا چې رښتینې نېکمرغي ددې شیانو په بند او قید کې نه ده، نو هر سړی کولای شي چې نېکمرغه وي. ددوی په وینا نېکمرغي چې یو ځل په لاس درغله بیا د تګ نه ده.

د کلبیانو له ډلې تر ټولو مشهور سړی دیوګنس (دیوجانس) و. هغه د آنیسیتېنېس شاګرد و. په خومي کې یې ژوند کاوه. ددنیا له شتمنۍ یې یوازې امسا او د ډوډۍ یوه کڅوړه لرله. نو د هغه د نېکمرغیو تښتول کوم سخت کار نه و. یو وخت د اوبو د منګي څنګ ته ناست و، د اوبو له څښلو یې خوند اخیست چې سکندر نږدې ورغی. ستر امپراتور یې څنګ ته ودرېد، ویل څه درته وکړم؟ څه غواړې؟ دیوګنس[3] ورته وویل، هو، یو کار وکړه یوې خوا ته ودرېږه، پر ما د رالوېدلې لمر مخه مه نیسه. د لمر مخه دې نیولې ده. په دې توګه یې وښوده چې تر ټولو، شتمن، نېکمرغه او ستر سړی دی. ځان یې تر

---

[1] Cyniec
[2] Anisithenes
[3] Diogenes

سکندر غونډې امپراتور هم قانع او سوکاله وښود. ده چې څه غوښتل ورسره و، نو اړتيا يې نه وه چې د سلطان احسان پر ځان بار کړي.
کلبيانو به ويل، چې انسان بايد د خپلې روغتيا په اړه هم تشويش و نه کړي. دوی به ويل چې آن مرگ او ناروغي هم د خپگان ارزښت نه لري. دوی به ويل نو ددې کارونو او نورو په خاطر ځان مه خپه کوئ. نن دوې اصطلاحگانې (کلبي مشرب) او (کلبي مشربي) د مسخره ناباوري په مانا ده. چې انسان ډېر خالص نيت ولري او په ځينو شيانو ناباوره وي. همدارنگه د خلکو دردونو ته د ارزښت نه ورکولو په مانا هم کارول کېږي.

## رواقيان

کلبيانو د رواقي فلسفې په وده کې، چې د ۳۰۰ م ز په شاوخوا کې يې وده وکړه، مهم رول لوبولی دی. ددغه مکتب بنسټگر زنون دی. هغه د قبرس و. يوه پېښه يې په ژوند کې وشوه، له هغه وروسته آتن ته راغی او له رواقيانو سره يو ځای شو. ده به خپل پيروان تر يوه رواق لاندې راټولول. له همدې امله دوی په رواقيانو مشهور شول. د رواقيانو فلسفه وروسته په رومي فرهنگ کې له ځانگړي اهميت نه برخمنه وه.
رواقيانو د هراکليتوس په څېر باوري وو، چې انسان ټول د يوه شريک عقل (لوگوس) برخه دي. ددوی په باور هر انسان، د يوې نړۍ يا يوه واړه دې مسلې يوه بله مفکوره رامنځته کړه، خلک يې باوري کړل، چې يو عالم ميناتوري ده، چې دا بيا پخپله د يوه بل ستر عالم يو ځرک دی.
کلي حقيقت موجود دی او هغه د طبعي قانون تر حکم لاندې دی. نو دا چې د طبيعت قانون، د نه ورکېدونکي او نه زوال کوونکي انساني او جهاني عقل پر بنسټ ولاړ دی، د وخت او زمان له بدلون سره نه بدلېږي. په دې وخت کې نو رواقيانو د سوفسطايانو په مقابل کې د سقراط پلوي پيل کړه.

د طبیعت قانون د غلامانو په ګډون ټول په ځان کې رانغاړل. رواقیانو به ویل، چې په نړۍ کې ټول قوانین د طبیعت د قانون نمیګړې کاپي ده.

رواقیان د فرد او نړۍ تر منځ هر ډول توپیر رد کړ. په همدې توګه یې د روح او مادې تر منځ هم ټکر رد کړ. دوی به ویل یوازې یو طبیعت موجود دی او بس. همدا فکر بیا وروسته د *Monoism* [۱] په نامه مشهور شو.

رواقیان د خپلې زمانې ربښتینې بچیان وو. دوی په ښکاره توګه ځانونه په نړۍ کې شامل خلک ګڼل. دوی د خپل عصر ـ فرهنګ تر کلبیانو مخکې مانه. دوی د ټولو پام انسان پالنې او د یو بل درک ته را واړوه. دوی به سیاست کاوه، ددوی له ډلې ډېریو یې ښه سیاست کاوه. په ځانګړې توګه د روم امپراتور اورلیوس (۱۸۰-۱۲۱ ز) فعال سیاستوال و. دوی په روم کې یوناني حکمت او فرهنګ ته وده ورکړه. له دې ډلې تر ټولو نومیالی کس سیسرون (۱۰٦-۴۳ م ز) و. هغه یو واکمن، خطیب او فیلسوف و. د انسان پالنې مفکوره ده رامنځته کړه. دا نظریه د فرد ژوند د هر څه اصلي محور ګڼي. کلونه وروسته بل رواقي سنکا (۴ م ز- ٦۵ ز) وویل، انسانیت د سپېڅلي انسان لپاره دی، دا خبره وروسته د انسانپالانو د لارې شعار وګرځېده.

رواقیانو پر دې سربېره، چې ټول پېښېدونکي طبعي مسایل لکه مرګ او ژوند د طبیعت قوي او قاطع قوانینو ته تابع دي. له دې امله انسان باید خپل سرنوشت و مني. هر څه د یوې اړتیا له مخې دي، نو سرنوشت چې راغی او ور یې وټکاوه، شکایت بې ګټې کېږي. ددوی په نظر انسان باید په ژوند کې د خوښې پېښې له چیغو او خبرو پرته و مني. له دې امله له کلبیانو سره بې ورته والي نه دي. دوی به ویلې بهرنۍ پېښې ټولې بې

---

[۱] *Monoism* (په یوه ذات باور لرل)

ارزښـته دي. آن نـن هـم د هغـه چـا پـر وړانـدې چـې پـر ځـان د احساساتو غلبې ته اجازه نه ورکوي د رواقي اصطلاح کارول کېږي.

## اپيکوريان

مخکـې مـو وويـل، سـقراط غوښـتل دا پيـدا کـړي، چـې بشريت څـه ډول ښه ژونـد کـولای شي. کلبيـانو او رواقيـانو دا خـبره داسـې مانـا کـړه، چـې انسان بايـد ځـان لـه مـادي تخيلاتـو او تجملاتـو خـلاص کـړي نـو هلـه خوښـي ليدلی شي. خـو د سـقراط يـو بـل شـاګرد آيسـتيپوس نومېـده، ده بـه ويـل، د ژونـد هـدف دا دی، چـې د حسي-لـذت تـر ټولـو لـوړې کچـې تـه ځـان ورسـوې. د هغه په خبره، خونـد او لـذت تـر ټولـو ښـه نيکـي او درد تـر ټولـو سـتره بـدي ده. لـه همـدې املـه يـې هڅـه کولـه داسـې لارې چـارې پيـدا کـړي چـې پـه ژونـد کـې لـه ټولـو خفګـانونو ځـان خـلاص کـړي. کلبيـان او رواقيـان بيـا پـر دې بـاور وو، چـې درد بايـد تحمـل شي. دا بيـا لـه درده د لـرې کېـدو لـه هڅـې سره توپير لري.

اپيکورس د (۳۴۱-۲۷۰) کـال پـه شـاوخوا کـې، پـه آتـن کـې يـو فلسـفي مکتب جـوړ کـړ. دده پيـروان يـې اپيکوريـان بلـل. ده د آريسـتيپوس د لـذت او خونـد نظريـې تـه پراختيـا ورکـړه او د د موکريتـوس د اتـوم لـه نظريـې سره يـې ګـډه کړه.

دا مشـهوره خـبره ده، چـې اپيکوريـانو بـه پـه بـڼ کـې ژونـد کـاوه. لـه دې امله د باغ پر حـاکمانو هـم مشـهور وو. ويـل کېږي چـې ددې بـڼ پـر دروازه يـو ليـک را ځوړند و، پـه هغـه بانـدې لـيکلي و: اې پرديـه! دلتـه بـه وخـت پـه خوښـې تېر کړې، خوښي دلته تر ټولو ستره نيکي ده.

اپيکوروس ټينګـار کـاوه، چـې خوښـي بايـد تـل د هغـه لـه جـانبي عـوارض سره يـو ځـای پرتلـه کـړو. کـه دې يـو ځـل ډېر چاکليـټ خـوړلي وي پـوهېږې چې څـه وايـم سـوفي! کـه دې نـه دي خـوړلي نـو اوس يـې و ازمويـه. ټـولې پيسـې دې واخلـه او پـه يـوه ځـل چاکليـټ وربانـدې واخلـه. خـو شرط دا دی، چـې د

خپلې خوښې چاکليټ بـه اخلـې. ددې ازمويښت لپـاره بايـد ټـول چاکليټ په يـوه وار وخـورې. نېږدې نـيم سـاعت وروسـته بـه د اپيکـوروس پـه موخـه پوه شې، چې له جانبي عوارضو يې مقصد څه و.

اپيکوروس بـه ويـل، چـې خوندونـه، ژر تېرېـدونکي او بې ګټې دي، پـر ځـای يې بايـد، د تلپـاتې، سـترو، قـوي او ژورو خوښـيو پـه لټـه کـې وو. زه يـوه بېلګـه وايم سوفي (تـه يـو کـال چاکليټ نـه اخلـې، پـر ځـای يـې خپلـې پيسـې ټولـوې او يـو کـال وروسـته يـو ښـکلي بايسـکل اخلـې. پـه هغـه کـولای شـې لـه هېـواده يا ښاره بهر سـفر وکـړې). مـوږ د حيوانـاتو پـر خـلاف، د خپـل ژونـد لپـاره پـلان جـوړولای شـو. مـوږ کـولای شـو خپلـې خوښـې وشـمارو. چاکليـټ ښـه دي، خو د بايسکل په اخيستلو کولای شو انګلستان ته يو چکر ووهو.

اپيکـوروس ټينګـار کـاوه، چـې خوښـي تـر ډېـره د جسـماني خونـد اخيسـتو پـه مانـا نـه ده. لکـه چاکليـټ وخـوره خونـد واخلـه نـو خوشـاله بـه وې. ددې تـر څنـګ ځينـې ارزښـتونه، هـنر او درک هـم پـه دې ډلـه کـې راځـي. تـر دې ور هـاخوا، لـه ژونـده ګټـه اخيسـتل ځينـو زړو يونـاني ارمـانونو تـه هـم اړتيـا لـري. لکـه تعـادل، د دوسـتانو پالـل، زغـم او هوسـاينه. هـوس او تمـايلات بايـد تـر ډېره وځپو، آرامش موږ ته د غمونو او دردونو د زغملو توان راکوي.

د خـدايانو وېـرې ډېـرى خلـک د اپيکـوروس بـڼ تـه راوسـتل. د دموکريتـوس د اتوم نظريـه پـه دې برخـه کـې لـه خرافـاتو سره د جګـړې تـر ټولـو مهمـه وسـله وه. د ښـه ژونـد کولـو لپـاره تـر ټولـو مهمـه خـبره دا ده، چـې د مـرګ پـر ويـره بـرلاسي شـو. لـه همـدې املـه اپيکـوروس د دموکريتـوس د روح د اتمونـو پـر نظريـه ټينـګ ولاړ و. ښـايي پـه يـاد دې وي سـوفي، دموکريتـوس بـه ويـل، چـې تـر مـرګ وروسـته ژونـد نشـته دی، نـو لـه همـدې املـه کلـه چـې مـړه شـو اتومونه سره پاشل کېږي.

اپيکوروس بـه دا خـبره ډېـره پـه آسـانۍ کولـه، چـې مـرګ پـه مـوږ پـورې اړه نـه لـري، پـه دې مانـا چـې د هغـه پـه اړه خـبرې کـول زمـوږ کـار نـه دی. د ده پـه

خبره تر هغه چې موږ شته يو مرګ نشته، کله چې مرګ راغی نو بيا موږ نشته يو. (فکر وکړه، کوم مړی به وي چې له خپل مرګ خپه وي؟)
اپيکوروس خپله د خلاصون فلسفه، په څلورو عبارتونو يا دده په وينا په څلورو دارويي بوټو کې خلاصه کوله.
- له خدايانو بايد و نه ډار شو، مرګ پښېماني نه لري، نيکي آسانه تر لاسه کېږي، د ويروونکو شيانو زغمل سخت دي.
د فلسفي خبرو قياس کول، دارو درمل يا دې ته ورته شيان د يونانيانو په نړۍ کې کومې نوې خبرې نه وې. موخه دا وه، چې انسانان بايد د اپيکوروس د څلورو درملو له ډبلي سره ځان بلد کړي.
اپيکوريانو د رواقيانو پر خلاف، له سياست او ډلو ټپلو سره مينه نه درلوده. د اپيکوروس ژوند له ګډوډيو او کشمکشونو لرې و. ښايي د هغه بڼ له اوسنيو شريکو کورونو (کمون) سره ورته وبولو. زموږ په وخت کې هم لسګونه کسان ووتل، چې له ټولنې لرې ځان ته يو امن ځای پيدا کړي.
تر اپيکوروس وروسته يې پيروانو دده له خبرو بله مانا واخيسته. دوی د جنسي-او نفساني لذتونو پر ارضاع زور ولګاوه. ددوی شعار (همدا شيبه خوشاله تيره کړه!) و. نن هم اپيکوري کلمه په منفي مانا کارول کېږي. موخه يې هغه انسان دی، چې يوازې د لذت او خوند لپاره ژوند کوي.

## نوې افلاطوني لار

مخکې مو ياده کړه، چې کلبيانو، رواقيانو او اپيکوريانو د سقراط له درسونو او زده کړو، سرچينه اخيستې وه. ددې ترڅنګ تر سقراط مخکې د ځينو فيلسوفانو له خبرو او نظريو هم دوی استفاده کوله. خو تر ټولو مهم فلسفي بهير چې د يوناني کولو په وروستيو پېړيو کې رامنځته شو، د افلاطون له فلسفې يې سرچينه اخيسته. له همدې امله هغه ته نوې افلاطوني فلسفه وايي.
د نوې افلاطوني فلسفې تر ټولو مهمه څېره، پلوتينوس /پلوتين و. هغه (۲۷۰-۲۰۵ ز) کلونو کې ژوند کاوه. هغه په سکندريه ښار کې فلسفه زده

کړه، خو په روم کې یې ژوند پیل کړ. په سکندریه کې دده سټروالي د پام وړ دی؛ ځکه دا ښار څو پیړۍ د شرق د یوناني فلسفې او شرقي عرفان د یو ځای کېدو او مدغم کېدو مرکز و. پلوتینوس د صداقت او ربښتینولی درسونه له ځان سره روم ته راوړل او دلته یې له مسیحیت سره سیالي پیل کړه. خو له دې سره سره نوې افلاطوني فلسفې د مسیحي الهیاتو په بهیر کې خپل پراخ نفوذ پیدا کړ.

سوفي! د افلاطون د مثل خبره دې په یاد ده؟ په یاد دې دي، چې څه ډول یې د کاپي او مثلي جهان تر منځ توپیر راوست. دا نو د روح او جسم تر منځ د ستر درز په مانا وه. انسان په دې توګه دوه ګوني موجود شو. په دې نظریه کې زموږ وجود لکه په نړۍ کې بل هر شی له خاورو او دوړو جوړ شوی و، خو روح مو تلپاتې شی و. په دې خبره تر افلاطون مخکې ډېری یونانیانو باور درلود. پلوتینوس ددې تر څنګ د آسیا له ورته مفکورو سره اشنایي لرله.

پلوتینوس به ویل، نړۍ د دوو قطبونو تر منځ یو پل دی. په یوه خوا کې یې ملکوتي نور دی، چې ده هغه یوازینی واحد وجود یې باله او کله کله به یې خدای ورته وایه. په بل اړخ کې توره تیاره ده، چې د هغه موجودیت له خدای سره اړیکه نه لري او د هغه له لوري نه ده. د پلوتینوس موخه دا ده، چې دا توره تیاره بهرنی وجود نه لري. دده په باور د رامنځته کېدو لامل یې د رڼا نشتوالی دی. په بله خبره تیاره هیڅ شته نه، خو دا چې رڼا نشته په ځای یې تیاره ښکاري. دده په باور څه چې شته دي، هغه د خدای موجودیت او یوازینی ذات دی. ده به ویل، رڼا چې څومره لرې شي، قوت یې کمېږي، نو په همدې توګه ښایي داسې ځای هم شته وي چې هیڅ نور ور و نه رسېږي او تیاره پاتې شي.

د پلوتینوس په خبره، روح د خدای له وجوده روښنایي اخلي، په داسې حال کې چې روح تیاره ماده ده او حقیقي وجود نه لري. له دې سره سره په طبیعت کې د خدای د وجود یوه تته وړانګه ده.

په توره شپه کې د اور لګېدل وګوره، چې واړه واړه سپرغي هر لور ته ترې الوځي. ښايي ډېر اور خپله شاوخوا روښانه کړي او د ورځې بڼه ورکړي خو په لرې واټونو کې يوازې وړه رڼا ښکاري. که نور هم لرې ولاړ شو ښايي د يوه واړه خال په څېر راته ښکاره شي. که نور هم همداسې لرې شو، نو ښايي دغه رڼا او د اور شغلې هېڅ په سترګو و نه وينو. نور په تياره کې ورکېږي او له تورې تيارې ماسوا بل هېڅ نه وينو. نور نو نه رڼا نور سترګو کېږي او نه سيورې جوړېږي.

اوس نو داسې و انګيره چې دا هستي دغه اور ته ورته شی ده. هغه څه چې رڼا اچوي د پلوتينوس په خبره دا همغه واحد موجود يا خدای دی. تياره بيا هغه ماده ده، چې انسانان او حيوانات څينې جوړ شوي دي. خدای ته تر هر څه د دغې شيونو لومړني جوړ شوي صورتونه نږدې دي. د انسان روح تر دې ټولو لوړ دی، دا نو ددغه اور يوه شغله ده. نو په طبيعت کې چې هر خای ګورې ملکوتي نور برېښي. دغه نور په ټولو ژوندیو موجوداتو کې ليدلی شو، ان سور ګل يا سنبل هم دغه ملکوتي وړانګې لري. په ځمکه کې اوبه او ډبرې چې تر هر څه ور هاخوا په همدې واحد موجود يا خدای ژوندی دي.

زه غواړم ووايم، چې په نړۍ کې ټوله هستي د يوه ملکوتي راز برخه ده. په لمرمخي يا بل ګل کې د هغه خلا ليدلای شو. دا ګران راز آن کولای شو د هغو پتنګانو په وزرو کې ووينو چې له يوه ګل بل ته الوزي. همداسې په يوه سور رنګه ماهي کې دا راز شته دی، چې د تورو ډبرو په منځ کې لامبو وهي. خو له دې ټولو سره سره تر هر څه زموږ روح خدای ته ډېره نږدې ده. همدا دی چې موږ او د طبيعت يو ستر راز سره يو خای شوي يو. موخه مې روح او جسم دی. ښايي حيران شو او دا شېبه راته نه پيدا کېدونکې وي، خو بايد ووايم چې موږ هم دغه ملکوتي راز يو.

د پلوتينوس دغه استعاره د افلاطون د غار اسطورې ته ډېره ورته ده. هر څومره چې د غار خولې ته را وځو همدومره د هستۍ او ژوندانه سرچينې

تـه ور نـږدې کېږو. د پلوتينـوس پـه درسـونو او خـبرو کـې لـه افلاطـون سره يـو ټکـر موجـود دی. افلاطـون د انسـان ژونـد دوه ګـونی بللـی و، يـانې روح او جسـم، خـو پلوتينـوس بـه ويـل، هـر څـه يـو دی. دوه ګـونی جوړښـت نشـته دی. دده پـه بـاور هـر څـه خـدای دی. ان د افلاطـون پـه اسـطوره کـې هـم، پـه غـار کـې د تېرېـدونکو سيورو تـر شـا يـو واحـد شـی و، د پلوتينـوس د واحـد موجود د وړانګو اغيز پکې ليدلای شو.

پلوتينـوس د خپـل ژونـد پـه يـوه نـادره شـېبه کـې د خـدای او ځـان د روح يـووالی احساساوه. مـوږ دغـه حالـت تـه اوس معمـولا عرفـاني تجربـه وايـو. هغـه يـوازينی کـس نـه دی، چـې لـه دغـه حالـت سره مـخ شـوی دی. پـه نـړۍ کـې ډېـر خلـک پـه بېلـو فرهنګونـو کـې لـه ورتـه تجربـو بـرخمن دي. بنـايي ددغـه کـار جزيـات تـوپير ولـري خـو اصـلي اړخ يـې يـو دی. کـه دې خوښـه وي ددغه اړخونو يوه برخه به دلته ياده کړو.

**عرفان**

عرفـاني تجربـه لـه خـدای سره د يـو ځـای کېـدو پـه مانـا ده. پـه نـړۍ کـې ډېـر مذهبونـه د خـالق او مخلـوق تـر مـنځ د يـوې فاصـلې پـر موجوديـت ټينګـار کوي، خو عارفان بيـا دغـه فاصـله نـه منـي. عـارف لـه خـدای سره وحـدت يـا لـه هغه سره يو ځای کېدل زده کړي دي.

پـه دې توګـه هغـه څـه چـې مـوږ يـې (زه) بولـو پـه حقيقـت کـې واقعـي (زه) نـه دی. پـه لنـډ وخـت کـې تـر دې سـتر (زه) پيـدا کـولای شـو. ځينـې عارفـان همدې تـه خـدای وايـي. ځينـې نـور بيـا ورتـه کيهـان، طبيعـت يـا کاينـات وايـي. کلـه چـې لـه دغـه حالـت سره عـارف مـخ شي، نـو فکـر کـوي، چـې پـه خـدای کـې محـوه کېـږي. فکـر کـوي چـې ځـان ورو ورو بـايلي، فکـر کـوي چـې وجـود يـې د خـدای لـه وجـود سره يـو ځـای کېـږي، لکـه ځـاځکی چـې پـه سـيند کـې ورکېـږي. دوی همداسـې د ځـان ورکېـدل د خـدای پـه وجـود کـې احساسـوي. يـوه هنـدي عـارف يـو وخـت دغـه حالـت داسـې بيـان کـړی دی ( کلـه چـې زه وم، خـدای نـه و، اوس چـې خـدای شـته دی زه نـور نشـته يـم).

مسیحي عارف آنګلوس سیلسیوس (۱۶۷۷-۱۶۲۴ز) همدا خبره په بله بڼه کړې ده: هر څاڅکی چې له سیند سره یو ځای شو، سیند کېږي، روح هم د وخت په تېرېدو لوړېږي او له خدای سره یو ځای کېږي.

ښایي فکر وکړې، چې ځان بایلل خو سمه خبره نه ده. پوهېږم چې څه وایې. خو د عارفانو موخه بله ده، ددوی په وینا هغه څه چې ته یې تر لاسه کوې تر هغه څه خو برابره غوره دي چې له لاسه یې ورکوې. ته په حقیقت کې هغه څه بایلې چې اوس یې، خو په پر وړاندې یې داسې احساس کوې، چې ته خو برابره ستره شوې یې، داسې احساس کوې، چې د فضا او کایناتو په اندازه ستره یې. ځان یو کیهاني او ستر روح ګڼې، سوفي فکر کوې، ته شته یې چې خدای شته دی. یا ځان له خدای سره نږدې او ډېر نږدې ګڼې. که ته د سوفي آمندسون په نامه ځان له لاسه ورکړې، خو پر وړاندې یې ته دا خوښې لرې چې تر هغه ستر څه تر لاسه کولای شې. په حقیقت کې ته حقیقي (زه) نه یې، خپل حقیقي (زه) ته د رسېدلو لپاره ته باید اوسنی سوفي آموندسن وبایلې. رښتینی (زه) یا وجود دې د اوسني وجود په فنا کې نغښتی او د صوفیانو په باور دا هغه څه دي، چې د یوې نرمې لمبې په څېر د انسان په وجود کې بل وي.

خو پام دې وي چې دغه ډول عرفاني تجربې په خپله نه تر لاسه کېږي، عارف باید د تزکیې مراحل تېر کړي، څو خدای ته ورسېږي. دا مراحل، ساده ژوند کول او د جذبې او مکاشفې ډول ډول لارې دي، چې د هغه له وهلو وروسته عارف خدای ته رسېږي. همدا دی چې بیا د (اناالحق) ناره وکړي.

عرفاني تګلارې د نړۍ په ټولو مذهبونو او دینونو کې پیدا کولای شو. د نړۍ په ګوټ ګوټ او بېلو فرهنګونو کې د ټولو صوفیانو، صوفیانه تجربې او صفتونه یو بل ته ډېر ورته والي سره لري. صوفي هڅه کوي چې د خپلې عرفاني هڅې لپاره یو دیني یا فلسفي تفسیر پیدا کړي، په همدې شبه کې د هغه فرهنګي مخینه راڅرګندېږي.

په باختري عرفان یعنې یهودیت، مسیحیت او اسلام کې، عارف تینګار کوي چې له خپل ځانګړي خدای سره یې لیدل شوني دي. ددوی په وینا سره له دې چې خدای د انسان په روح او طبیعت کې موجود دی، خو تر ځنګ یې په یوه ستر او غوره عالم کې هم موجود دی. د هند په مذهبونو، بودایي او چینایي مذهبونو کې، بیا تر ډېره تینګار پر دې دی چې په خدای کې ورک او ډوب شي. یا غواړي په کیهانونو او کایناتو کې ډوب او حل شي. ددوی په باور په دې حال کې عارف کولای شي ووایي، چې زه په ستر روح کې حل یم یا خدای یم. ددغو مذهبونو پلویان باور لري، چې خدای هم په نړۍ کې شته دی او داسې بل ځای به هم وي چې خدای پکې حضور ولري.

په هند کې قوي عرفاني غورځنګونه موجود وو. په ځانګړې توګه تر افلاطون مخکې دغه غورځنګونه ډېر پیاوړي وو. سوامي ویوکاناندا هغه هندی صوفي و، چې غرب ته یې د هندوییزم مذهب راوړی دی. هغه وایي: په نړۍ کې داسې مذهبونه شته چې وایي، هغه چې د انسان له وجوده بهر د خدای پر موجودیت باوري نه وي مشرک دی، خو موږ وایو هغه کس چې پر ځان باور او عقیده و نه لري مشرک دی. زموږ په نظر د خپلې روح پر پیاوړتیا او ښکلا باور نه لرل شرک دی.

ډېرې عرفاني تجربې اخلاقي ارزښت هم لري. یو وخت د هند یوه پاچا سروپالي رادها کریشنان وایي، له ګاونډي سره دې د ځان په څېر مینه ولري، ځکه ته د ځان ګاونډی یې. دا به تېروتنه وي چې ووایې، ګاونډی دې کوم بل څوک دی.

زموږ په وخت کې هم، ډېرې خلک چې له کومې ځانګړې طریقې پیروي هم نه کوي، د ځینو عرفاني تجربو په اړه خبرې کوي. دوی داسې فکر کوي چې ځینې خبرې ورته الهام کېږي. خپلې دغه وړتیا ته د لایتناهي پوهې نوم ورکوي، یا داسې انګیري، چې له آسمانونو هر څه

ورته راځي. دوی ته پیدا شوی احساس، داسې دی لکه د زمان او مکان له بنده چې خلاص وي او د ابدیت له دریڅې نړۍ تجربه کړي.

سوفي یې د خوب پر کټ کېناسته. پر خپل مخ او سر یې لاس تېر کړ. له ځان سره یې وویل، هو ژوندی یم. وجود مې احساسولی شم. د پلوتینوس او عارفانو په اړه یې چې څومره معلومات ډېربدل، فکر یې کاوه، چې لومړی په کوټه کې، بیا د کړکۍ مخې ته، وروسته د ښار په لرې لرې برخو کې وزر رېوي او الوځي. له آسمانه یې لاندې خلکو ته چې په میدانونو کې روان یا ولاړ وو، کتل. همداسې پورته وخته، د ځمکې پر کره ودرېده، ځمکې ته یې وکتل، پورته ولاړه، سترو اقیانوسونو ته یې وکتل پر اروپا گرد چاپېره را تاو شوه، د افریقا تر ځنګلونو ورسېده.

ټوله نړۍ ورته د یوه ژوندي فرد په توګه ښکارېده او ګومان یې کاوه، چې دا فرد له دې پرته بل څوک نه دی. له ځان سره یې فکر وکړ، چې ټوله نړۍ زه یم، دا ستره نړۍ چې دې ته بې سرو پایه او وحشتناکه ښکارېده، دا خو سوفي وه. کاینات، د سوفي په نظر دا دومره عظیم او ستر کاینات اوس هم پراخ او ښکلي وو. اوس یې فکر کاوه، چې دا هم ډېره ستره او عظیمه شوې ده.

دغه فوق العاده احساس یوازې څو شېبې دوام وکړ. خو سوفي باوري وه چې هېڅ وخت به دغه حالت هېر نه کړي. دې ګومان کاوه، چې د وجود له ژورو یې یو څه راپورته کېږي. له تندي یې وځي او له ټولو کایناتو سره یو ځای کېږي. همغه د لوښې له اوبو سره د څاڅکي یو ځای کېدو ته ورته یوه پېښه وربانديې شوې وه.

دا هر څه چې چوپ شول، غبرونه ورک شول، داسې ښکارېده، لکه یو سړی چې له یوه په زړه پورې خوبه له سردردۍ سره یو ځای را پاڅېږي. یو څه خپه شوه، ځان ته یې وکتل، و یې لیدل لا هم یو ځان لري، چې باید ورک شي او په کایناتو کې محوه شي. د آلبرټو لیکنې یې همداسې

تیت سر لوستې وې، ورمېږې یې درد کاوه، خو پوهېده، چې نه هېرېدونکي شی یې ازمویلي دي.

پورته شوه، ځان یې سمبال کړ، پاڼې یې سورې کړې، هغه یې له نورو درسونو او پاڼو سره یو ځای کېښودې، بیا ولاړه په بڼ کې وګرځېده.

مرغانو خپلې سندرې ویلې، غړونه یې لوړ وو، تا به ویل نړۍ نوې پیدا شوې ده. د ستر چنار پاڼې پیکه وې تا به ویل ستر خالق یې تر اوسه د رنګولو کار پوره نه دی خلاص کړی.

سوفي په رښتیا باور کولای شو، چې هر څه، یو ډول ملکوتي (زه) دي؟ په دې باوري کېدلای شو، چې وجود یې د اور یوه سپرغۍ ده؟ که داسې وي نو هغه په حقیقت کې یو ملکوتي موجود دی.

# پستي کارتونه

## ...ځان سخت سانسور کوم...

څو ورځې وتلې وې، خو د فلسفې د استاد او خطونو هیڅ درک نه و. سبا پنجشنبه وه. د مې ۱۷مه د ناروې د خپلواکۍ له ملي ورځې سره برابره وه. په ۱۸مه نېټه ښوونځی تړل کېده. نن له یووانا سره یو ځای له ښوونځي ووته، پر لاره وه، یووانا ورته وویل، غواړې ځنګله ته ولاړ شو او چکر ووهو؟

د سوفي غبرګون هومره ښه نه و، ځکه نه یې غوښتل چې د اوږدې مودې لپاره له کوره لرې وي، خو بیا یې هم وویل:

- سمه ده ولې به نه ځو؟!

څو ساعته وروسته، یووانا د سوفي د کور په دروازه کې ولاړه وه. ستر بکس یې په شا کړی و. سوفي هم خپل بکس ور واخیست، وړه کېږدۍ یې هم لرله. دواړو د خوب کالي. جمپرونه او لاسي څراغونه هم ورسره اخیستي وو. د اړتیا وړ خوراکي توکي او له اوبو ډک ترموزونه هم ورسره وو.

د سوفي مور د پنځو بجو په شاوخوا کې کور ته راغله. لږ هسکې تیټې خبرې یې وکړې، پوښتنې یې وکړې، ویل یې چېرته ځئ؟ په کوم ځای کې کېږدۍ دروئ؟ ولې ځئ؟

دوی وویل، چې غواړي په چرګ د مشهورې تورې تپې سر ته وخېژي. ښایي بخت یاري ورسره وکړي او سبا د چرګانو ډول ډول بانګونه هم واوري.

سوفي یوه بله موخه لرله، هغه دا چې د قومندان جونګړه له دې تپې ډېره لرې نه وه، سوفي غوښتل یو ځل هلته ورشي، خو دا ځل یې جرات نه درلود او زړه یې نه و، چې په یوازې ځان سر ور ښکاره کړي.

دوې نجونې د سوفي د باغ له دروازې ووتې، دوی لنډې لنډې کېږې وړې لارې ووهلې. له او يوې بلې خوا وغړېدې. سوفي خوشاله وه، چې لږ يې فلسفي فکرونه هضم کړي دي.

نږدې اته بجې وې، چې د تپې پر سر يې پر يوه هواره سيمه خپله کېږدی ودروله. د خوب څېزونه يې هوار کړل او د شپې تياری يې و نيو. پاخه کړي ساندويچ يې چې وخوړل، سوفي له يووانا پوښتنه وکړه، د قومندان د جونګړې نوم دې اورېدلی دی؟

- د قومندان جونګړه؟

- دلته په ځنګل کې نږدې يوه جونګړه ده... د کوچني سيندګي په څنډه ده. يو وخت يوه عجيب انسان هلته ژوند کاوه، د پوځ قومندان و، نو ځکه دغه جونګړې ته هم، د قومندان جونګړه وايي.

- اوس هم هلته څوک ژوند کوي؟

- غواړې ورشو، له نږدې يې وګورو؟

- چېرته ده؟

سوفي د ونو منځ د ګوټې په اشاره ور وښود.

يووانا يې د ليدلو دومره ليوالتيا نه لرله، خو روان شول. لمر د آسمان په لمن کې و.

لومړی د چنار د لوړو ونو په منځ کې تېرې شوې. لږ مزل يې نه و کړی، چې ګڼ ځنګله ته ورسېدې. د ونو او ښاخونو په منځ کې را حصارې شوې. ورو ورو تر سرکه ورسېدې. دا به همدا لاره وه، چې سوفي تېره يکشنبې پر هغه راغلې وه؟

بايد دا همغه لار وي. د پانو او ونو په منځ کې يو څه بربښېدل، يووانا ته يې ووېل، جونګړه هغه ده.

څو شيبې وروسته د اوبو پر څنډه ودرېدل، سوفي د اوبو پورې غاړې ولاړې جونګړې ته وکتل. ټولې کړکۍ او دروازې تړلې وې. سور کور بل

ډول ورتـه ښـکارېده، هـر څـه بـه يـې يووانـا تـه حيرانـوونکي وو. جـونګړه داسې ښکارېده لکه کلونه چې هلته چا سر نه وي ور ښکاره کړی.

يووانا سوفي ته مخ ور واړاوه:

- په اوبو کې ګډ شو؟
- نه ګلې! به کښتۍ کې څو

پاروېي، کښتۍ يې يووانا ته ور وښوده، همغه پخوانۍ وه.

- ګوره سوفي ته لکه چې مخکې هم دلته راغلې يې؟

سـوفي يـې د نـه پـه مانـا سر وښـوراوه. څکـه کـه يـې هـو ويـلي وای، نـو سـوفي تـه سـتونزې ډېرېـدې. بيـا بـه مجبـوره وه د مخکينـي سـفر تولـه کيسـه ورتـه وکـړي. وروسـته هـم اړ وه، د آلبرتـو کنـاکس کيسـه هـم ورتـه وکـړي، چـې څنګه له هغه د فلسفې درسونه وايي.

د اوبـو پـر سر يـې پـه کښـتۍ کـې پـارو واهـه، همداسـې روان و، تـوکې او خنـداګانې يـې کـولې. د اوبـو پـورې غـاړې تـه چـې ورسـېدل، د سـوفي پـه يـاد و، چې بايد کښتۍ له اوبو پوره پوره را وباسي.

د جـونګړې وره تـه ورغلـل. څـوک پـه جـونګړه کـې نـه ښـکارېدل. سـوفي د وره لاستی تاو کړ.

- قلف دی؟ تا به هيله لرله چې خلاص وي؟

سوفي وويل:

- ښايي، کلياني يې پيدا کړی شو

د مانۍ د ډبرو چولې يې وکتلې.

يووانا څو شيبې وروسته وويل:

- او نجلۍ راځه چې بېرته خپلې جونګړې ته ولاړې شو

ناڅاپه سوفي چيغه کړه:

- ايش، ايش.. پيدا مې کړې

کيلي يې پورته و نيولـه، لکـه مـډال يـې چـې ګټلـی وي. د قلـف پـه سـوري کـې يې تاو کړه او ور خلاص شو.

دواړو نجونو لکه غواړي چې کوم جرم تر سره کړي، نرم نرم گامونه اخيستل او جونگړې ته د ننه شوې. په جونگړه کې د ننه تياره وه او هوا يې هم سړه لگېده.

يووانا وويل:

- زه خو هېڅ شی نه وينم

سوفي دا فکر هم کړی وي، له جېبه يې اورلگيت را وايست. يو خلی يې ولگاوه. و يې ليدل چې په جونگړه کې څوک نشته دي. خلی گل شو. سوفي د اورلگيت بل خلی ولگاوه. دا ځل يې نو سترگې پر شمع ولگېدې، شمع يې په دربيم اورلگيت روښانه کړه. کوټې دومره نور پيدا کړ، چې شاوخوا يې روښانه کوله.

سوفي وويل:

- حيراني نه ده؟ دومره کوچنی شمع کولای شي دومره ډېره فضا روښانه کړي.

يووانا يې سر وښوراوه. سوفي يې خبرو ته ادامه ورکړه.

- خو دا رڼا چېرته په تيارو کې ورکېږي. تياره حقيقي وجود نه لري، خو چېرته چې رڼا نه وي هغه ځای تيار ښکاري.

د يووانا بدن په رېږدېدا شو

- يالا کړه څه چې ځو، زه وېرېږم
- اول په هېنداره کې ځان ته گورو

سوفي برنزي هېنداره چې لا هم پر خپل پخواني ځای ځوړنده وه، يووانا ته ور وښوده.

يووانا وويل:

- هېنداره خو ډېره ښکلې ښکاري
- خو پام دې وي، جادويي ده
- دا هېنداره، دا هېنداره، ووايه چې تر ټولو ښکلې ده ولې وايې چې جادويي ده.

تـه کـولای شې دغـه هېنداري تـه تـوکې نـه کـوم، یووانـا، جـدي یـم. تـه کـولای شې دغـه هېنداري تـه وګورې او هغه بل لوری یې ووینې.

تـا خـو وویـل، چـې زه دلتـه بـل ځـل نـه یـم راغلـې، نـو غـواړې مـا وویروې؟

سوفي ددې خبرې لپاره ځواب نه درلود.

- وبښه

ناڅاپه یووانا د کوټې پر غولي یـو څـه پیـدا کـړل. کـوچنی ډبلـی و، لـه ځمکـې یې پورته کړ. یووانا وویل:

- پست کارتونه

د سوفي خوله وازه پاتې شوه.

- لاس ور نه وړې، اورې لاس ور نه وړې.

یووانـا ځـای پـر ځـای ودرېـده. لکـه لاس یـې چـې سـوی وي، کارتونـه یـې پر ځمکه ګزار کـړل. کارتونـه پـر غـولي وشـنل شـول. څـو شـېبې وروسـته پـه خندا شوه.

- دا خو یوازې کارتونه دي

یووانـا کېناسـته، د کـارتونو پـه ټولولـو یـې پیـل وکـړ، څـو شـېبې وروسـته سـوفي هم ورغله د هغه څنګ ته کېناسته.

- لبنان.... لبنان.... لبنان

یووانا پوه شوه، چې ټول کارتونه د لبنان مهر او ټاپې لري.

سوفي وویل: زه پوهېږم

یووانا پلټرې ووهلې، کږه شوه، د سوفي سترګو ته یې مستقیم وکتل.

- نو ته یو ځل مخکې دلته راغلې یې؟

- هو ګومان کوم راغلې یم

فکـر یـې وکـړ. بایـد اقـرار وکـړي چـې مخکـې دلتـه راغلـې ده، خـو اړ نـه وه، چـې پـه دې وروسـتیو کـې ورتـه پېښـې شـوې ټـولې کیسـې خپلـې ملګـرې تـهووایي.

- و مې نه غوښتل چې دلته تر راتګ مخکې درته ووایم

یووانا د کارتونو لوستل پیل کړل.

- ټول د هیلده مولرکناګ په نامه یوه کس ته دي

سوفي لا کارتونو ته لاس نه و وروړی.

- پته یې کوم ځای دی؟

- هیلده مولرکناګ، د آلبرتو کناکس په لاس، لیله سن، ناروې

سوفي اورد اسویلی و ایست. وېرېدلې وه، که اوس په کارتونو کې لیکلي وي، چې د سوفي اموندسن په لاس. را نېردې شوه، چې کارتونه نېږدې ووینې.

- د اپریل ۲۸مه... د مې ۴مه... د مې ۶مه.. د مې ۹مه.. ځو ورځې مخکې را لیږل شوي دي.

- خو یو بل عجیب څه هم پکې شته دي. ټول پوستونه د ناروې مهرونه لري. دې ته ګوره، د ملګرو ملتونو سرتیري.. دا پستي ټکټونه هم د ناروې دي.

- ګومان کوم دا عادي خبره ده، دوی باید بې طرفه وي، نو ځکه به دا ددوی ځانګړې پست خونه وي.

- نو دا پست دلته څنګه را رسوي؟

- ولې څه ډول، په پوځي الوتکه کې یې را رسوي.

سوفي شمعداني پر ځمکه کېښوده. دواړو نجونو د کارتونو لوستل پیل کړل. یووانا هغه د تاریخ له مخې سر پر سر کړل او ددې کارت لوستل یې پیل کړل.

گرانې هیلده! هره ورځ غواړم کور ته درشم او لیله سن ته د درتګ ورځې شمارم. تاکل شوې چې د اوړي د لومړۍ ورځې پر مازیګري د کیوک هوایي ډګر ته ولاړ شم. زړه مې غوښتل چې د پنځلس کلنې په جشن کې دې هلته وم، خو پوهېږې چې د نظام تر امر لاندې یم. ددې کار د جبران لپاره ډېره هڅه کوم،

هر څه به په هغه ډالۍ کې جبران کړم، چې ستا د کليزې په وياړ مې درته جوړه کړې ده.

د هغه چا په ډېره، ډېره مينه! له خپلې لور سره بې کچې مينه لري او تل يې په فکرونو کې ډوب دی.

نوټ: ددغه کارت پر مخ مې زموږ ګډ ملګري ته يو څه ليکلي دي. باور لرم ته به پوهېږې هيلده. خو اوس بايد مرموز وم، خو وروسته به پوه شې چې ولې داسې کوم.

سوفي بل کارت پورته کړ.

ګرانې هيلده! دلته زموږ ژوند نن تر سبا پورې رسول دي. يوازينی شی چې د لبنان په اړه به زما په ذهن کې تر ډېره وي، هغه دلته انتظار ايستل دي. خو هر څه مې چې په وس پوره و، کوم يې. غواړم د پنځلس کلنۍ جشن دې ډېر ښکلی تېر سره شي. اوس تر دې ډېر څه نه شم ويلی. ځان ډېر سانسور کوم!

پلار دې در نه ځار شه!

د دواړو نجونو د زړه درزا تېزه شوې وه، تېزه، تېزه سا يې اخيسته. يوې هم څه نه ويل. يوازې کارتونه يې لوستل:

ښکلې لورکۍ! غواړم د زړه خبرې مې د سپينې کوترې په مرسته در ولېږم. خو دلته په لبنان کې سپينه کوتره نه شم پيدا کولای. دغه جګړه ځپلی هېواد په رښتيا هم د سولې سپينو کوترو ته اړتيا لري. په دې هيله چې ملګري ملتونه يوه ورځ په رښتيا وکړای شي په ټوله نړۍ کې سوله راولي.

نوټ: د کليزې ډالۍ به دې داسې څه وي چې نور هم ګټه ترې واخيستلای شي. کور ته چې درغلم په اړه به يې خبرې کوو. ته پوهېږې چې زه څه وايم؟

د هغه ځا په مینه، چې د دواړو د محبت او فکر کولو په اړه ډېر وخت لري!

شپږ کارتونه یې ولوستل یو بل پاتې و. په هغه کې هم داسې راغلي وو:

گرانې هیلده!

ستا د زوکړې دې راز ساتنې زما زړه داسې پړسولی چې چاودلو ته نږدې دی. هره ورځ څو ځله هڅه وکړم، چې کورته ټلیفون وکړم او هر څه درته ووایم، خو بیا مې خپله مخه ونیسم. زما راز داسې یو څه دی، چې پر له پسې وده کوي او ستریږي. پوهېږې یو وخت چې یو شی ډېر ستر شي ساتل یې آسانه کار نه وي. پلار دې در ځار شه!

نوټ: یوه ورځ به د سوفي په نامه له یوې نجلۍ سره معرفي شې. ددې لپاره چې تر لیدلو مخکې له یو بل سره لږ آشنا شئ، داسې کارتونه یو یو هغې ته هم لېږم. گومان کوم چې ډېره ژر به په دې راز پوه شي. سوفي د یووانا په نامه ملگرې لري، هغه به وکړای شي له دغه رازه پرده پورته کړي.

یووانا او سوفي کارت تر پایه ولوست. چوپ او بې حرکته پاتې شوې، یوه او بل ته یې غټ غټ وکتل. وېرې اخیستې وې. یووانا د سوفي لاس کلک ونیو.

- زه وېرېږم

- زه هم

- د وروستي کارت د پستي مهر تاریخ څو دی؟

سوفي بیا کارت ته وکتل

- د مې ۱٦، اوه همدا نن ورځ

یووانا په غوسه چیغې وهلې

- نه نن ورځ نه دی ته سم وگوره

پستي مهر یې ښه په خیر خیر وکاته

- تېروتنه نه ده ۹۰/۰۵/۱٦، همدا نېټه ده

- هیڅ امکان نه لري، په دې هم نه پوهېږو چې دا چا لیکلي دي.
داسې یو څوک هرو مرو شته دی، چې دواړه پېژني. نو په دې څه
پوهېده چې نن دواړه دلته راځو؟

یووانا ډېره وېربدلې وه. خو د سوفي لپاره د هیلده کیسه دومره نوې نه وه.
- زما په فکر دا موضوع له برنزي آینې سره بې اړیکې نه ده

یووانا نور خیالونه پیل کړل.
- هو ښايي. کېدای شي لیکونه همدا چې په لبنان کې لیکل کېږي،
لکه کوتره الوځي او راځي.
- ته خبره راته واضح کولای شې؟
- نه

سوفي پورته شوه، شمع یې دوو انځورونو ته ور نږدې کړه. یووانا یې
څنګ ته ورغله او پر دیوال ځوړندو انځورونو ته یې وکتل.
- بارکلي او برکلي. دا نو څه مانا؟
- زه څه پوهېږم

شمع تقریباً تر پایه سوې وه.
یووانا وویل:
- زر شه چې ځو
- باید هنداره هم له ځان سره یوسو

سوفي پورته شوه، ځان یې ځوړندې آینې ته ور اوږد کړ. یووانا هڅه وکړه
چې له دې کاره یې را وګرځوي، خو سوفي خپله خبره میره ګڼله.
له جونګړې چې ووتل، شاوخوا تیاره وه. د مې د میاشتې په شپو کې هوا
ډېره نه تیاره کېږي، بوټو او ځېزونه په قطبي سیمو کې په سترګو لیدل
کېږي. په اوبو کې د آسمان انځور ښکارېده، نجونې په فکر کې ډوبې په
پارو وهلو د اوبو تر بلې غاړې ورسېدې.
کېږدی ته د را ګرځېدو پر مهال یوې هم خبرې نه کولې. خو دواړه
پوهېدې چې یوه تر بلې ډېره د شوو پېښو په اړه په فکرونو کې ډوبه وه،

چې نن يې ليدلي وو. د پښو له مخې به يې سره مرغان والوتل، ورو ورو موجوداتو ډول ډول غږونه ايستل، خو دوی همداسې د سکوت عالم ته ننوتې وې او خپله لار يې نيولې وه.

همدا چې کېږدۍ ته ورسېدې، زر په خپلو خايونو کې ننوتې. يووانا و نه منله چې سوفي دې هېنداره د ننه کېږدۍ ته راوړي. دواړو و منله چې له آينې ډارېږي، سوفي وويل، هېنداره له کېږدۍ بهر ده لا هم ويره لري.

دوی دواړو کارتونونه هم ورسره راوړي وو. هغه يې د خپل بکس په مخکيني جېب کې کېښودل.

سهار وختي له خوبه پاڅېدې. لومړۍ سوفي پاڅېده. بوټونه يې پښو کړل او له کېږدۍ ووته. هېنداره لا هم د شنو بوټو پر سر اېښې وه. شبنم وريانډې پروت و. سوفي شبنم پخپل ګنجي ترې پاک کړ. په هېنداره کې يې خپل انځورته وکتل. داسې و لکه په يوه وخت کې چې هم پورته ګوري هم لاندې. له نيکه مرغه نن سهار کوم شی له لبنانه نه و رالېږل شوي.

تر خپلې کېږدۍ شاوخوا وګرځېده، د غونډۍ په هواره برخه کېناسته. د ټولو مرغانو غږونه راتلل، خو د چرګ غږ نه اورېدل کېده. ټول مرغان داسې چغېدل ته به وايې ښه بېړه لري او روان دي.

دواړو نجونو يو، يو بل ګنجې هم واغوست، له کېږدۍ ووتې او سهارنۍ يې وخوړه. په همدې وخت کې يې خبره، د قومندان تر جونګړې او پستې کارتونو ورسېده.

له سهارنۍ وروسته يې کېږدۍ ټوله کړه او د کور په لور روانې شوې. سوفي لويه هېنداره په تخرګ کې نيولې وه. کله کله به ودرېده او لاس به يې بدل کړ، يووانا لاس نه ور ور. ښار ته چې نږدې شول، د ډزو غږونه يې واورېدل. سوفي ته د هيلده د پلار خبره ور ياده شوه، چې په لبنان کې يې د جګړې په اړه کړې وه. له ځان سره يې فکر وکړ، چې ډېره نېکمرغه

ده، په یوه آرام او سوکاله هېواد کې یې سترګې نړۍ ته غړولې دي. دا وزې د خپلواکۍ د ورځې په ویاړ وې.

سوفي له بووانا وغوښتل چې ورسره ولاړه شي او تود ککوي چای ورسره وڅښي. د سوفي مور هڅه کوله پوه شي چې دوی چېرته وې. هغې غوښتل پوه شي چې هېنداره یې له کومه ځایه راوړې ده. سوفي وویل، هېنداره یې د قومندان په جونګړه کې پیدا کړې ده. مور یې وویل، کلونه کېږي هلته چا ژوند نه دی کړی، څوک نه ورځي.

بووانا چې ولاړه، سوفي خپل سره کالي واغوستل. د رخصتۍ پاتې ورځ د نورو په څېر عادي تېره شوه. په همدې شپه په تلویزیون کې یو خبر و. په هغه کې راغلي وو، چې د ملګرو ملتونو په سرتېرو کې د ناروې عسکرو په لبنان کې خپله خپلواکي څه ډول نمانځلې ده. سوفي د تلویزیون له صفحې هېڅ سترګې نه اړولې. ښکه کېدای شوای هلته یو کس د هیلده پلار وي. دې غوښتل و یې پېژني. د مې په اوولسمه د سوفي وروستی کار دا و، چې هېنداره یې د خپلې کوټې پر دیوال را ځوړنده کړه. پر سبا یې نوی قهوه یي پاکټ په پټنځي کې ایښودل شوی و. له خنډ پرته یې د هغه سر خلاص کړ او په لوستلو یې پیل وکړ.

# دوه فرهنگونه

**...له سرګردانۍ د مخنيوي يوازينۍ لار په لايتناهي فضا کې ده...**

ګرانې سوفي!

نور څه نه دي پاتې، چې دواړه يو بل ووينو. پوهېدم چې بيا جونګړې ته راځې، نو ځکه مې د هيلده د پلار ټول ليکونه هلته درته پرېښودل، ځکه هغه ته يې د رسولو يوازينۍ لار همدا وه. تشويش مه کوه، له نن د جون تر پنځلسمې ډېر وخت پاتې دی. تر هغه پورې ډېرې پېښې کېدلای شي.

ما مخکې هم ياده کړه، چې د هلنيسم د وخت، فيلسوفانو، د مخکنيو حکيمانو فکرونه له سره را ژوندي کړل. يوه ډله خلک په دې هڅه کې وو، چې مخکني فيلسوفان او پوهان د پيغمبرانو په کتار کې راولي. په دې کې څه نه و پاتې، چې پلوتينوس راپاڅي او افلاطون د بشريت ژغورونکی و بولي.

خو پوهېږې، په هغه دوره کې چې زمونږ تر څېړنې لاندې ده، يو بل ژغورونکی نړۍ ته راغی. مونږ په دې غږېږو چې هغه څنګه د يونان او روم پر ځمکو ظهور وکړ. زما موخه عيسی(ع) دی. په دې برخه کې به دا درته ووايم، چې مسيحيت څنګه ورو ورو د يونان او روم پر ځمکه خور شو، لکه د هيلده نړۍ چې ورو ورو ستا نړۍ ته لار پيدا کوي.

عيسی(ع) يهودی و. يهوديان په سامي ژبې او فرهنګ پورې اړه لري. يونانيان او روميان به په هندو اروپايي ژبو او فرهنګ پورې اړه لري. اروپايي تمدن په دواړو تمدنونو کې رېښه لري. له همدې امله بايد لومړی ددواړو فرهنګونو جرړې وڅېړو، وروسته به په دې اړه خبرې وکړو، چې څنګه مسيحي فرهنګ د يونان او روم پر فرهنګونو خپل نفوذ خور کړ.

**هند او اروپايان**

له هند او اروپايانو مو موخه، ټول هغه ملتونه دي چې په هندو اروپايي ژبو خبرې کوي. دا برخه ټول اروپايي ملتونه رانغاړي. استثنا هم شته ده، هغه ملتونه چې د فينو - ايغوری[1] ډلې په يوه ژبه خبرې کوي لکه: لاپان، فنلنډيان، استونيان او هنګريان. د باسک ژبې ويونکي هم په دې ډله کې راځي. ددې تر څنګ ډېری هندي او آريايي ژبې هم د هندو اروپايي ژبو په کتار کې راځي.

نږدې ۴۰۰۰ کاله مخکې، هندو اروپايي قبيلو د خزر سيند او تور سيند په شاوخوا کې ژوند کاوه. دوی له همدې ځايه ډله ډله، په جنوب ختيځ کې په آريانا او هند کې مېشت شول. همداسې جنوب غربي سيمو کې په يونان، ايټاليه او هسپانيه کې ځای پر ځای شول. لوېديځ لور ته هم وخوځېدل، د مرکزي اروپا له لرې پرتو سيمو، په فرانسه او برېتانيا کې مېشت شول. په شمال غرب کې سکانډينويا ته ولاړل. د شمال له لارې ختيځې اروپا ته وکوچېدل او د روسيې په پراخو ځمکو کې مېشت شول. دغه ډلې به چې هر ځای ته ولاړې خپل فرهنګ يې ددوی له فرهنګونو سره يو ځای کاوه. ددې تر څنګ هندو اروپايي ژبو او دينونو د تاريخ په اوږدو کې ښکاره او قوي رول درلودلای دی.

ويدي[2] سرودونه يا د هند مقدس متون او د لرغوني يونان فلسفه، که لرې ولاړ نه شو، زموږ د ناروې د سنوری ستورلوسون[3] اسطورې، هر څه په سره نږدې ژبو ليکل شوي دي. دا نه چې دلته يوازې ژبې سره خپلوانې وې، بلکې خپلوانو ژبو يوه خپلوان او نږدې فرهنګ ته هم لاره لرله. له همدې امله د هندو اروپايي په نامه د يوه فرهنګ په اړه خبرې کوم.

---

[1] Finno-Ufrian

[2] Veda

[3] Sanorin Sturluson (۱۱۷۸- ۱۲٤۱) کې د آيسلند مشهور تاريخ ليکوال او په منځنيو پېړيو (قرون وسطا) کې ددغه هېواد د اسطوروي ادب مشهور ستوری دی.

هغه څه چې په هندو اروپايي فرهنګ يې ژور اغيز پرې ايښی دی، پر متعددو يا ډېرو خدايانو ددوی باور دی. دوی ته څو خدايي مشرب[1] وايي. د هندو اروپايي فرهنګ اړوند څمکو او خلکو کې ددغو خدايانو نومونه او همدا ديني اصطلاحات موجود دي، چې څو بېلګې يې دلته راوړو.

لرغونو هنديانو ديوس[2] د آسماني خدای په توګه لمانځه. دغه کلمه په سانسکريت کې د آسمان، ورځې او جنت په مانا ده. دغه خدای يې په يونان کې زيوس، په لاتين کې ژوپيتر (iov-pater، د جنت پلار) باله. په لرغوني شمالي اروپا کې يې تير نوم وربانددې ايښی و. اوس که ورته وګورو، ديوس، زيوس، ژو او تير د يوې کلمې د تلفظ بېلابېلې بڼې دي، چې تقريبا سره ورته دي خو د وخت په تېرېدو سره بدلې شوې دي.

په ښوونځي کې به دې لوستي وي، چې لرغونو وايکينګانو پر يوه مشهور خدای اسر[3] باور درلود. نورې کلمې چې د ټولو هندو اروپايي فرهنګونو او ژبو په منځ کې يې پيدا کولای شو هم شته دي. په سانسکريت، د لرغوني هند په کلاسيکه ژبه کې، خدايانو ته اسورا وايي، په آرياني ژبو کې ورته ديوه، وايي، په لاتين کې ديوس او په لرغوني نورس کې تيور[4] ورته وايي.

د وايکينګانو په وخت کې خلکو د بارداری پر خدايانو لکه (نيورد، فريور او فريبا) باور درلود. دغه خدايانو ته يې په ټوليزه توګه وانر کلمه کاروله. دغه کلمه د ونوس له ريښې راوتلې ده، چې د باداری د الهې په مانا ده. سانسکريت بيا د (وانی) کلمه لري، چې د خپلوۍ او ميل په مانا ده.

---

[1] Polythism
[2] Dayaus
[3] Aser
[4] Tivurr

د هندو اروپايي اسطورو په منځ کې ستر ورته والي ليدلای شو. د نورس د خدايانو په اړه د سنوري کيسې، سړي ته هغه اسطورې يادوې چې په لرغوني هند کې ۲ يا درې زره کاله مخکې موجودې وې. يوه شي ته دې پام وي، چې د سنوري په کيسو کې چاپېريال د شمالي اروپا دی، خو د هند په اسطورو کې د هند د چاپېريال کيسې راغلي دي، خو له دې ټولو سره سره دا کيسې يو شريک اصل يا سرچينه لري. د اصلي سرچينې خبره مې ځکه وکړه چې په ټولو دغو کيسو او اسطورو کې له ديوانو سره د خدايانو جنګونه، د تلپاتې ژوند په دارو درمل پسې ګرځېدل او نور شريک شيان تر سترګو کېږي.

د هندو اروپايي خلکو د تفکراتو په بڼه کې هم ښکاره ورته والي پيدا کولای شو. يو ښکاره ورته والی ددوی په نړۍ ليد کې دی. دوی نړۍ ته د يوې ننداري په سترګه ګوري، چې تل د نيکۍ او بدۍ قوتونه پکې له يو بل سره په کشمکش او جګړه کې دي. هندو-اروپايانو په همدې لړ کې تل هڅه کړې وړاندوينه وکړي، چې د خير او شر ترمنځ دغه جګړه کوم لوري ته روانه ده.

يو څه ته مو بايد پام وي، چې د هندو-اروپايي فرهنګ په منځ کې د يوناني فلسفي پيدايښت کومه تصادفي خبره نه ده. يوناني، هندي او د شمالي اروپا اسطورې ټول پر فلسفي نړۍ ليد يا (نظريه پالنې[1]) باوري دي.

هندو-اروپايانو په تاريخ کې د ننه د بصيرت پلټنه کوله. آن کولای شو، د هندو-اروپايي فرهنګ په نړۍ کې، د بصيرت يا پېژاند لپاره ځانګړی ويی پيدا کړو. په سانسکريت کې دغه ويی (ويديا) دی، چې د يوناني ژبې (ايده آ) ته ورته کلمه ده. دا کلمه په لاتين کې ويديو ده. په کارتوني فلمونو کې به دې ليدلي وي، چې د وودي ووپکر، ذهن ته کوم نوی فکر پيدا شي، نو په سر پورې څراغ يې روښانه کېږي او مړ کېږي. په انګليسي-

[1] speculative

ژبه کې د پوه او پوهې لپاره wise, wisdom کلمې لرو. په آلماني کې wissen او دغه کلمه په لاتيني ژبه کې viten ده. دا ټولې کلمې د هندي له ويديا او د يوناني آيده آی او د لاتين له ويديو سره ورته دي.

که همداسې مخ ته ولاړ شو، پوهېږو چې د ليد قوه د هند-اروپايانو لپاره تر ټولو ارزښتمن حس و. د هنديانو، يونانيانو، ايرانيانو او جرمنانو ادبيات له دغو بصيرتونو او د کايناتو په اړه له تصورونو او خيالونو ډک دي. د هند-اروپايي فرهنګ بله شريکه ځانګړنه دا ده، چې نقاشي او د خدايانو مجسمه تورنه پکې دود ده. دوی همدا راز اسطوروي صحنې يا په ډبرو کې تورلې دي او يايې هم رسامي کړې دي.

بله خبره دا چې هند-اروپايانو پر دوره يې تاريخ باور درلود. دوی به ويل تاريخ لکه د کال فصلونه دورې وهي او بېرته راګرځي. ددوی په وينا تاريخ پيل او پای نه لري، بلکې ډول ډول تمدنونونه د کړنو، اخيستو او عکس العملونو په اوږدو کې، لوړې ژورې ويني.

د شرق دوه ستر مذهبونه، هندويزم او بوديزم دواړه په اصل کې هند-اروپايي مذهبونه دي. دا دواړه له يوناني فلسفې سره اړيکه لري، د هندويزم او بوديزم تر منځ ډېر ورته والي شته دي، همدا راز دغه دواړه بيا له يوناني فلسفې سره ګڼ شريک ټکي لري. ان د بوديزم ستره برخه له يوناني فلسفې مالامال ده.

د هندو او بودا په مذهب کې باور پر دې دی، چې خدای په هر څه کې حضور لري. يا په هر څه کې خدای دی. دې ته همغه (وحدت الوجود) ويلای شو. دوی به ويل چې بندګان کولای شي يا ددين له لارې انسانان کولای شي له خدای سره يو شي. پلوتينوس دې په ياد دی سوفي؟ ښايي نه دي وي هېر شوی، زه د بوديزم په اړه خبرې کوم. دوی به ويل له خدای سره د يو ځای کېدو لپاره ژور فکر، قوي مکاشفې او د زړه له تله د رازونو شريکول په کار دي. له همدې امله په ختيځ کې ګوښه ناستي

کېدل او بې حرکته پاتې کېدل، د دینـي کرامـاتو او ښـېگڼو پـه دلـه کـې راځي.
په لرغوني یونـان کـې هـم، دا بـاور ډېـر و، چـې د روح د پـاکۍ او قـوت لپاره بایـد زهـد غـوره شي یـا مـذهبي انـزوا اختیـار شي. همداسـې د اروپـا د تیاره پېړیـو گڼ شریـک اړخونـه د یونـان او روم پـه روحـاني تگـلارو او طریقـو کـې پیـدا کـولای شـو. د روح مسـخه کېـدل یـا څـو څـو ځلـه زېږېـدل او بېرتـه را ژونـدي کېـدل هـم تـر ډېـره د هنـد-اروپـایي فرهنـگ گـډه ځانگړنـه ده. لـه شـاوخوا ۲۵۰۰ کلونـو راهیسـې د هنـدوانو لپـاره د ژونـد تـر ټولـو سـتر هـدف دا دی، چـې ځانونـه ددویـم تولـد لـه دوره خـلاص کـړي. افلاطـون هـم د روح پر تناسخ باوري و.

**سامیان**

سـوفي! اوس بـه د سـامیانو پـه لـور ور شـو. دوی بالکـل پـه بېلـه ژبـه او فرهنـگ پـورې اړه لـري. سـامیان د عربسـتان لـه څمکـو پورتـه شـول، خـواره شـول، د نـړۍ بېلـو برخـو تـه وکوچېـدل. یهودیـانو نـږدې ۲۰۰۰ کالـه لـه خپلـه هېـواده لـرې ژونـد وکـړ. سـامي دیـن او تـاریخ د مسـیحي لیـدلوري او فکـر پـر مـځ د نړۍ لرو پرتو سیمو تـه خـور شـو. اسـلام هـم د سـامي فرهنـگ پـه غوړولـو کـې خپل قوي رول ادا کړی دی.

د شرق درې واړه مذهبونـه، یهودیـت، مسـیحیت او اسـلام سـامي شـالید لـري. د مسلمانانو مقـدس کتـاب قـرآن عظیـم الشـان د سـامي ژبـو د کـورنۍ پـه غـړې ژبه لیکل شوی دی.

مسـیحیت تـه چـې راځـو کـار ډېـر پېچلـی کېـږي. مسـیحیت هـم سـامي شـالید لري. خـو کتـاب پـه یونـاني ژبـه لیکـل شـوی دی. کلـه چـې (نـوې ژمنـه) لیکـل کېږي، نو یونـاني، لاتـین او همـدرازا هلنیسـتي فلسـفې پـر هغـه خپـل پـراخ اغیز پرې ایښی دی.

هنـدو-اروپایـانو پـر بېلـو خـدایانو بـاور درلـود، خـو د سـامي مـذهبونو سـتره ځانگړنـه دا ده، چـې دوی پـه پرلـه پسـې توگـه پـر یـوه خـدای بـاور درلـود.

يهوديت، مسيحيت او اسلام په اصل کې د خداى پر وحدانيت او يووالي باور لري.

د تاريخ په اړه د ساميانو ليدلوری خطي دی. په بله خبره د ساميانو په نظر تاريخ اوږد او روان خط دی. خداى چې نړۍ پيدا کړه د تاريخ پيل دی، بوه ورځ نړۍ پاى ته رسيږي، دا د قيامت ورځ ده، په دې وخت کې به خداى(ج) د ژونديو تر منځ د حساب ميزان دروي.

د دريو واړو شرقي دينونو رول ډېر مهم دی. د شرقي دينونو پيروان وايي، خداى په تاريخ کې مداخله کوي، ددوی په باور، هر څه د خداى په لاس کې دي او نړۍ د هغه تر فرمان لاندې ده. که وغواړي هر څوک ابراهيم(ع) غونډې به سره اور کې ساتلى شي. همداسې به يوه ورځ راځي چې خداى به د ځمکې له سره ټولې بدۍ ورکوي. د قيامت ورځ به راځي هر بنده به خپله، خپله پوښتنه ځوابوي او تر هغه وروسته به د خپلو کړنو په مقابل کې ښه يا بد بدل اخلي.

اورشلم ښار اوس هم د ډېرو مسلمانانو، يهوديانو او مسيحيانو لپاره مهم مذهبي مرکز دی، چې دغه مسئله د درېواړو دينونو پر ګډو اصولو او ورته والي دلالت کوي. په دغه ښار کې د يهوديانو کليساوې، د مسلمانانو ډېر جوماتونه او د عيسويانو کنيسه ګانې شته دي. له همدې امله د تأسف وړ خبره دا ده، چې دغه ښار د جګړې لامل شوی او زرګونه کسانو پر دې ښار سرونه ورکړي دي. دوی په دې هوکړې ته نه دي رسېدلي، چې څوک بايد په دغه ښار کې ژوند وکړي او اصلي حقداران يې څوک دي.

په دې هيله چې يوه ورځ ملګري ملتونه بريالي شي، اورشلم ښار ددرې واړو مذهبونو لپاره ګډ بيت المقدس وګرځوي. ددرس په دې برخه کې ډېر مخ ته نه ځم، کار به د هيلدې د پلار پر اوږو بار کړو، ته خو پوهيږې چې هغه د ملګرو ملتونو په اداره کې کار کوي. اوس هم په لبنان کې د ملګرو ملتونو ناظر دی. که غواړې چې خبره نور هم اوږده کړم، هغه هلته

ستر قومندان دی. که غواړې له کیسې سره یې په ارتباط پوه شي، نو نه وایم. ځکه نه غواړم د ډېرو شیانو په اړه تر وخت مخکې خبرې وکړم.

زما خبره دې په یاد ده؟ ما ویلي و، چې بصیرت د هندو- اروپایانو لپاره ډېر مهم و. خو د سامیانو لپاره اورېدل بیا تر ټولو مهم حس دی. دا هم تصادفي نه ده، چې د یهودیت پیغام په دې خبرو پیل کېږي (واوره اې اسرائیله!) په عتیقه دور کې وینو، چې څنګه خلکو د خدای خبرې له پیغمبرانو اورېدې. د یهودیت پیغمبر او لاربښوونکو به هم خپلې خبرې د واوره په کلمو پیلولې. په مسحیت کې هم، د خدای د کلام په اورېدلو ټینګار او تکیه کېده. په اسلام کې بیا، قرائت او په لوړ غږ لوستل هم یوه خانګړنه ده. دا د درېواړو مذهبونو ګډ مذهبي مناسک او ورته والي دي.

تر دې ور هاوخوا مو ووېل، چې هندو-اروپایانو تل د خپلو خدایانو مجسمې او شکلونه جوړول. سامیان بیا هېڅ وخت دغه کار نه کوي. په دې مذهبونو کې ددې جواز نشته چې یو تصویر دې د الوهیت په بڼه و لمانځل شي یا دې هغه ته ورته بلل شي. (عتیق عهد) وایي انسان باید د خدای انځور رسم نه کړي. دا قانون اوس هم په یهودیت او اسلام کې شته دی. په اسلام کې په ټولیزه توګه، د مجسمو او انځور دومره هر کلی نه کېږي. ځکه انسان باید د څه شي په خلق کولو کې له خدای سره سیالي و نه کړي.

خو په مسیحي کلیساوو کې بیا عیسی (ع) ته منسوب انځورونه هر ځای لیدلای شو. سوفي دا یوه وړه بېلګه ده، چې لیدلای شې، مسیحیت څومره د یونان او روم د فلسفې او فرهنګ تر اغیز لاندې و. د یونان او روسې د ارتودوکس په کلیساوو کې پر صلیب ځوړنده عیسی (ع) ته منسوبه مجسمه هم لیدلای شې.

ددغه درېیو دینونو هدف له مسخه کېدو خلاصون نه دی، بلکې هڅه یې دا ده چې انسانان له ګنا خلاص شي. تر ډېره پر وعظ، نصحیت او ددیني

متونو پر مطالعه ټینګار کوي. همداسې مکاشفه او په ځان کې ډوبېدل هم په دې درېواړو دینونو کې دود دي.

### اسرائیل

زما موخه دا نه ده، چې ددیني علومو له استاد سره دې سیالي وکړم. خو غواړم د یهودیت او مسیحیت پر تاریخ او شالید یوه چټکه کتنه وکړم.
کیسه له دې ځایه پیلېږي، چې خدای نړۍ پیدا کوي. د پیدایښت بڼه یې د عیسویانو په دیني کتاب کې لوستلای شو. وروسته بشر د خدای له فرمانه سرغړونه وکړه، جزا یې دا شوه، چې آدم او حوا یې د عدن له بڼه و ایستل، ځمکه ته یې راولېږل او ورسره جوخت مرګ هم ځمکې ته را ولېږل شو.
د خدای له امره د بشر نافرماني هغه مضمون دی، چې د یاد کتاب په هر پاڼه کې یې لوستلای شو. په همدې کتاب کې یو څه ورانډې ولاړ شو، د نوح کښتی او د توپان پیښې ته رسېږو. وروسته لولو چې خدای(ج) له ابراهیم(ع) او د هغه له قوم سره وعده وکړه. دا وعده داسې وه، چې د ابراهیم(ع) اولادونه دې د خدای(ج) امر پر ځای کړي په بدل کې به یې خدای ددوی ساتنه کوي. وروسته بیا تر میلاد نږدې ۱۲۰۰ کاله مخکې کله چې خدای (ج) په سینا غره کې پر موسی(ع) لس فرمانونه نازل کړل، دغه ژمنه یې نوې کړه. په هغه وخت کې اسرائیلو د اوږدې مودې لپاره په مصر کې د غلامۍ ژوند کړی و، خو د خدای(ج) په مرسته او برکت بېرته خپلو ځمکو ته را وګرځېدل او لوړ ژوند یې پیل کړ.
د مسیح تر ظهور نږدې ۱۰۰۰ کاله وړاندې او کلونه مخکې تر دې چې یوناني فلسفه رامنځته شي، د اسرائیلو ددرېیو پادشاهانو نومونه اورو. لومړنی شاول و، وروسته داوود(ع) او ورپسې د سلیمان(ع) نوم اورو. په دې وخت کې ټولو اسرائیلیانو په یوه واحد هېواد کې ژوند کاوه. په تېره بیا د

داوود(ع) پـه وخـت کـې يـې لـوړ ژونـد درلـود پـه سـياسي، فرهنګـي او اقتصادي لحاظ لوړ خلک وو.
پادشا به تاکل کېده، خلکو به هغه مسح کاوه. په دې توګه به يې د مسيح لقب ګاټه، چې د مسح شوي په مانا دی. خلکو به له مذهبي زاويې پادشاه ته ددوی او خدای تر منځ د اړيکې د وسيلې په توګه کتل. له همدې امله به يې کله کله د خدای د زوی خطاب ورته کاوه او هغه به يې د خدای ملک باله.
خو دې لړۍ ډېر دوام و نه کړ. د اسرائيلو قدرت مخ پر ځوړ روان شو. يو هېواد په دوو برخو ووېشل شو. شمالي ته يې اسرائيل او جنوبي برخه يهوديه[1] و بلل شوه. په ۷۲۲ م ز کې، شمالي ځمکې د آشوريانو لاس ته ولوېدې او خپل مذهبي او سياسي ارزښت يې بايلود. جنوبي ځمکو هم دومره ښه حالت نه درلود، هغه سيمې هم بابليانو په ۵۸۶ م ز کې لاندې کړې. هلته يې يو ستر معبد جوړ کړ او خلک يې له ځان سره د بنديانو په ډله کې، بابل ته بوتلل. تر ۵۳۹م ز پورې په بابل کې ددغو کسانو بند دوام وکړه، بيا يې بېرته اجازه ورکړه چې اورشلم ته ولاړ شي. دوی يې په دې وګومارل چې د ستر معبد ساتنه به کوي. خو د مسيح تر زېږېدنې مخکې هم يهوديانو د بهرني تسلط تر چتر لاندې ژوند کړی دی.
يهوديانو به تل له ځانه دا پوښتنه کوله، چې ولې، دداود(ع) پادشاهي ختمه شوه. سره له دې چې خدای(ج) ددوی د ساتنې ژمنه کړې وه. دوی دې غمېزې ته حيران وو او تل به يې دغه پوښتنه له ځان سره تکراروله. خو دلته دوی دا هېر کړي و، چې دوی هم له خدای سره د اطاعت کولو ژمنه کړې وه، دوی ورو ورو دا فکر ومانه، چې خدای(ج) دوی ته غوسه دی او دوی د نافرمانۍ له وجې داسې له دردونو او سختيو سره اخته دي.
د ۷۵۰ م ز کال پر مهال، په اسرائيلو کې هر چا د پيغمبرۍ دعوه وکړه او ويل به يې اسرائيلو ته خدای په غوسه دی، ځکه د هغه فرمان يې تر پښو

[1] Judea

لانـدې کـړی نـو لـه همـدې املـه عذابونـه وربانـدې نـازل شـوي دي. دوی بـه ویـل، چـې خـدای بـه یـوه ورځ میـزان دروي او لـه اسرائیلـو سره بـه د یـوه، یـوه کـار حسـاب کـوي. دغـه ډول خـبرو تـه د مکافـاتو او حسـاب کتـاب د ورځـې وړاندوینه وایي.

د وخـت پـه اوږدو کـې پیغمـبران راغلـل، خـبرې یـې وکـړې، وعظونـه او نصحتونه یـې وکـړل، دوی بـه ویـل، چـې خـدای(ع) خپـل یـوه ډلـه بنـدګان ښـې او دوی د داود(ع) د کــورنۍ د پادشـــاهۍ ســیوري تــه لېــږي. د داود(ع) پخواني وطن ته یې ور ګرځوي او دوی ته له خوښیو ډک ژوند ورکوي.

که په لنډه کې درته ووایم سوفي!

اسرائیلـو د داود(ع) پـه دور کـې لـه خوشـالیو ډک ژونـد درلـود. تـر هغـه وروسته یـې وضـعیت مـخ پـر خرابېـدو شـو. ددوی پیغمبرانـو بـه ویـل، چـې یـوه ورځ بـه د داود(ع) پـه کـورنۍ کـې یـو نـوی پیغمـبر راشي، دا کـس مسـیح دی. هغـه بـه خلـک لـه ګنـاه او عـذاب خـلاص کـړي، د اسرائیلـو عظمـت بـه را وګرځوي او ملکوتي بنا به جوړه کړي.

**عیسی(ع)**

ســوفي تــر اوســه راسره یــې؟ پـه دې برخـه کـې مهمـې کلمـې، ددوی پـه اصـطلاح (مسـیح د خـدای) زوی او د (خـدای ملکـوت) دي. پـه لـومړي سر کـې دې ټولـو کلمـو سیاسي مفهـوم درلـود. د عیسـی(ع) پـه وخـت کـې ډېـرو دا فکـر کـاوه چـې یـو نـوی مسـیح بـه راشي. هغـه بـه داسـې رهبر وي، چـې لـه فرهنګـي، سـیاسي او اقتصـادي لحـاظ لـه داود(ع) سره یـو ډول وي. دوی دغـه کـس مـلي ژغـورونکی بالـه. موخـه یـې تـر ې هغـه کـس و، چـې یهودیـانو د رومیـانو لـه واکمنـۍ خلاصـوي او ددوی دردونـو او غمونـو تـه د پـای ټکـی ږدي.

دا پـر خپـل ځـای داسـې خلـک هـم پـه دې وخـت کـې وو، چـې د لیـد زاویـه یـې پراخـه وه. د ۲ سـوه کالـه مخکـې پیغمبرانـو ویـلي و، چـې مسیح (ع) بـه د ټـول بشریـت ژغـورونکی وي. ددوی پـه بـاور هغـه بـه نـه یـوازې اسرائیـل د

رومیانو له ظلمه ژغورلي، بلکې تولو نړۍ به د ګناه له عذابه او ان مرګه ژغورې، د پاکۍ هیله، د خلاصون په مانا په ټوله یونانۍ نړۍ کې شته وه.
په دې وخت کې نو ژغورونکی عیسی(ع) راخې. هغه لومړنی کس نه و، چې ویل یې مسیح دی. د عیسویانو په باور، ده به هم د خدای د زوی، د خدای ملکوت او نجات کلمې کارولې. په دې توګه یې د پخوانیو پیغمبرانو د څنځیر حلقه کلکه ساتله. هغه د اورشلیم په لور روانېږي، اجازه ورکوي چې خلک یې ژغورونکی وبولي. هغه رول یې ادا کاوه چې پخوانیو پادشاهانو به پر خپل ځای کاوه، لسګونه کسانو یې اطاعت کاوه، د مراسمو په ترڅ کې یې پر تخت کیناوه، اجازه یې ورکړه چې پیروان یې مسح کړي. ویل کېږي د دې وخت را رسېدلی و، چې د خدای ملکوت راشي. خو مهم ټکی باید هېر نه کړو: عیسی(ع) د ځان او نورو مسیحانو (مسح شوو) تر منځ توپیر راوست. ده به ویل دی د جګړو سړی نه دی، جنګي قوماندان نه دی، یو بلواګر نه دی، بلکې موخه او هدف یې تر دې شیانو ډېر لوړ دی. ده به د خدای(ج) د بخښش او پاکۍ په اړه تولو ته خبرې کولې. هر څوک به چې ورته راتلل او لیدل به یې ده به ورته د رحم خبرې کولې، ویل به یې ګناهونه مو د خدای د نامه په برکت بښل شوي دي.
د ګناهونو د بښلو دا طریقه په دومره آسانه بڼه په یهودیانو کې نوې وه، هغه به خدای مهربانه باله، چې دې مسئلې هم د اسرائیلو په منځ کې نوی والی درلود. همدا مسله وه، چې ډېر ژر یې د عیسی(ع) د یهودي علماوو غبرګونه راپورته کړل. نو وضع بل ډول شوه. په دې توګه نو خلک په دې انتظار پاتې شول، چې له بوق او کرنا سره به بل مسیح راشي. یا په بله وینا له توري او اور سره به د خدای ملکوت راولي.
د (خدای ملکوت) اصطلاح د عیسی(ع) په تولو موعظو کې اورېدل کېده، خو ده به ویل د خدای ملکوت کوم بل شی نه دي، همدا چې له ګاونډي

سره مينه وکړې، زړه سوی ولرې، له کمزورو سره مرسته وکړې او د خلکو تېروتنه وبښې، همدا په ستره بڼه د خدای د ملکوتو مانا ده.

په اصطلاحي مانا کې دا ستر تغير ددې لامل شو چې کلونه کلونه دغه جنجال دوام وکړي. خلک کلونه کلونه دې ته انتظار و، چې (خدای ملکوت) راشي، نو عيسی(ع) له څو نرمو خبرو سره راغی. دوی دا هيله لرله، چې هغه کس به ستر رهبر وي، اقتصاد او سياست به مخ ته يوسي، خو ده به بل څه ويل. د هغه په وينا د خدای ملکوت دا دي چې گاونډی دې د ځان په اندازه درباندې گران وي، ان دا به يې ويل، چې دښمن هم بايد د دوست په اندازه رباندې گران وي، تر دې ور هاوخوا به يې له خلکو غوښتل، چې که چا يوه څاپېړه ووهلی، دويمې څپېړې ته مخ ور وړاندې کړی. بيا يې هم بايد وبښو. بيا، بيا يې وبښو، نه يوازې اوه ځلې بلکې اويا ځلې يې بايد وبښو.

عيسی(ع) له ياغيانو، سودخورو او سياسي ورانکارو سره ناسته ولاړه نه خوښوله. هغه به تر دې پښه وړاندې اېښوده. هغه به بيا هم ويل، هغه کس ژوند به بېکاری تېر کړی دی، د خپل پلار مال يې په لتې خوړلی دی، دولتي مالونه يې پټ کړي دي يا يې نورې تېروتنې کړې دي، خدای ته ورگرځېدای او توبه کولای شي. خدای ستر ذات دی او گناهونه يې بښلی شي.

ده به ويل، هغه گناهکاران، چې گناه يې کړې او بيا يې بښنه غوښتې، خدای ته تر هغو فريسيانو[1] غوره ده، چې هر ځای د پاکی لاپې وهي. د عيسويانو په باور، عيسی به ويل، هېڅوک دې دا نه وايي چې زه خدای بښلی يم. يعنې د يونانيانو د عقيدې پر خلاف، ځان له گناه خلاص نه شو بللی. عيسی(ع) به د لوړ غره پر کمره خلکو ته خپل اخلاقي اصولو ورښودل او په دې کې به ددې يادونه کېده، چې دا خلک ټول په گناه ککړ دي او بايد ځانونه پاک کړي. ده به ويل، چې د خدای مهرباني بې

---

[1] د يهودو له دوو سترو قبيلو د يوې نوم و، چې د عيسی (ع) په زمانه کې يې ژوند کاوه.

پایه ده. خو ددې لپاره باید خدای ته مخ ور واړوو، دعا وکړو او ښېګڼه وغواړو.
د عیسی(ع) په اړه په پوره معلومات ستا ددیني علومو استاد درکړي. هغه بېچاره ته مې سخت کار کتلی دی. هیله لرم دا درته وښودلی شي، چې عیسی(ع) څومره بې جوړې انسان و. هغه به په ډېره ځیرکه ښه خبرې کولې، د وخت ژبه یې کاروله، هغه به د خلکو په وجود کې پخوانی اختېل شوې نغمې په نوې ښه غږولې. دا د حیرانتیا خبره نه ده، چې کار یې تر صلیبه ورسېد. د هغه سپېڅلي او ښکلي پیغام د وخت د حاکمانو او شتمنو ګټې داسې په خطر کې اچولې چې دوی اړ شول هغه له خپلې لارې لرې کړي.
د سقراط په اړه مو ډېر شیان ولوستل. په دې پوه شوو، چې د خلکو په منځ کې د عقل او منطق کارول څومره ګران کار دی. د عیسی(ع) په اړه هم ویلای شو، چې د مینې او ورورلۍ ژبه د خلکو په منځ کې څومره خطرناکه تمامېدلای شي. ان په اوس وخت کې هم لیدلای شو، هلته چې، سوله ده، مینه ده، خلک یو بل زغمي، احترام دی یا دې ته ورته نور ښه خاصیتونه شته وي، د قوي حکومتونو پښه څومره ګوډه ده.
په یاد دې دي افلاطون څومره غوسه و؟ ده به ویل د آتن تر ټولو هوښیار انسان داسې سا ورکړه. د عیسوي تعلیماتو له مخې، عیسی(ع) هم بوازینی پاک کس و، چې د ځمکې پر سر یې ښه ابښې وه. د دوی په باور له دې ټولو سره یې هغه په مرګ محکوم کړ. مسیحیان وایي، هغه د بشریت لپاره ځان قربان کړ. دا هغه څه دي چې مسیحیان یې، د عیسی(ع) مصیبت بولي. ددوی په وینا، عیسی(ع) زحمتکش او غمخور بنده و. ده د انسانانو د کفارې ګناه پر غاړه واخیسته څو ټول انسانان له ګناه خلاص شي.

## پولس

سوفي، مسیحیان په دې باور دي: څو ورځې وروسته چې عیسی(ع) (ددوی په باور) خاورو ته وسپارل شو، نو دا ګنګوسې خپرې شوې چې

هغه له هدیرې راپورته شوی دی. هغه په دې توګه وښوده چې کوم عادي انسان نه و او هرو مرو یې له خدای سره څه تار درلود. په همدې توګه د مسیحیانو کلیسا ددې پېښې پر سبا جوړه شوه. البته دا هغه څه دي چې پولس یې وایي. مسیحیان باوري دي، چې که مسیح نه وي پاڅېدلای، نو زموږ وعظونه او ایمان بې ګټې دی.

دوی وایي، اوس نو انسانانو ته په کار ده، چې د قیامت ورځې ته سترګې پر لار وي، ځکه عیسی(ع) زموږ لپاره قرباني ورکړې ده او د هغه په برکت به موږ هم له عذابونو خلاص شو. یوه شي ته دې پام وي سوفي! په مسیحیت کې د روح د تناسخ یا نه تلپاتې والي موضوع نشته ده. دا د یونانیانو او هندو-اروپایانو باور و. د مسیحیت په باور، هیڅ شی، ان روح هم پخپل اصل کې تلپاتې نه دی پیدا شوی. دوی پر ابدي ژوند باور لري، خو هغه په دې دنیا کې نه. دوی باور لري، چې له ګناه او عذاب خلاصون یوازې د خدای په معجزه کېدای شي او د انسان له خیرکۍ، فطرت او طبیعت سره هیڅ تړاو نه لري.

لومړنیو مسیحیانو په دې توګه، پر عیسی(ع) د ایمان له لارې، خلک ښېګڼو او پاکۍ ته رابلل او دوی ته یې وعظونه کول. دوی به ویل، چې د (خدای ملکوت) د عیسی(ع) په منځګړیتوب پېښېدای شي. همدارنګه به یې ویل، چې د مسیح لپاره ټوله دنیا ګټلای شو. (مسیح کلمه د عبري له (مشیاه) کلمې ژباړل شوې ده، چې د مسح شوي په مانا ده).

د عیسی(ع) تر تګ څو کاله وروسته، پولس فریسي- پر مسیحیت ګروهمن شو. هغه یونان، روم او د نړۍ ګوټ ګوټ ته سفرونه وکړل او همداسې یې مسیحیت ته پراختیا ورکړه. ددغه پېښې سپړنه (د رسولانو اعمال) کتاب کې لولو. مشرانو، قومونو او رهبرانو ته د مسیحیت په اړه د پولس وعظونه او لومړني درسونه د رسالو او لیکنو په بڼه راپاتې دي.

وروسته پولس د آتن ښار ته سر ورښکاره کوي، بې ځنډه د فلسفې په پلازمینه کې د ښار میدان ته ورځي. ویل کېږي چې ټول ښار یې پر بت

پرستۍ وليد او دې مسئلې يې غيرت وپاراوه. په آتن کې يې د يهوديانو کنيسې ته سر ورښکاره کړ، له اپيکوري او رواقي مشرانو سره يې خبرې پيل کړې. هغه يې له ځان سره د آريوپاګوس د تپې سر ته راوست. ورته ويې ويل:

- دلته د هغه شي په اړه خبرې کولای شې، چې تا نوي درسره راوړي دي؟ ستا خبرو موږ حيران کړي يو، موږ غواړو په مانا يې پوه شو.

سوفي پوهېږې ناڅاپه يهودي انسان په آتن کې پيدا کېږي او دداسې څه په اړه خبرې کوي، چې د خدای په لار کې قرباني شوی دی. له پولس او مسيحي درسونو سره د يوناني فلسفې تقابل او عکس العمل د پولس په دې ليدنه کې حس کولای شو. سوفي! پولس په دې بريالی کېږي، چې د آتنيانو پام خپلو خبرو ته را واړوي. د آريوپاګوس د تپې له سره، د آکرو پوليس ښار د سترو معبدونو په مخکې وينا پيلوي:

- اې د آتن خلکو! تاسې به تولو چارو کې په يوه وېره کې ژوند کوی. ستاسې معبدونه مې وليدل. زه چې په ښار کې ګرځېدم او ستاسې معبدونه مې ليدل، نو د قربانيو ځای ته ورغلم، هلته ليکل شوي وو، د ناپېژندل شوي خدای په نامه. زه تاسې ته هغه خدای در ښيم، چې تاسې يې نه پېژنئ خو ورپسې ګرځئ او عبادت يې کوئ.

هغه خدای چې ځمکه، آسمانونه او پکې شته موجودات پيدا کړي دي. هغه د انسان په لاس په جوړو شوو معبدونو کې نشته دی، هغو شيانو ته اړتيا نه لري، چې د انسان په لاس جوړ شوي دي. همدا خدای دی چې موږ ته سا راکوي او ژوند رابښي. ټول ملتونه يې د يوه انسان له نسله پيدا کړل، چې د ټولې ځمکې پر سر ميشت شي. دوی ته يې وخت وټاکه، مرزونه يې ورته وټاکل، څو خدای وپلټي او په هغه پسې د ړندو په څېر ونه ګرځي.

کېدای شي هغه پیدا کړي. هغه له موږ هیڅ یوه لرې نه دی، ځکه موږ په هغه کې ژوند کوو، په هغه کې حرکت او هستي لرو، ستاسې خپلو شاعرانو هم دا خبره کړې ده. موږ باید دا شک و نه کړو، چې د خدای سر له سرو یا سپینو زرو جوړ شوی دی. یا دا چې د بنیادم په هنر او مهارت تویږل شوی دی. خدای زموږ د جهالت دوره بښلې ده، خو اوس یې په ټوله نړۍ کې بشرته د توبې امر کړی دی.

هغه موږ ته روزي راکوي، د هغه چا په لاس به د ښو او بدو ترمنځ قضاوت وکړي، چې دده خوښ وي. د بشر د بشپړ باور لپاره به هغه تر مرګ وروسته بېرته ژوندي کوي.

پولس په آتن کې؛ سوفي ته یو ځل دا صحنه تصور کړه! مسیحیت د یونان او روم نړۍ ته لار پیدا کړې وه. دا نو نوې خبر وه، اپیکوري، رواقي یا افلاطوني فلسفې ته ورته هیڅ یکې نه وو. سره له دې هم پولس په دې دواړو فرهنګونو کې شریک اړخونه پیدا کړل. هغه ټینګار کاوه، چې د انسان له لوري د خدای پلټنه طبعي خبره ده. دغې خبرې د یونانیانو لپاره نویوالی درلود. د پولس د نوو تعلیماتو موخه دا وه، چې خدای د بشر په منځ کې دی. دوی ته یې ځان ښودلی دی او بشر یې ځان ته رابللی دی. له دې امله نو وروسته تر دې خدای کوم فلسفي خدای نه دی، چې انسانان د خپل درک او فهم له لارې هغه ته ورسېږي. د هغه سر له سرو یا سپینو زرو نه دی جوړ شوی. په هغه وخت کې داسې خدایان په آتن کې ډېر وو، په آکروپولیس کې د ډبرو او نورو فلزاتو خدایان د ډېرو د باور وړ وو. ده به ویل، خدای په معبد کې مېشت نه دی. دا خدای د هر چا خدای دی، د تاریخ لوری بدلوي او د بشریت لپاره هر څه کولی شي.

په آریوپاګوس کې د پولس خبرې ختمېږي. ځینې خلک یې مسخره کوي هم، ښایي په دې اړه بیا خبرې وکړم درته. ځینې ورته وایي چې په دې اړه به بیا ستا خبرو ته غوږ و نیسو. ځینې کسان هم ځای پر ځای پر

عیسویت گروهمن کېږي او ایمان راوړي. په دې ډله کې که د یو چا یادونه درته وکړم بده به نه وي. هلته د داماریس په نامه یوه ښځه وه، چې د مسیحیت تر ټولو قوي لاروۍ شوه.

پولس په دې توګه خپلو فعالیتونو ته ادامه ورکړه. د عیسی(ع) تر تګ څو لسیزې وروسته، د یونان او روم په مهمو ښارونو، آتن، روم، سکندریه، افه سوس او کورنت کې د مسیحیت سترې ټولنې رامنځته شوې. د دریو سوو یا څلورو سوو کالو په اوږدو کې ټوله هلنیستي نړۍ مسیحي شوې وه.

## د دین اصول

د مسیحیت لپاره د پولس بنسټیز ارزښت یوازې د یوه مبلغ په توګه نه دی. هغه په مسیحي ټولنو او غونډو کې خانګړی ارزښت خپل کړ، ډېر نفوذ یې درلود او په درنه سترګه ورته کتل کېدل. هغه وخت یې د روحاني رهبر او لارښود په سترګه هم ورته کتل.

تر عیسی(ع) وروسته دا مسئله راپورته شوه، چې تر یهودیانو پرته نور خلک مسیحي کېدای شي. بې له دې چې د یهودیت اصول ومني؟ د بېلګې په توګه یوناني مسیحي اړ و، چې د یهودیانو په خبر خواړه او څښاک وکړي یا د دوی دودونه عملي کړي؟ د پولس په باور دا شیان اړین نه دي. ده به ویل، مسیحیت تر یوې ډلې تپلې اوښتی او پراخ دین دی. مسیحیت د دوی په وینا ټولې نړۍ ته د پاکۍ پیغام درلود. د مسیحیانو په خبره، د خدای(ج) او عیسی(ع) تر منځ نوې ژمنه د خدای او اسرائیلو ترمنځ د زړې ژمنې پر ځای شوې ده.

مسیحیت یوازې د هغه وخت دین نه و. مخکې مو هم یاده کړه، چې د یوه ځای دین هم نه و. ټوله یوناني نړۍ یې تر نفوذ لاندې وه. دلته نو ددې وېره وه، چې نور دینونه به نفوذ پکې وکړي. نو کلیساوو ته دې مسئلې ډېر اهمیت پیدا کړ، چې خپل دین ته اصول وضع کړي. دوی په دې توګه غوښتل هم له نورو مذهبونو یو ګام مخکې ولاړ شي او هم د

مسیحیت په کلیساوو کې د ډلو او ډلګیو له جوړېدو مخنیوی وکړي. په همدې توګه نو د دین لومړني اصول جوړ شول، چې هغه ته د مسیحیت عقیدتي بنسټونه وایي.

**پوهېږې سوفي!**

مسیحیان باور لري، چې عیسی(ع) د خدای برخه و. هغه راغی د انسانانو حالت یې ولید، هر څه ورته زړه بوږنوونکي وو، په همدې توګه یې ځان قرباني کړ، خو سهار په هدیره کې نه و. هغه یو رښتینی انسان و، داسې انسان چې بل نشته دی، هغه هڅه کوله بشر ـ له بدمرغیو خلاص کړي په همدې لار کې یې قرباني هم ورکړه.

دا ښایي ډېر افراط وي، خو دوی عیسی(ع) ته د خدای مقام ورکاوه. دوی یوازیني کسان نه وو، چې د نیمه خدایي مقام یې یاد کړی دی. په ټوله هلنیستي نړۍ کې د نیمه خدایي مقامونه شته وو. کلیساګانو د عیسی(ع) په اړه له همغه سره له افراط کار اخیستی دی البته تر نن پورې.

**پایلیک:**

سوفي زه به څو خبرې نورې هم درته وکړم، ته وګوره چې دا مسایل څنګه له یو بل سره اړیکه پیدا کوي. مسیحیت چې د یونان او روم نړۍ ته ننوځي نو ددغو دوو فرهنګو سره اخښل کېدل واضح دي. په همدې وخت کې د تاریخ تر ټولو ستر فرهنګي بدلون رامنځته کېږي.

اوس نو له لرغونو پېړیو د وتلو لپاره څه نه دي پاتې. د لرغوني یونان له فیلسوفانو نږدې زر کاله تېر شوي دي. د مسیحیت تیاره پېړۍ (قرون وسطی) په مخ کې لرو. دې دورې هم نږدې زر کاله دوام کړی دی.

آلماني شاعر ګویته، یو وخت ویل؛ څوک چې له ۳۰۰۰ کالونو ګټه پورته نه کړي، فقیر دی. نه غواړم چې ته له داسې یوه حالت سره مخ شې، هر څه مې چې په وس پوره وي کوم یې، خو ته باید د خپل تاریخ په جرړو پوهه شې. دا د انسان کېدلو یوازینۍ لار ده. د لوڅې بیزو د نامه له چتره د

وتلو لار دلته ده. په لايتناهي فضا کې د سرګردانۍ د مخنيوي چاره همدا ده.

دا د انسان کېدلو يوازينۍ لار ده، د لوخو بيزوګانو له کتاره د وتلو لار همدا ده...

سوفي خو شيبې کيناسته، سوچونو کې ډوبه شوه. د پټنځي ورو ورو سوړو ته خير شوه. د ځان د تاريخ په اړه مطالعه ورته ارزښتناکه ښکاره شوه. پوهه شوه چې بايد خپل تاريخ ولولي او پيدا يې کړي.

هغه پخپله يوه معمولي نجلۍ ده. خو که خپله تاريخي ريښه پيدا کړي نو لږ به تر معمولي حالت لوړه شي. په دې خاورينه نړۍ کې به يې د عمر موده هومره اوږده نه وي، خو که د بشريت برخه ده، نو د بشريت د تاريخ زده کول ورته اړين دي. په دې توګه نو د بشر-تاريخ د سوفي تاريخ دی او له دې اړخه نو خو زره کلنه ښځه ده.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# تیاره پېړۍ

**...د لارې تر نیمایي تګ، پر لاره له ناسم تګ سره توپیر لري...**

بوه اونۍ ووته، خو د آلبرتو کناکس درک نه و. له لبنانه هم کوم پستي کارت را نه غی. خو یووانا او سوفي به لا هم د هغو کارتونو په اړه خبرې کولې، چې د قومندان په کور کې یې پیدا کړي وو. یووانا په تول ژوند کې دومره نه وه وېرېدلې. خو دا چې کومه پېښه رامنځته نه شوه، نو څکه یې وېره زر ختمه شوه او بېرته یې پر خپلو درسونو تمرکز ډېر کړ. یووانا د بېډمېنټون لوبه هم پیل کړې وه.

سوفي د آلبرتو لیک دوه درې ځله ولوست. غوښتل یې داسې یو څرک پیدا کړي چې له مخې یې د هیلده معما حل کړي. تر څنګ یې دا هڅه هم کوله چې کلاسیکه فلسفه ښه دقیقه مطالعه کړي. اوس یې دمکریتوس، سقراط، ارسطو، افلاطون او ځینې نور ښه پېژندلای او بېلولای شول.

د جمعې ورځ، د مې میاشتې ۲۵مه نېټه وه. په پخلنځي کې یې نګولی تیاراوه، غوښتل یې د مور تر راتګ مخکې دوډۍ تیاره وي. هره جمعه ددوی ژمنه همدا وه. نن یې ښوروا، کباب، کوفته او پکوړې پخولې.

بهر نرم شمال چلېده، له کړکۍ یې وکتل، د چنار لوړې ونې شمال لکه شنه غنم ښورولې. ناڅاپه یو څه په ښیښه ولګېدل. سوفي مخ ور واړاوه، یو شی پر ښېښه سرېښ و.

پستي کارت و. لیکنه یې د ښېښې له دېخوا لوستل کېده. وربانډې لیکلي و (هیلده مولرکناګ، د سوفي آموندسن په لاس).

پوهېدلې وه، چې داسې کار به کېږي. کړکۍ یې پرانیسته او کارت یې را واخیست. هرو مرو به باد له لبنانه تر دې ځایه راوړی و!

ددې کارت نېټه هم د جون ۱۵مه وه. سوفي لوښي د اور له سره لرې کړ. د پخلنځي منځ کې پر اېښې څوکۍ کېناسته. په کارت کې لیکل شوي وو.

گرانې هيلده!

نـه پـوهېږم، چـې د دې کـارت د لوسـتلو پـر وخـت بـه دې د کليزې
جشن وي که نـه، خـو هيلـه لـرم چـې ډېـره ناوختـه شـوې نـه وي. دا يو
دوې اونـۍ د سـوفي لپـاره دومـره عـادي نـه وې لکـه زمـوږ لپـاره چـې
وې. د اوړي پـه لـومړۍ شـپه بـه پـه کـور وم. بيـا نـو پـوهېږې هيلـده!
ساعتونه به پـر هغـه کـوچ کېنـو او سيند تـه بـه گـورو. ډېـرې خبرې بـه
وکړو. د ويلو لپـاره ډېـر څـه لـرو. پـلار دې در څـار شـه! پـوهېږې دلتـه
ډېــر ســتړی کېــږم. د يهوديــانو، مســيحيانو او مســلمانانو زر کلــن
کشــمکش ډېــر ســتړی کــړی يــم. درې واړه دينونــه ظــاهراً د يــوه
خـدای لمانځـه کـوي. د يـوه ابـراهيم (ع) لـه نسـله دي، خـو د زرگونـه
کلونو په تېرېدو لا هم د هابيل او قابيل په څېر يو بل سره وژني.
پايليک:
زما سلام سوفي تـه ورسـوه. هغـه ماشـومکه تـر اوسـه نـه پـوهېږي چـې
دا کيسې له يو بـل سره څـه اړيکـه لـري. خـو تـه بـه پـوهېږې همداسـې
نه ده؟

سـوفي سترې شوه. سر يـې پـر مېـز کېښـود. ښـکاره خبـره وه. پـه هـېڅ شي يـې
سر نـه خلاصـېده. پـه دې نـه پوهېـده چـې دا شـيان لـه يـو بـل سره څـه اړيکـه
لري. خـو سـتونزه دا وه، چـې هيلـده يـې نـه شـوای پيـدا کـولی. هيلـده حتما پـه
دې خبرو پوهېده.
که د هيلـده پـلار يـې لـه لـور غـواړي چـې سـوفي تـه سـلام ووايـي، پـه دې مانـا
ده چې لـور يـې سـوفي پېـژني. خـو سـوفي د هيلـده پـه اړه پـه هـېڅ نـه پوهېـده.
کيســه ډېــره سره پېچلــې وه. ســوفي بېرتــه ولاړه چــې د ماښــام ډوډۍ تيــاره
کړي.

پستي کارت پخپله پر ښښنه سرېښ شوی و. دې ته وايي هوايي پست.
نوی يې ديگ پر نغري ايښی و، چې زنگ راغی.

که يې پلار وي! ډېره هيله منه وه چې پلار يې راشي. په هغه پسې ډېره خپه وه. غوښتل يې د خپو وروستيو اونيو ټولې کيسې ورته وکړي. خو دا به يا يووانا وي يا د سوفي مور. سوفي ټليفون پورته کړ:

- سوفي آموندسن يم
- زه يم

سوفي له ځان سره وويل، چې پلار خو يې نه دی، غږ هم د نارينه و. خو فکر يې وکړ چې دا غږ يې مخکې اورېدلی دی.

- تاسې محترم؟
- آلبرتو
- اوووه!

د سوفي ژبه بنده شوه، غږ يې وپېژانده، دا همغه د آکروپلوس ښار په ويډيو کې د آلبرتو غږ و.

- سوفي ته ښه يې؟
- هو هو!
- تر دې وروسته به کوم ليک در نه شي
- ما خو به کوم کار نه وي کړی؟
- بايد يو بل سره ووينو، کار عاجل دی، و پوهېدې؟
- څنګه؟
- د هيلدې پلار هڅه کوي دايره تنګه کړي
- څه ډول؟
- له ټولو اړخونو، سوفي! موږ بايد يو ځای او له يو بل سره نږدې کار وکړو
- خو څنګه؟
- څو چې د تياره پېړيو کيسه وا نه ورې مرسته نه شي کولای. موږ بايد رنسانس او همدا راز د اوولسمې پېړۍ، حالات وڅېړو. بارکلي مهمه څېره ده...

- دا همغه کس دی، چې د قومندان جونګړه کې يې انځور و؟
- هو پخپله دی. ښايي نانډرۍ مو ددې سړي د فلسفې پر سر وي
- ته داسې خبرې کوې لکه ستره جګړه چې په مخ کې وي
- ښه به وي، چې د پريکړو او ارادو جګړه يې وبولو. بايد د هيلډې پام ځان ته واړوو، مخکې له دې چې پلار يې ليله سن ته راشي هغه بايد خپله کړو.
- باور وکړه په دې خبرو مې سر نه خلاصيږي
- ښايي فيلسوفان دې سر خلاص کړي. زه او ته سبا اته بجې د سن ماري په کليسا کې سره وينو. لورکې يوازې راشې!
- وای سبا دومره وختي؟

اړيکه پرې شوه.

- الو الو

غوږۍ يې کېښوده. سوفي په بېړه پخلنځي ته ولاړه. نږدې وو، چې ښوروا پر نغري واوړي.

د سن ماري کليسا؟ د تياره پېړيو ډبرينه کليسا وه. اوس وختونو کې يوازې، د ځانګړو مراسمو او کانسرټونو لپاره کارېده. په اوړي کې به کله کله د سيلانيانو پر مخ هم خلاصېده. د شپې به يې ور پرانستی نه پرېږدي؟ مخکې تر دې چې مور يې راشي، د هيلده کارت يې د هغه له نورو توکو سره يو ځای کېښود. ډوډۍ تياره وه، مخ د يووانا پر کور روانه شوه.

همدا چې يووانا ور پرانيست، هغه ووېل، بايد يو څه سره د ليدو ژمنه وکړو. نور يې هېڅ و نه ويل. د يووانا د خوب کوټې ته ولاړې، ور يې پسې وتاړه.

- مسله ډېره پېچلې ده
- اصله خبره وکړه
- مور ته مې وايم چې دا شپه له تا سره تېروم
- ډېر به ښه شي

- خو داسې نه کوم، زه بل ځای ته باید ولاړه شم، هغه ته وایم دلته یم
- ځومره بده خبره، د هلک نوم څه شی دی
- نه، کوم هلک نه دی، د هیلده خبره ده

یووانا اوږد اسویلی و ایست. برګ برګ یې د سوفي سترګو ته وکتل.

- زه نن شپه دلته راځم، خو سهار په اوو بجو ځم. څو چې زه راګرځم باید هر څه ته دې پام وي
- چېرته ځې او نجلۍ؟ څه پلان لرې؟
- وبښه څه نه شم ویلی

مور یې له دې خبرې سره هېڅ ستونزه نه لرله، چې له یووانا کره دې شپه وکړي، کله کله به خوشاله کېده هم. سوفي به داسې احساس کاوه، چې په کور کې د سوفي یوازې پاتې کېدل یې د مور نه خوښېږي.
له کوره چې وتله مور یې پوښتنه ترې وکړه:

- سهارنی ته خو به نو کور ته راځې که څنګه؟
- که را نه غلم خو پوهېږې چې چېرته یم

دا یې ولې وویل، ځکه د کمزورۍ ټکی همدا و. هغه سهار یوه ځای ته روانه وه.
سوفي، دا شپه هم د تېرې په څېر، تر نیمو شپو په خبرو بوخته وه، دواړو کیسې وکړې. د وېده کېدو پر مهال یې، زنګ لرونکی ساعت پر پنځلس کمو اوو برابر کړ. پنځه ساعته وروسته سوفي، د ساعت زنګ چوپ کړ، یووانا د سترګو تر کونجو ور وکتل.

- له ځان سره پام کوه!

خو شېبې وروسته سوفي خپله لار نیولې وه. د سن ماري لرغونې کلیسا، د تاریخي ښار په یوه لرې او زړه سیمه کې پرته وه. ددوی له کور سره یې نږدې لس کیلومتره واټن درلود. خو سوفي له بې خوبۍ سره سره تکړه او په حال وه.

اتو ته څو دقیقې پاتې وې، چې د سترې ډبرینې کلیسا مخې ته ودرېده.
ډبرینه دروازه یې تیله کړه. پرانیستې وه. په زړه کلیسا کې د نسه چوپه
چوپتیا وه. د کړکیو له شنو ښېښو رڼا را لوېدلې وه. د لمر غوړانګه په هوا
کې روان وو. سترو ستنو د کلیسا چت پر سر اېښی و. سوفي پر یوه اوږده
څوکۍ کېناسته، تور رنګه زاړه صلیب ته څیر شوه.
څو دقیقې تېرې شوې. ناڅاپه د کلیسا له ستر زنګ غږ پورته شو. سوفي
جرات و نه کړ چې شا ته وګوري. ښايي د تیاره پېړیو کومه سندره به وه.
بیا چوپتیا خوره شوه. د پښو ښکالو یې له شا واورېد. ور و به نه ګوري؟
پرېکړه یې وکړه چې له صلیب به سترګې نه خوځوي.
د پښو غږ یې تر څنګ تېر شو، په زینو پورته وخوت، په قهوه یي کالیو
کې یې د راهب په تنه ولیده. تازه راغلی کس د تیاره پېړیو و، سوفي پر
دې خبر قسم خوړلی شوای چې هغه د تیاره پېړیو راهب دی.
ورخطا وه، څو دومره نه چې عقل یې کار و نه کړي. راهب محراب ته
ورسېد، نیمه څرخکه یې ووهله او منبر ته وخوت. د منبر پر لرګي یې
تکیه وکړه، لاندې یې سوفي ته وکتل او په لاتیني ژبه یې ځینې کلیمې
ولوستې.
سوفي چیغه کړه:
- پرېږده بابا؛ سمې خبرې وکړه!!!
غږ یې په ډبرینه کلیسا کې تاو را تاو شو.
باوري وه، چې دا راهب به هرو مرو آلبرتو وي. په دې خبای کې یې پر
خپله چیغه پښېمانه شوه. څو چاره نه وه، غوسه شوې وه، غوسه سړی د
منع شوو کارونو په کولو ارام مومي.
- اششش! آلبرتو د کشیشانو په څېر خپل لاس پورته کړه، لکه
غواړي چې د تبلیغ لپاره خلک آرام ته راوبولي.
ویې ویل:
- سوفي تیاره پېړۍ په څلورو بجو پیل شوې دي

سوفي نوره غوسه نه وه، خو گومان یې کاوه چې احمقه ده.

- څه؟ تیاره پېړۍ په څلورو بجو پیل شوې دي؟

- هو نږدې څلور بجې. وروسته، شپږ، اوه او اته بجې شوې. خو ته به وایې، چې وخت بې حرکته او ولاړ دی. اته، نه او لس شوې. لا هم تیاره پېړۍ وې، پام دې دی؟ ښایي فکر وکړې چې اوس د نوې ورځې د پیل کېدو شېبې وې. هو پوهېږم چې موخه دې څه ده. خو لا هم یکشنبه ده. چاره نه لرو، د یولسو، دولسو او دیارلسو وار را رسېږي. دا هغه دوران دی چې موږ یې علیا گوتیک[1] بولو. د اروپا سترې کلیساگانې په همدې وخت کې جوړې شوې دي. په دې وخت کې د ماسپښین په نږدې دوو بجو د چرگ اذان پورته کېده. تیاره پېړۍ په همدې وخت کې پای ته رسېږي.

- نو تیاره پېړۍ لس ساعته اوږدې شوې؟

آلبرتو د راهبانو له اوږدې چپنې خپل سر را وایست. لکه هلته شته خلکو ته چې وینا کوي، خو مخاطب یې بوازې څوارلس کلنه نجلۍ وه. په خبرو یې پیل وکړ:

- که هر ساعت یوه پېړۍ وشمارو هو، دا هم ویلای شو، چې عیسی (ع) په نیمه شپه کې نړۍ ته سترگې غړولې دي. پولس د خپل رسالت سفرونه د شپې له یوې نیمې بجې مخکې پیل کړل او لا دوو ته ۱۵ دقیقې پاتې وې چې ومړ. د سهار په درېیو څه ناڅه مسیحي کلیساگانې وتړل شوې، خو په ۳۱۳ ز سنه کې، د روم د امپراتورۍ یو منل شوی دین وگرځېد. له ۳۸۰ ز کال وروسته د روم د امپراتورۍ رسمي دین مسیحیت و.

- د روم امپراتوري خو بیا ماته شوه، نه شوه؟

[1] High Gothic

د نړۍ د یوه ستر تاریخي او

- په دې وخت کې نوې ماتېدله. موږ د نړۍ د یوه ستر تاریخي او فرهنګي بدلون پر ورانډې ولاړ یو. په څلورمه پېړۍ کې روم له دوو اړخونو له خطر سره مخ و. له یوې خوا د شمال بربریانو پر دوی بریدونه کول او له بلې خوا د ننه په امپراتورۍ کې ستونزې جوړې وې. په ۳۳۰ ز کې ستر قسطنطین د روم د امپراتورۍ مرکز له رومه، قسطنطنیې ته راووړ. دا ښار د تور سیند مخې ته ده پخپله جوړ کړی و. ډېرو خلکو دغه ښار ته (ثاني روم) نوم ورکړی و. په ۳۹۵ ز کال کې د روم امپراتوري په دوو برخو وویشل شوه. غربي امپراتوري چې مرکز یې روم و او شرقي امپراتوري چې مرکز یې ثاني روم یا قسطنطنیه و. په ۴۱۰ز کال کې روم بربریان مات کړل او په ۴۷۶ز کال کې د غربي روم امپراتوري له منځه ولاړه. شرقي امپراتوري بیا تر ۱۴۵۳ ز کال پورې پر خپل ځای وه. تر هغه چې په همدې کال کې ترکانو قسطنطنیه ونیوله او دا امپراتوري هم ورسره ماته شوه.
- د ښار نوم هم په اسلامبول بدل شو که نه؟
- هو سمه ده. اسلامبول یې وروستی نوم دی. ۵۲۹ ز کال بله نېټه ده، چې باید هېره یې نه کړو. دا هغه کال دی چې د کلیساوو مشران را ولاړ شول او په آتن کې یې د افلاطون د اکاډمي دروازې وتړلې. د بندیکتین طریقې ستره رهباني ډله په همدې نېټه را پیدا شوه. په دې توګه نو د مسیحي کلیسا د یونان پر فلسفه باندې توره پرده وغوړوله. له دې وروسته نو د روزنې، مکاشفې او فکر تګلارې د کلیسا تر چتر لاندې ښودل کېدې. ساعت د سهار پنځه نیمو ته نږدې کېده.

د سوفي اوس لېر لېر پام شو، چې له ساعتونو د آلبرتو موخه څه ده. نیمه شپه صفر وه، د شپې یوه بجه، تر عیسی(ع) یوه پېړۍ وروسته موده

وه. د سهار شپږ له میلاده ۶۰۰ کلونه وروسته مودې ته وايي. د ماسپښین ۲ بجې له میلاده ۱۴۰۰ کاله وروسته نېټې ته وايي.
آلبرتو بې خبرو ته ادامه ورکړه:

- تیاره پېړۍ ددوو نورو روښانه زمانو په منځ کې شته پېریو ته وايي. دا اصطلاح د رنسانس په وخت کې رامنځته شوه. دې ته څکه د تیارو دوران یا تیاره پېړۍ[1] وايي، چې د ۱۰۰۰ کلونو په عمر یوې اوږدې توري شپې پر ټوله اروپا تیاره غوړلې وه. د منځنیو پېړیو اصطلاح اوس د هغه شیانو لپاره په منفي مانا کارول کېږي چې ډېر کلک دي او د بدلون وړ نه وي. ډېرې تاریخپوهان بیا تیاره پېړۍ د ودې او پرمختګ یوه زر کلنه دوره بولي. د بېلګې په توګه تحصیلي نظام په همدې پېریو کې رامنځته شو. لومړنی ښوونځی چې راهبانو به هلته زده کړې کولې په همدې موده کې په ۱۲مه پېړۍ کې جوړ شو. په ۱۲۰۰ ز کال کې د لومړي ځل لپاره پوهنتون جوړ شو. هغه وخت هم د نن په څېر پوهنتون په بېلو پوهنځیو ویشل شوی و او خلکو به د خپلې خوښې په پوهنځیو کې زده کړې کولې.
- زر کاله خو ډېره اوږده زمانه ده
- هو! تر هغه چې مسیحیت قومونو او قبیلو ته رسېده، اوږده موده یې ونیوه. د یادو خبرو تر څنګ ډول ډول ملي حکومتونه هم په همدې موده کې جوړ شول. ستر ښارونه له ښاریانو ډک شول، موسیقي رامنځته شوه او ولسونو محلي ادبیات وپنځول. که تیاره پېړۍ نه وای تېرې شوې، هغه ملي سندرې او کیسې چې اوس یې لرو ښایي نه وای پنځول شوې. څوک څه پوهېږي چې په اروپا کې به څه کېدل؟ ښایي د روم د امپراتورۍ کوم ایالت به و. انګلستان، فرانسه او آلمان د ډېرو شیانو لپاره د تیاره پېریو د زمانې

[1] Dark ages

تـر ټولـو ښـې زانګوګـانې وې. لسـګونه کسـان پـه همـدې زانګوګـانو کـې را لوېـدل. آيسـلنډي تـاريخپوه سـنوري پـه همـدې پېړيـو کـې ژونـد کـاوه. قـديس اولاف[1] او شـارلمان[2]، روميـو او ژوليـوت، ژانـدارک، آيوانهـو[3]، همـيلن[4] او دې تـه ورتـه د شـواليه وو لسـګونه، پـاوړي شـاهزاده ګـان، نقاشـان، راهبـان، ډېـر تـوړونکي، د موسيقيو د آلـو جـوړوونکي د همـدې پېړيـو محصـول دي. لا مـې پـه دې برخـه کـې د صـليبي جګـړو د اتلانـو، تکـړه راهبـانو، جـادوګرانو او نـورو خلکو نومونه نه دي ياد کړي.

- هو د روحانيونو په اړه دې هم څه و نه ويل

- تـه سـم وايـې! رښـتيا يـوه بلـه خـبره، مسـيحيت تـر ۱۹مـې پېړۍ پـورې نـاروې تـه نـه و راغلـی. دا بـه بيخـي اغـراق وي کـه ووايـو، چـې د شمالي اروپا ټـول هېوادونـه پـه يـوه ځـل مسـيحيان شـول. ان کله چې مسـيحيت دې ځمکـو تـه راغـی، تـر ډېـره لا کفـري افکـار او همـدا راز پـه دې سـيمه کـې د ميشـتو خلکـو عادتونـه پـر خپـل ځـای و. وروسـته وروسـته بيـا ډېرې دغـه دودونـه او عادتونـه پـه مسـيحيت کـې ور ګـډ شـول. د بېلګـې پـه توګـه د ميلاد پـه اختـر کـې، سـکانډويان، لا هـم د مسـيحيت آداب او خپـل دودونـه پـه ګـډه سره نمـانځي. پـه دوی کـې يـو دود و، چـې ويـل بـه يـې، د واده اړيکـه نـر او ښـځه يـو بـل تـه سره ورتـه کـوي. پـه دې توګـه نـو پخـواني دودونـه او عادتونـه لـه مـذهب او ديـن سره ګـډ شـول. پـه دې کـې شـک نشـته چـې مسـيحيت ورو ورو، د ژونـد اصـلي فلسـفه شـوه. همـدا خـبره ده چـې وايـي، تيـاره پېړۍ ددې لامـل شـوې چـې مسـيحي فرهنـګ پيـاوړی او واحد کړي.

---

[1] Olaf
[2] Charlemagne
[3] Ivanhoe
[4] Pred piper of Hamelin

- نو په دې مانا چې هر څه تور او تیاره نه و؟
- لومړنۍ پېړۍ له ۴۰۰ ز کال وروسته په رښتیا د فرهنګونو د زوال پېړۍ وې. د رومیانو په دور کې فرهنګ ډېره وده کړې وه. په سترو ښارونو کې د اوبو د تګ منظم سیستم، عمومي حمامونه، کتابتونونه په ښارونو کې شته وو او ښکلي معماري هر خای لیدل کېده. فرهنګ د تیاره پېړیو په لومړیو کې له منځه ولاړ. اقتصاد او سوداګري مخ پر خوړ شوه. اقتصاد فیوډالي بڼه غوره کړه. په بله وینا، وړه اشرافي ډله د ځمکو مالکه وه، عامه خلکو به کار کاوه. ددوی پر ځمکو به یې د خان په بیه زیار ایسته، چې خپله خېټه مړه کړي. دومره څه یې تر لاسه کول چې ژوندي وربانده پاتې کېدل. په لومړیو پېړیو کې نفوس هم د پام وړ کم شو. روم په لرغونې پېړۍ کې تر یو میلیون ډېر اوسېدونکي لرل. خو په ۶۰۰ ز کال کې یې، نفوس یوازې څلوېښت زره کسانو ته رسېده. اوس نو وینو چې نفوس څومره را کم شوی و او څو برابره کموالی ښیي. په دې توګه نو د روم په ستر ښار کې کم شمېر وګړي پاتې شول او په پخوانیو سترو ودانیو او ماڼیو کې به اوسېدل. کله به یې چې د کور د جوړولو لپاره څه په کار شول، نو نورو زړو ودانیو ته به یې مخه کړه او له هغه به یې د اړتیا وړ توکي را ایستل. دا مسئله لرغونپوهان هم سخت ځوروي، وایي دریغه د تیاره پېړیو خلکو هغه ودانۍ همداسې پرې اېښې وای او د توکو تر اېستلو وروسته یې نه وای نړولې.
- نو څه پروا کوي اوس خو کار تر کار تېر و
- له سیاسي اړخه د رومیانو دور د څلورمې پېړۍ په پای کې ختمېږي. په دې وخت کې د روم د کلیسا سقف د روم رهبر شو. هغه د روم د کاتولیکې کلیسا ستر رهبر وبلل شو. دوی پاپ وباله، ددې کلمې اصل په لاتین کې پاپا دی، چې د (ښکاره) مانا لري.

ورو ورو يې پيروانو او لاارويانو هغه د مسيح خداي ناستى وباله.
خو په دې وخت كې د نوو جوړو شوو ملي حكومتونو مشران او
مذهبي راهبان ورو ورو په پښو درېدل او پياوړي كېدل. ځينو خو
دا جرأت وكړ، چې د كليسا پر وړاندې ودرېږي.

- تا وويل چې كليسا په آتن كې د افلاطون اكاډمي وتړله، په دې مانا چې يوناني فيلسوفان هم هېر شول؟
- نه دوی هيڅ وخت هېر نه شول. د ارسطو او افلاطون د ليكنو ځينې برخې لا هم مشهورې وې. خو د وخت په تېرېدو د روم امپراتوري په دريو فرهنگي حوزو وويشل شوه. په غربي اروپا كې مو لاتيني مسيحي فرهنگ درلود، چې مركز يې روم و. په ختيزه اروپا كې مو يوناني مسيحي فرهنگ درلود، ددې مركز بيا قسطنطنيه و. خو دغه ښار بې په دې موده كې پخپل يوناني نامه، بوزانتيون[1] ياداوه، له همدې امله د بيزانسي ـ تياره پېريو بحث د رومي تياره پېريو پر وړاندې مخ ته وړو. ددې تر څنگ د افريقا شمالي برخې چې يو وخت د روم د امپراتورى تر نفوذ لاندې وې د عربو او اسلامي فرهنگ تر اغېز لاندې راغلې. د حضرت محمد (ص) تر رحلت وروسته (٦٣٢ ز) مسلمانانو، منځنى ختيځ او د افريقا شمالي برخې فتحه كړې. څه موده وروسته يې هسپانيه هم ونيوله او د اسلامي فرهنگ برخه شوه. د مكې او مدينې مسلمانانو اورشلم او بغداد خپل سپېڅلي ځايونه وبلل. د فرهنگي تاريخ له اړخه به دا هم په زړه پورې وې، چې درته ووايم، مسلمانانو د سكندريې لرغونى ښار هلني هم ونيو. په دې توگه نو د لرغوني يونان ډېره برخه علوم مسلمانانو ته په ميراث پاتې شول. مسلمانانو د تياره پېريو په اوږدو كې د رياضياتو، كيميا، نجوم او طب علومو ته بشپړ لاسرسى درلود. موږ نن هم عربي شمېرې

[1] Byzantion

کاروو. اسلامي فرهنګ په ډېرو برخو کې تر مسیحي فرهنګ غوره اړخونه لرل او غوروالی یې خپل کړ.

- زه غواړم پوه شم چې پر یوناني فلسفه نور څه وشول؟
- په دې برخه کې نو کولای شې، دا پیدا کړې چې یوناني-رومي فرهنګ څه ډول وویشل شو. کاتولیک رومي په غرب، بیزانسي-په شرق او اسلام په جنوب کې، دا درې فرهنګونه ژوندي پاتې شول. خبره مې ډېره ساده ده، ویلی شو، چې نوې افلاطوني فلسفه په غرب کې دود شوه، افلاطوني فلسفه په ختیز کې او ارسطويي فلسفه د مسلمانانو په منځ کې خوره شوه. خو په درېیواړو فرهنګونو کې د یوې فلسفې یو څه هرو مرو موجود و. خو دا درې واړه فرهنګونه وروسته د ایټالیې په شمال کې سره یو ځای شول. اسلامي نفوذ په هسپانیه کې له مسلمانانو جذب شو، یوناني نفوذ له یونان او همدا راز د بیزانس له امپراتورۍ هم فرهنګي اغیز خور شو. دا نو د رنسانس پیل و. د لرغوني فرهنګ بیا ژوندي کېدل همدلته پیل شول. داسې ویلای شو، چې لرغوني فرهنګ له تیاره پېړیو بېرته ځان را و ایست.
- سمه ده
- خو ګوره زه د پېښو په اړه وړاندوینه نه کوم. لومړۍ غواړم د تیاره پېړیو د فلسفې په اړه لږ معلومات درکړم او بیل دا چې نور نه غواړم د ممبر له سره خبرې درسره وکړم در کښته کېږم.

د سوفي سترګې له خوبه درنې شوې وې. راهب چې د ممبر له سره را کښته کېده عجیب عجیب یې ورته وکتل، فکر یې وکړ خوبویني. آلبرتو د محراب ډبرینې ستنې ته ورغی. د محراب پر سر یې د تېرو زمانو پخواني صلیب ته وکتل. ورو ورو د سوفي په لور روان شو. د هغه تر څنګ پر اوږده څوکۍ کېناست.

سوفي ته د هغه له نږدېوالي حیرانوونکی احساس پیدا شو. سترګې یې د راهبانو تر چېنه لاندې ښکارېدې. د منځني عمر لرونکی سړی و. نړۍ ږېره یې لرله خو وېښته یې لا هم تور و. سوفي له ځان سره فکر وکړ پوښتنه تري وکړي، چې. (ته څوک یې؟) ولې دې زما ژوند داسې ګډوډ کړ؟

سړي لکه د هغه خبرې یې چې اورېدلې وي، وویل:

- ببره مه کوه ورو ورو به سره وپېژنو

د یو بل څنګ ته ناست وو. د کلیسا له رنګه ښېښو رالوېدلې رڼا شیبه په شیبه ډېرېده او روښانه کېده. آلبرتو کناکس شونډې وخوځولې او د تیاره پېړیو د فلسفې په اړه یې خبرې پیل کړې.

هغه وویل:

د تیاره پېړیو پوهانو، دا خبره نه منله چې مسیحیت دې په حقه وي. دوی به ویل، د مسیحیت پر وحې له کوم دلیل پرته باور وکړو، که نه د عقل په زور او مرسته مسیحي حقیقتونه پیدا کړو. دوی به ویل، د فیلسوفانو او سپېڅلي کتاب اړیکه څه ده؟ د عقل او سپېڅلي کتاب ترمنځ ټکرونه دي یا دا چې ایمان او معرفت سره یو دي؟ د تیاره پېړیو فلسفه په همدې پوښتنو کې راګیر وه. په همدې پوښتنه کې یې لاس او پښې وهلې.

د سوفي زړه ورته تنګ شو، ځکه دا خبرې یې په صنف کې ددیني علومو ښوونکي ورته کړې وې.

- زه به اوس په دې اړه خبرې درته وکړم، چې د تیاره پېړیو دوو نامتو فیلسوفانو څه ډول دا مسئله څېړله. له اوګوستونیوس پیل کوم. هغه د ۳۵۴ او ۴۳۰ ز کلونو ترمنځ ژوند کاوه. له لرغونو پېړیو، تیاره پېړیو ته د فرهنګ نښوتل کولای شو د همدې سړي په ژوند کې ووینو. اوګوستینوس د افریقا په شمال کې د تاګاسته په واړه ښار کې دې نړۍ ته سترګې پرانیستې. په شپاړس کلنی

کې د زده کړو لپاره کارتاژ ته ولاړ. بیا یې روم ته د سفر ملا وتړله او د ژوند وروستي کلونه یې هم د کارتاژ په لوېدیځ کې په پراته هیپو ښار کې تېر کړل. هغه ټول عمر مسیحي نه و. هغه مخکې تر دې چې مسیحي شي، څو فلسفې او مذهبونه یې ازمویلي وو.

- څو بېلګې راوړی شې؟

- یو څه وخت ماني و. ماني هغه ډله وه، چې په لرغونو پېړیو کې را پیدا شوې وه. ددوی دین نیمه مذهبي او نیمه فلسفي و. دوی نړۍ د ښو او بدو، تیارو او رڼاوو، روح او مادې دوه ګوني ټولګه بلله. انسان کولای شي د خپلې روح پر مټ له مادي نړۍ ووځي او خپل روان اصلاح او سم کړي. خو د ښو او بدو تر منځ دغه درځ د ځوان اوګوستینوس ذهن نارام کړی و. ذهن یې په یوه شي بوخت و، دې ته بده پېښه ویلای شو. دا چې بدي له څه پیدا شوې ده؟ له کومه کېږي؟ څه موده د رواقي فلسفې تر اغېز لاندې راغی. رواقیان د ښو او بدو تر منځ پر ژور درځ ډېر باوري نه وو. وروسته اګوستینوس د لرغوني پېر له نوې افلاطوني فلسفې سره آشنایي پیدا کړه. دلته له داسې مفکورې سره مخ شو، چې د ټولې الهي هستي ماهیت دی.

- ښه بیا نو د نوې افلاطوني فلسفې سقف شو؟

- هو دا مانا هم ترې اخیستی شو. په لومړي سر کې مسیحي شو. خو د اوګوستینوس مسیحیت تر ډېره د افلاطوني افکارو تر اغېز لاندې و. سوفي له همدې امله باید دا خبره هېره نه کړې، چې کله موږ تورو مسیحي پېړیو ته ننوځو له یوناني فلسفې سره ټولې اړیکې ناڅاپي نه پرې کوو. د یوناني فلسفې ډېره برخه د اوګوستینوس په څېر مذهبي علماوو او کلیساوو تر موږ را رسولې ده.

- نو غواړې ووایې، چې اوګوستینوس نیمه مسیحي او نیمه نوی افلاطوني و؟
- هغه باوري و، چې سل په سلو کې مسیحي دی او د مسیحیت او نوې افلاطوني فلسفې تر منځ یې کوم تضاد نه لیده. د ده په باور د افلاطون د فلسفې او مسیحیت ترمنځ ورته والی دومره ډېر و، چې فکر یې کاوه افلاطون د مسیح د عصر ـ په هر څه خبر و. دا خبره د زغم وړ نه ده، داسې هم ویلای شم، چې اوګوستینوس افلاطون د مسیحیانو په ډله کې وشماره.
- نو چې په مسیحیت باوري شو، فلسفه یې پرېښوده؟
- نه خو دا خبره یې کوله، چې ددیني مسایلو په برخه کې د عقل کارول محدودیت لري. ده به ویل مسیحیت الهي رمز راز دی، چې یوازې د ایمان پر مټ وربانندې پوهېدلای شو. د هغه په خبره، هر چا چې پر مسیح ایمان راوړ، روح یې روښنایي مومي او همدا راز د خدای فوق العاده معرفت ته لار پیدا کولای شي. اوګوستینوس په خپل وجود کې احساسوله، چې فلسفه تر خپل حد یا مرز نه شي اوښتی. څو چې مسیحي نه شي زړه دې آرام نه شي پیدا کولای.
- زه پوه نه شوم، د افلاطون د مثل نظریه څنګه له مسیحیت سره همغږې کېدای شي، تلپاتې مثالونه څه کېږي؟
- ښه! اوګوستینوس باوري دی، چې خدای دا نړۍ له خلا رامنځته کړې ده. دا مفکوره له انجیل او تورات راوتلې ده. یونانیانو ویل، نړۍ تل همداسې موجوده وه. خو اوګوستینوس وایي، مخکې تر دې چې خدای نړۍ پیدا کړي، د هر څه مُثل ورسره و. ده د افلاطون مُثلونه له خدایه وګڼل. په دې توګه هغه د افلاطوني مثلونو لیدلوری وساته.
- څومره چالاک و!

- خو دا مسئله بل څه هم ښيي. دا چې څنګه اوګوستينوس او د کليساو نورو مشرانو هڅه وکړه چې يوناني او يهودي فکر سره ګډ کړي. د فکر دا دوه ښې په دوو بېلو فرهنګونو پورې تړلې وې. اوګوستينوس د بدی په اړه خپل ليدلوری هم په نوي افلاطوني فلسفه پورې تړلی و. د پلوتينوس په څېر باوري و، چې د خدای غيابت پخپله بدي ده. بدي پخپله مستقل وجود نه لري، يو نامعلوم شی دی. څکه خدای له ښېګڼې پرته بل څه نه دي پيدا کړي. اوګوستينوس به ويل، انسان چې د خدای فرمان پر ځای نه کړي بدي ترې زېږي. يا دده په خبره (نيک نيت د خدای کار دی، بدي بيا د انسان سرغړونه).
- دی هم باوري و، چې د انسان روح ملکوتي موجود دی؟
- هو او نه! اوګوستينوس وايي، د خدای او انسان تر منځ داسې دېوال موجود دی، چې تېرېدل ترې ناشوني دي. په دې برخه کې د تورات او انجيل په لارښوونو پورې نښتلي او د پلوتينوس هغه خبره ردوي، چې ويل به يې هر څه سره يو او واحد دي. دی باوري و، چې انسان يو معنوي موجود دی. بشر ـ مادي جسم لري، په مادي نړۍ پورې تړلی دی. خو تر څنګ يې داسې روح هم لري چې کولای شي خدای وپېژني.
- موږ چې مړه شو روح مو چېرته ځي؟
- د اوګوستينوس په خبره، انسان چې ځمکې ته را ښکته کړای شو، نو نسل يې پر ځمکه خور شو، خو خدای په دې وخت کې وغوښتل چې ځينې نسلونه له تلپاتې عذاب خلاص کړي.
- نو خدای کولی شوای په آسانۍ ټول مخلوقات وژغوري
- په دې برخه کې اوګوستينوس ويل، بشر ـ حق نه لري چې د خدای په کارونو کې کار ولري. روميانو ته د پولس ليږلي ليک ته اشاره کوي وايي: اې بنيادمه ته څوک يې؟ له خدای سره بحث کوې؟

لوښي له کولال دا پوښتنه کوي چې زه دې ولې داسې جوړ کړی یم؟ کولال دا حق نه لري، چې له یوه موټي خټې، ښکلي لوښي او له بوه موټي خټې بدرنګ یا بد لوښي جوړ کړي؟

- نو خدای هلته برسېره ناست دی او له انسانانو سره لوبه کوي؟ همدا چې له خپلو بندګانو ناراضه شو، دوی له صحنې لرې کوي؟

- اوګوستینوس به ویل، چې هېڅ بنده د ښښلو وړ نه دی. خو سره له دې خدای غوښتي چې یوه برخه خلک وبښي، نو دا د هغه کار دی چې څوک بښي او چا ته عذاب ورکوي. هر څه مخکې له مخکې ټاکل شوي دي او بندګان ټول د خدای په امنیت کې ژوند کوي.

- نو ویلای شو چې اوګوستینوس هم په یو ډول پر تقدیر باندې د باور مفکورې ته را وګرځېد

- ښايي همداسې وي! خو اوګوستینوس به ویل چې انسان د خپل ژوند د ژغورلو لپاره درونډ مسوولیت لري او هغه باید پر ځای کړي. ده ویل، موږ باید په هوښیارۍ کې ژوند وکړو او هڅه وکړو چې د خدای په خاصو بندګانو کې راشو. د انسان اختیار بې نه رداوه، خو ویل به یې خدای دا وړاندوینه کړې چې موږ به څه ډول ژوند کوو.

- په دې کې خو انصاف نشته دی. سقراط به ویل، د ټولو بخت یو شان دی، ځکه ټول له عادي شعوره برخمن یو. خو اوګوستینوس به خلک په دوو ډلو ویشل. هغه ډله چې ښښل کېږي او هغه ډله چې عذاب ویني.

- ته رښتیا وایې سوفي! د اوګوستینوس الهي حکمت، د آتن تر انسان پالنې یا (انسان د هر څه محور) ډېر لرې دی. خو اوګوستینوس بشر-په دوو ډلو نه ویشي-. هغه یوازې د مقدس

کتاب عذابونه او لارښوونې تشریح کوي او دا یې د الهي مدینې په کتاب کې پوره تشریح کړل.

- ښه څه وايي؟
- د الهي مدینې (د خدای ملک) اصطلاح د تورات او انجیل له تعلیماتو اخیستل شوې ده. اوګوستینوس باوري و، چې د بشر تاریخ د خدای د ملک او دنیا د ملک تر منځ له کشمکشه جوړ شوی دی. دا دوه ملکونه له یو بل بېل نه دي. زموږ د هر یوه په وجود کې ځان ته په ځای پیدا کولو پسې ګرځي. د خدای ملک لږ او ډېر په کلیساګانو کې په ښکاره توګه لیدل کېږي، خو د دنیا ملک په شتمنۍ او دولت کې دی. زه یوه بېلګه درته وړاندې کوم، د خدای د ملک او دنیا د ملک تر منځ د کشمکش مفهوم د روم د امپراتورۍ د زوال پر وخت ډېر قوي شو. اوګوستینوس هم په همدې وخت کې ژوند کاوه، د روم حکومت او کلیسا هر یوه هڅه کوله چې یو تر بل پیاوړي شي. په دې وخت کې به ویل کېدل چې سپېڅلتیا له کلیسا پرته په بل ځای کې نه شي پیدا کولای. د اوګوستینوس د الهي مدیني اصطلاح ورروسته ورروسته یوازې کلیسا ته ځانګړې شوه. په څوارلسمه پېړۍ کې، چې د دینې اصلاح وخت و، د خلکو اعتراضونه را ولاړ شول، چې ولې باید یوازې کلیسا د سپېڅلتیا او پاکۍ ځای وي.
- اوس یې نو وخت را رسېدلی و!
- ښايي اوګوستینوس لومړنی فیلسوف وي، چې تاریخ یې په خپله فلسفه کې ځای پر ځای کړ. د خیر او شر تر منځ جګړه نوې خبره نه وه. اصله خبر دا وه، چې د اوګوستینوس په باور، دا جګړه د تاریخ په صحنه کې رامنځته کېده. د نوموړي د کار په دې برخه کې د افلاطون او د هغه د فکر کوم څرک نشته دی. په دې برخه کې هغه د تاریخ د هغه کرښې تر اغېز لاندې و، چې په

سپېڅلي کتاب کې راغلې ده. هلته لیکلي، چې د خدای د ملکوتو رامنځته کېدل یا رښتیا کېدل ټول تاریخ ته اړتیا لري. د بدی له منځه وړل او د انساني ژوند او ذهن روښانه کول تاریخ ته اړتیا لري. د اوګوستینوس په باور، د انسان تاریخ له حضرت آدم(ع) تر پایه د الهي وړاندوینې، له لارې تنظمېږي. لکه د انسان کیسه کې چې ورو ورو له ماشومتوبه تر زړښت رسېږي.

سوفي بې ساعت ته وکتل، لس بجې وې.

- باید ولاړه شم
- خو لومړی باید د تیاره پېړیو د یوه بل ستر فیلسوف په اړه خبرې درته وکړم. ښه به نه وي چې بهر ولاړ شو، هلته به کېنو؟

آلبرتو پاڅېد، لاس یې وښوراوه. یو څه ولاړل، داسې ښکارېده، لکه په روحاني مسایلو کې چې ژور فکر کوي یا غواړي څه کشف کړي. سوفي په هغه پسې روانه وه، پوه شوه چې بله چاره نه لري.
د سهار لمر لا په وریځو کې پټ و. آلبرتو له کلیسا بهر پر اوږده څوکۍ کېناست. سوفي له ځان سره وویل، که یې څوک هلته بهر ووینې څه به و، نو بیا چې د منځنیو پېړیو د یوه راهب تر څنګ ناسته وې خو بیخې عجیبه ده.

راهب یې بیا خبرې پیل کړې:

- اته بجې دي! د قدیس اوګستینوس له زمانې پوره څلور سوه کاله تېر شوي دي. اوس نو د منځنیو پېړیو د ښوونځیو دور دی. اوس لس بجې دي او ښوونځي یا روزنځایونه د کلیسا او صومعې په ښوونځي جوړ شو. وروسته په نیمه ورځ کې لومړني پوهنتونونه جوړ شول. همدا کلیسا چې زه او ته یې مخې ته ناست یو، ۱۲۰۰ کاله تاریخ لري. هغه وخت ته مونږ عالي ګوتیک وایو. زموږ ښار

هغه وخت د يوې سترې او جامع کليسا د جوړولو ظرفيت نه درلود.

- دې ته اړتيا هم نه وه، له دې خالي کليسا مې زړه تور شو
- آه! خو د يوې سترې کليسا د جوړولو لپاره يوازينی دليل دا نه و، چې هلته دې خلک او لمانځونکي ډېر وي. دا تر ډېره د خدای د جلال او جمال لپاره جوړې شوې وې. دا پخپله د مذهبي تجمل يوه بڼه وه. خو سره له دې په دې دور کې يوه بله پېښه هم وشوه، چې د فيلسوفانو لپاره ډېر ارزښت لري.

آلبرتو څو شېبې، سکوت وکړ، لرې يې وکتل، بېرته خپلو خبرو ته را وګرځېد.

- په هسپانيه کې د عربانو نفوذ لږ لږ احساسېده. مسلمانانو د منځنيو يا تياره پېړيو په اوږدو کې، ارسطويي دودونه ژوندي ساتلي وو. د دولسمې پېړۍ په پای کې اسلامي استازي او پوهان، د مشرانو او واکمنانو د دعوت په موخه شمالي ايټاليې ته راغلل. په همدې وخت کې د ارسطو ډېر آثار و پېژندل شول او بېرته له عربي په لاتين وژباړل شول. دې کار له طبعي علومو سره د خلکو مينه ډېره کړه او بېرته يې د مسيحي تعليماتو او يوناني فلسفې اړيکې ژوندۍ کړې. دا خو ښکاره خبره وه، چې په علمي برخه کې له ارسطو انکار نه کېده، خو د فلسفې په برخه کې بايد تر کومه خايه د ارسطو پيروي شوې وای؟ او تر کومه خايه بايد د تورات او انجيل پر تعليماتو او لارښوونو عمل شوی وای؟ زما په موخه پوهېږې سوفي؟

سوفي يې د هو په مانا سر وښوراوه او راهب يې خبرو ته ادامه ورکړه.

- ددې زمانې تر ټولو مشهور او مهم فيلسوف قديس آکويناس[1] دی. هغه د ۱۲۲۵ او ۱۲۷۴يمو کلونو ترمنځ ژوند کاوه. د روم او

[1] ST. Thomas Aquinas

ناپیل تر منځ د یوه واړه ښارګوټي (آکوینو) اوسېدونکی و. یو ځل وخت یې د پاریس په پوهنتون کې د تدریس چارې مخ ته وړې دي. زه هغه فیلسوف بولم، خو په همدې اندازه یې د الهیاتو په برخه کې هم پوهه درلوده. فلسفې له الهي حکمت سره په هغه وخت کې دومره توپیر نه درلود. خو په لنډه ویلای شم، لکه مخکې مې چې یادونه وکړه، هسې چې اوګوستینوس افلاطون مسیحي کړ، داسې آکویناس هم ارسطو مسیحي کړ.

- د فیلسوفانو مسیحي کول، په داسې حال کې چې تر مسیحیت څو پېړۍ وړاندې اوسېدلي وو، ستا په نظر یو څه عجیب نه دي؟

- خبره دې بېخي سمه ده! خوددې دواړو له مسیحي کولو موخه بل څه ده، دوی یې داسې تفسیر او بیان کړل چې نور نو د مسیحیت لپاره خطر نه وو. هغه څه یې بل ډول تشریح کول چې مسیحي احکامو ته یې خنډ جوړاوه. آکویناس د هغو کسانو له ډلې و، چې د ارسطو د فلسفې او مسیحیت د همغږي کولو هڅه یې وکړه. د فیلسوفانو په باور هغه د ایمان او معرفت یو ګډ بنسټ رامنځته کړ. د ارسطو فلسفې ته ننوت، هغه یې له خپلو افکارو سره ګډه کړه او په دې توګه یې د ایمان او معرفت یو ګډ بنسټ جوړ کړ.

- له بده مرغه زه تېره شپه لږ ویده شوې یم، ویښه نو لږ ګنګسه یم، که خبرې لږ روښانه وکړې ښه به وي.

- ښه! آکویناس باوري و، چې د فلسفې او مسیحیت تر منځ ټکر نشته. ده به ویل، هغه څه چې په فلسفه کې دي او هغه څه چې په مسیحیي تعلیماتو کې دي، سره ورته دي. مسیحیت او فلسفه په ډېرو برخو کې ورته شیان لري، نو له همدې امله، ډېر وخت هغو حقایقو ته د عقل له لارې هم رسېدلای شو چې په تورات او انجیل کې راغلي دي.

- ځنګه؟ عقل ځنګه موږ ته ویلی شي، چې خدای دا نړۍ په شپږو ورځو کې پیدا کړې ده؟
- نه! دا حقیقتونه په ایماني اصطلاح یوازې د عقیدې او مسیحي وحې له لارې ځرګندیږي. خو آکویناس به یو لړ دیني طبعي حقایق یادول. موخه یې هغه حقایق دي چې هم د مسیحیت له لارې پیدا کېدای شي او د طبعي او ذاتي عقل له لارې. د بېلګې په توګه دا یو ستر حقیقت دی چې خدای شته دی. آکویناس وایي، خدای ته د رسېدلو لپاره دوې لارې شته دي. یوه د ایمان او مسیحي وحې لار ده او په باور یې بله لار عقل او حواس دي. دده په خبره له دې دواړو لارو د ایمان او وحې لاره باوري ده. ځکه که یوازې په عقل باور وکړو، خپله لار په ډېرې آسانۍ ورکولای شو. خو له دې ټولو سره سره آکویناس په دې باوري و، چې د ارسطو په څېر د فیلسوف او مسیحیت تر منځ هېڅ بنسټیز ټکر نشته دی.
- نو په دې حالت کې مو چې پر هر یوه زړه وي باور کولای شو؟ ارسطو، تورات یا انجیل په هر یوه؟
- نه نه هېڅ وخت! ارسطو د مسیح له تعلیماتو بې خبره و، نو له دې امله یې دا لار تر پایه نه ده وهلې. خو تر نیمې لارې دتګ او ناسم تګ تر منځ توپیر شته دی. د بېلګې په توګه که ووایو آتن په اروپا کې یو ښار دی، خبره مو ناسمه نه ده، خو ډېره کره هم نه ده. که دې په کوم کتاب کې ولوستل چې آتن په اروپا کې پروت ښار دی، نو ښه به وي چې د جغرافیې کتاب دې هم پسې وګورې. هلته ټول حقیقت پیدا کولای شې، چې آتن د یونان پلازمینه ده، یونان بیا د اروپا په جنوب کې پروت کوچنی هېواد دی. که دې بخت یاري وکړه، نو د آکروپولوس په اړه هم ښایي

څو کلمې پکې ولولې. د ارسطو، افلاطون او سقراط نوم به هم
نه ډېر پکې ولولې.

- خو د آتن په اړه هغه لومړني کم معلومات هم سم دي

- هو رښتيا وايې! آکويناس غوښتل دا خبره ثابته کړي، چې يوازې يو حقيقت شته دی. نو له دې امله که ارسطو داسې څه وايي چې زموږ له عقل سره سم وي، نو د مسيحيت له تعليماتو سره په ټکر کې نه دي. د عقل او احساساتو په مرسته کولای شو، د حقيقت يوازيني يا واحده جنبه درک کړو. د بېلګې په توګه د ارسطو هغه حقيقتونه يادولای شو، چې د بوټو، ژوو او ونو په اړه يې را برسېره کړي او ويلي دي. د حقيقت بل اړخ بيا خدای په سپېڅلي کتاب کې بيان کړی دی. د حقيقت دا دوه اړخونو په مهمو مواردو کې له يو بل سر اړيکه پيدا کوي. د ډېرى مسايلو په اړه سپېڅلی کتاب او عقل يوه خبره کوي.

- مثلا، دا چې خدای يو دی؟

- هو سوفي! سوفي هغه د يوه خدای پر موجوديت باور لري. هغه د داسې يوه خدای موجوديت حتمي ګڼي چې ټول کاينات خوځوي او دوی ته دندې ټاکي. هغه ددغه خدای نوره ستاينه نه کوي. په دې برخه کې نو بايد د سپېڅلي کتاب تعليماتو ته سر ورښکاره کړو.

- دا خبره کره ده چې خدای شته دی؟

- په دې اړه فيلسوفانو، خپلې خبرې کړې دي. خو د خدای له موجوديته انکار نه دی په کار. عقل هم دا نه مني چې ددې ارتو کايناتو د اداري لپاره دې خدايي قدرت نه وي موجود. آکويناس تر دې هم وړاندې ولاړ، هغه باوري و، چې د خدای موجوديت د ارسطو د فلسفې په مرسته ثابتولای شي.

- خدای دې خير ورکړي!

- ده به ويل موږ د خپل عقل په مرسته دا تشخصيولای شو، چې زموږ چاپېر شيان صوري سبب لري. دده په باور خدای د عقل او سپېڅلي کتاب له لارې خان بندګانو ته ښيي. نو له دې امله موږ هم پر (ايماني خدای پېژنده) بحث ته اړتيا لرو او هم پر (طبعي خدای پېژندنه). د موضوع اخلاقي اړخونه هم دغه حالت لري. د سپېڅلي کتاب د تعليماتو له مخې، خدای له موږ غوښتي چې څه ډول ژوند وکړو، خو تر څنګ يې وجدان هم راکړی دی. د هغه په مرسته کولای شو، په طبعي توګه سم او ناسم سره بېل کړو. په اخلاقي ژوند کې هم دې ته ورته دوه لارې شته وي. په دې مانا چې که مو په سپېڅلي کتاب کې هم نه وای لوستي، هغه څه مو چې پر خان نه لوربېدل پر نورو مو نه لورول. پوهېدو چې نورو ته زيان رسول د ښو اخلاقو په چوکاټ کې نه ځايږي. نو تر ټولو ښه لاربښود، د سپېڅلي کتاب تعليمات او د هغه عملي کول دي.
- دا داسې ده لکه، د تالندې او برېښنا په ليدو چې د باران د راتګ خبرې کوو. يا وايو چې ښايي توپان راشي، دا هم تقريباً همداسې يوه مسئله ده که څنګه؟
- هو ته رښتيا وايې! که ړانده هم وو، د تالندې غږ اورو او که کاڼه هم وو برېښنا وينو. خو تر ټولو ښه خبره دا ده چې هم وينو هم اورو. خو سره له دې د اورېدو او ليدو تر منځ کوم تکر نشته دی. خو ددې برعکس دا دواړه حسونه يو بل ته قوت ورکوي.
- وپوهېدم
- زه به يوه بل انځور درته رسم کړم. کله چې د جان شتين بک، د آدميانو او موږکانو ناول لولې...
- دا مې لکه چې لوستی دی

- داسې احساس نه کوې، چې ددې کتاب په لوستلو سره دې د لیکوال په اړه هم لږ او ډېر معلومات پیدا کړي دي؟
- داسې احساس کوم چې هغه هرو مرو چا لیکلی دی
- یوازې همدومره، نور څه دې پیدا نه کړل؟
- بل دا چې لیکوال د بې کوره خلکو په درد دردېږي
- د شتین بک دا کتاب چې لولې هر مرو دې هغه د لیکوال په اړه هم ځینې تصویرونه ذهن ته درځي. خو دا هغه نه کوې، چې د هغه د شخصي-ژوند په اړه په ځینو شیانو پوه شې. د بېلگې په توگه د کتاب د لوستلو پر مهال دا شیان ستا ذهن ته نه راځي، چې لیکوال د کتاب د لیکلو پر مهال څو کلن دی؟ چېرته یې ژوند کاوه، ان دا چې څو اولاده لري؟
- هو دا شیان خو مې ذهن ته راځي
- خو ته دا معلومات د جان شتن بک په ژوند لیک کې پیدا کولای شې. نو یوازې د ژوند لیک په مرسته کولای شو له شتن بک سره لا ډېر معرفي شوو.
- هو سمه ده!
- د سپېڅلي کتاب او مخلوقاتو په اړه هم وضعیت یو څه دې ته ورته دی. په نړۍ کې په گرځېدو کولای شو، ووایو چې هرو مرو یو خدای شته دی. دا په اسانۍ لیدلای شو، چې خدای له بوټو او گلانو سره مینه لرله نو ځکه یې هغه خلق کړي دي. خو د خدای په اړه شخصي-معلومات یوازې په سپېڅلي کتاب کې پیدا کولای شو. هغه د وجود په اړه ټول معلومات په دې سپېڅلو کتابونو کې لیکلي دي.
- ستا خو ډېر ښه مثالونه زده دي
- همممم

آلبرتو د لومړي ځل لپاره په فکرونو کې ډوب شو او دې خبرې ته يې خواب ور نه کړ.

سوفي ځان کنټرول نه شواى کړى. له آلبرتو يې پوښتنه وکړه

- دا شيان په هيلده پورې څه اړه لري؟

- موږ هيڅ نه پوهيږو چې د هيلدې په نامه به کوم څوک وي که نه؟

- خو يو څوک شته چې د هغه نوم او نښان هره شېبه موږ ته يادوي. د غاړې وربښميني دسمال، پست کارتونه، د پيسو شنه بکسه، د جورابې يوه دانه...

آلبرتو يې سر وخوځاوه!

- که فکر وکړو، يوازې د هيلده پلار دى، چې موږ ته ددې ستونزې حل را په ګوته کولاى شي. خو اوس بس دومره پوهيږو، چې يو څوک پر له پسې پستي کارتونه رالېږي. دريغه د ځان په اړه يې هم څه پکې ليکلى. په دې اړه بيا بل وخت خبرې کوو.

- اوه! ۱۱و ته ۱۵ دقيقې پاتې دي، زه بايد د تياره پېړيو تر پاى مخکې کور ته ورسيږم.

- زه څو خبرې نورې کوم، بيا موضوع ختموم. دا بايد درته تشريح کړم، چې آکويناس، څه ډول د ارسطو له هغو مباحثو په خپلو خبرو کې کار واخيست، چې له الهياتو سره يې ټکر نه درلود. په دې مباحثو کې، منطق، د پېژاند نظريه او تر ټولو مهمه د ارسطو طبعي فلسفه راځي. ستا به په ياد وي، چې ارسطو د حيواناتو او نباتاتو د ژوند تاريخي جريان څه ډول تشريح کړى و؟

سوفي د هو په مانا سر وخوځاوه.

- ارسطو به ويل، دا ټوله طبقه بندي هغه خداى موږ ته راپېژني، چې په دې مخلوقاتو کې يې دا دومره تنوع راوستې ده. کولاى شو مسيحي الهيات د امکان په دې دايره کې ځاى پر ځاى کړو.

آکويناس وايي دا کاينات څان ته درجې لري، له بوټي تر حيوانه، له حيوانه تر انسانه او له انسانانو تر پرښتو او له پرښتو تر خدای دا سلسله دوام لري. انسان د حيوان په څېر جسم لري، حسي اندامونه لري، خو انسان يا د عقل او هوښ څواک هم لري. همدې مسئلې ده ته د استدلال څواک ورکاوه. پرښتې چې دا ډول اندامونه نه لري، له همدې امله له چټک هوښ برخمنې دي. د انسان په څېر نه دي چې تفکر ته اړتيا لري. دوی استدلال او بحث ته اړتيا نه لري. موږ هر څه ګام پر ګام زده کوو، خو دوی زموږ پر خلاف په هر څه پوهيږي. نو دا چې جسم نه لري، مرګ هم نه لري. خو د خدای په څېر تلپاتې نه دي، ځکه دوی خدای پيدا کړې دي. دا چې جسم نه لري، له هغه بېلېږي نه، نو ځکه نه مري.

- څومره عالي!
- خو سوفي، پر پرښتو د خدای امر چلېږي. هغه کولای شي هر څه ووينې او واوري.
- نو اوس موږ ويني؟
- هو ولې نه! خدای ته زمان او وخت داسې نه دی لکه موږ ته چې دی. زموږ حال زمانه د خدای له حال زمانې سره توپير لري. دا چې يو پر بل پسې اونۍ په موږ پسې تېرېږي په دې مانا نه دې چې پر خدای دې هم همدا اونۍ او ورځې تېرې شي.

سوفي حيرانه شوه، غوښتل يې څه ووايي، خو بېرته يې لاس په خوله کېښود. آلبرتو د سترګو تر کونجونو ور وکتل. سوفي يې خبرو ته ادامه ورکړه.

- پرون د هيلده د پلار بل ليک هم راغلی و. داسې يو څه يې ليکلي و. که سوفي ته يو څه يو يا دوې اونۍ اوږده شي په دې

مانا نه ده چې موږ ته دې هم دومره اوږده شي. دا هغه څه دي
چې تاسې د خدای په اړه وویل.
سوفي د قهوېي چېنې تر خولې لاندې د آلبرتو په سترګو کې غوسه
ولیده.
- دا سړی هېڅ شرم نه لري!
سوفي بې په موخه سمه پوه نه شوه. آلبرتو بې خبرو ته ادامه ورکړه.
- له بده مرغه آکویناس هم د ښځو پر وړاندې د ارسطو په څېر
چلند کاوه. ستا په یاد دي، چې ارسطو به لږ او ډېر ښځه نامکمل
نارینه باله. فکر یې کاوه، چې اولادونه یوازې د خپل پلار خویونه
او خواص له ځان سره لري. ده به ښځه غیر فعاله او منونکې بلله
خو نارینه ورته فعال جنس ښکارېده. د آکویناس په خبره دغه
نظریې د سپېڅلي کتاب له تعلیماتو سره همغږې دي. ده به د
سپېڅلي کتاب دې خبرې ته اشار کوله چې ویل به یې، ښځه د
نارینه له پښتۍ پیدا شوې ده.
- اوهو دا څه ډول خبرې دي!
- ښایي درته په زړه پورې وي، چې تي لرونکو د تخمې یا سپرم
سلولونه تر ۱۸۲۷ز کال پورې کشف شوي نه وو. نو دا
حیرانوونکې نه وه، چې انسانانو به نارینه، ژوند ورکوونکی، د
نسل تولید کوونکی باله او باوري و، چې دا هر څه یوازې نارینه
کولای شي. ددې تر څنګ آکویناس د ښځې مادي وجود تر
نارینه ټیټ باله، خو باوري و، چې د ښځې او نارینه روح سره یو
شان دی. دده په باور په جنت کې بیا نارینه او ښځینه سره یو شان
دي، ځکه جنسیتي توپیرونه هلته له منځه ځي.
- څومره ستړې کوونکې! په تیاره پیړیو کې ښځینه فیلسوفانې نه
وې؟

- په تياره پيړيو کې د کليسا د حکومت قوت و. پر هر څه نارينه حاکمان وو. خو دا په دې مانا نه ده چې، د فکر او فلسفې ښځينه ښځه به نه وه، له دې ډلې يوه هيلده ګارد وه، په هغه په بينګن[۱] کې اوسېدله.

سوفي يې سترګې پرانيستې. آلبرتو ته يې په ړد ړد وکتل:

- دا خو زموږ له هيلدې سره څه اړيکه نه لري؟
- ته هم څومره پوښتنې کوې سوفي! هيلدې ددنيا له چارو لاس اخيستی و. د ۱۰۹۸ او ۱۱۷۹ ز کلونو ترمنځ يې په راين دره کې ژوند کاوه. سره له دې چې يوه ښځه وه، خو ليکواله، واعظه، طبيبه، بوټي پېژندونکې او پر طبعي علومو پوهه وه. دا نو ستره نمونه ده، چې ښځې آن په تياره پيړيو کې هم، فيلسوفانې او عالمانې وې.
- ښه هيلده څه شوه؟
- مسيحيانو او يهوديانو له تېرو زمانو پر دې باور درلود، چې خدای د نارينه خاصيت تر څنګ ښځينه خاصيت هم لري. نو خدای يوازې نارينه نه دی. هغه دواړه اړخونه لري. له همدې امله دوی باوري دي، چې ښځې د طبيعت د مور په څېر د خدای په تصور کې شته وې. په يونان کې د خدای دغه زنانه اړخ ته سوفيا وايي. سوفيا يا سوفي د پوهې په مانا ده.

سوفي يې سر وخوځاوه، خوشاله وه. ويل يې ولې تر اوسه چا نه دي ورته ويلي؟ ولې يې تر اوسه د خپل نامه د مانا په اړه پلټنه نه وه کړې؟
آلبرتو يې خبرې وغځولې.

- سوفيا يا د طبيعت د مور خدای، د ټولو تياره پيړيو په اوږدو کې د يهوديانو او ارتودوکس کليسا د لارويانو لپاره ځانګړې ارزښت درلود. په غرب کې دا مسئله هېره شوه. تر دې چې هيلده ګارد

---
[۱] Hildegard Bingen

سر را پورته کړ او سوفیا یې په ښکلو جامو او ګران بیه زېوراتو کې پټه ولیده. هغه ته یې د زړه په سترګو وکتل او ښځه یې هم وړ انسان وبلله.

سوفي یې له ځایه پورته شوه.

- هیلده ګارد سوفیا ته د زړه په سترګو کتلي و؟

بېرته کېناسته، آلبرتو یې لاس د هغه پر اوږه کېښود.

- دا نو داسې څه دي چې پلټلو ته اړتیا لري. خو اوس له ۱۱و هم څو دقیقې تېرې دي. ته باید کور ته ولاړه شې او موږ هم یوه نوي عصر او زمان ته رسېږو. زه به دې بل ځل بیا د رنسانس په اړه زده کړو ته را وبولم. هرمس به ستاسې بڼ ته درشي او تا به له ځان ورسره راولي.

ناپېژانده راهب دا خبرې وکړې او پورته شو. سوفي پر خپل ځای پاتې شوه، د هیلده ګارد او سوفیا، سوفي او هیلده په اړه یې فکر وکړ. ناڅاپه پورته شوه او په ناپېژانده راهب پسې یې غږ وکړ.

- په تیاره پېړیو کې آلبرتو نه و؟

سوفي مخ را واړاوه. چټک ګامونه یې ورو کړل. لږ سکوت یې وکړ، بیا یې خبرو ته ادامه ورکړه:

- آکویناس د فلسفې یو ښوونکی درلود، ستر آلبرټ یې باله....

بېرته یې مخ واړاوه، د سن ماري په ستره کلیسا کې ورک شو. سوفي په دې خواب قناعت و نه کړ. په هغه پسې یې د ننه کلیسا ته منډه کړه. په ټوله کلیسا کې توره تیاره وه، خو آلبرتو لکه اوبه په ځمکه کې ننوتی و.

سوفي غوښتل له کلیسا ووځي، د وتلو پر مهال یې، د مریم پر انځور سترګې ولګېدې. ور نږدې شوه او انځور ته یې ښه ډېر وکتل. د مریمې د انځور په یوه سترګه کې یې یو څاڅکی اوبه ولېدې. اوښکې وې؟

سوفي په منډه منډه له کلیسا ووته او ځان یې یووانا ته رساوه.

# رنسانس

## ...اې د انسان په پټوکي کې الهي موجوده...!

سوفي په پوره ۱۲ بجو د یووانا کور ته ورسېده. په ډېرو منډو یې سا بنده بنده کېده. یووانا د خپل کور د زېړې دروازې مخې ته د هغه په انتظار ناسته وه.

په غوسه یې وویل:

- پنځه ساعته وشول چې تللې یې!

سوفي یې سر وخوځاوه.

- نه نږدې زر کاله وشول چې تللې وم.
- په کوم قبر کې وې؟ ته لیونی یې، مور دې نیم ساعت مخکې زنګ وهلی و.
- بښه نو تا څه ورته وویل؟
- ما وویل ولاړه درملتون ته. هغه ویل چې راغله ما ته زنګ ووهه. خو زما د مور او پلار خبره دې هم باید لیدلې وای. د سهار په لسو بجو له چای او ککو سره یو ځای راغلل کوټې ته چې ستا ځای خالي وو.
- هغوی ته دې څه وویل؟
- زه ورخطا شوم، و مې ویل، جنجال مو وکړ او سوفي یې کور ته ولاړه.
- ښه نو زر باید په خوله شو او سره ملګرې شو. باید پام مو وي، چې ستا مور او پلار زما له مور سره څو ورځې خبرې و نه کړي او سره و نه ګوري. فکر کوم دا کار کولای شو.

یووانا یې اوږې پورته واچولې. په همدې شېبه کې د یووانا پلار د څنګلوري کور له کونجه را واوښت، ربړی یې ټېله کوله. د تېر کال وچ پرې کړي ښاخونه پکې پراته وو. د کار جامې یې اغوستې وې.

- اوهو! بېرته سره په خوله شوې يې. ښه د تلخوني له زينو مې هم پانې ټولې کړې دي.

سوفي وويل:

- ښه نو اوس ددې پر ځای چې د خوب په کوټه کې شير چای وڅښو هلته يې څښې شو.

د يووانا پلار په زوره زوره وخندل. د يووانا خوله له حيرانتيا خلاصه پاتې شوه. په حاضر ځوابۍ کې د سوفي کورنۍ تل د مالي مشاور بريګستن تر کورنۍ تېزه وه.

سوفي يووانا ته وويل:

- وبښه نو يووانا! خو زه هم بايد ددې پرده پوښۍ په معامله کې خپله ونډه واخلم

- ته نه غواړې ما ته ووايې چې کيسه څه ده؟

- ولې به نه وايم! خو په دې شرط چې زموږ تر کوره به راسره ځې. پر لار درته وايم. ځکه دا مالي مشاور بايد ددوو نانځکو خبرې وا نه وري.

- دا بده خبره ده! په پلار پسې مې غړېږې

- ګوره يوونا زه تېره شپه هېڅ نه يم ويده شوې. يوه بله خبره، داسې خو به نه وي چې زموږ له هره کاره هيلده خبرېږي يا يې ويني.

د کلور د کوڅې پر لور روانې شوې.

- غواړې ووايې چې ټانوي ليد لري؟

- ښايي هو، ښايي نه!

يووانا له دې ټولو خبرو ناخوښه وه، دا پرده پوښي ورته ستړې کوونکې وه.

- خو دا دليل نه شي کېدای. پلار يې ټول پستي کارتونه په ځنګل کې يوې ورانې جونګړې ته لېږلي دي.

- پوهېږم دا کمزوري ټکي دي

- دا نه وايې چې څېرته وې؟

سوفي زړه غټ کړ او د ناپېژانده فيلسوف ټوله کيسه يې ورته وکړه. د فلسفې د ټولو درسونو کيسه يې لنډه لنډه يووانا ته وکړه. له هغه يې ژمنه واخيسته چې خبرې به ټولې له ځان سره ساتي.

څه لار پټه خوله ولاړې. د کلوور کوڅې ته چې ورسېدې. يووانا وويل دا هر څه مې هېڅ خوښ نه شول. يووانا د سوفي د کور له مخې بېرته خپل کور ته را وګرځېده.

- چيا له تا نه دې غوښتي چې بايد خوښه دې شي. فلسفه د خندا او مسخرو مجلسونو ته ورته نه ده. هغه دا وايي چې موږ څوک يو او له کومه راغلي يوو. ته وواېه په ښوونځي کې دا شيان موږ ته راښيي؟

- دا پوښتنه ځواب نه لري.

- هو خو موږ ته په ښوونځي کې ان دا نه را ښيي چې ددې شيانو په اړه بايد پوښتنې وکړو!

سوفي چې پخلنځي ته ننوته، سهارنۍ لا پر ميز وه. مور يې پوښتنه و نه کړه، چې ولې بې د يووانا له کوره زنګ نه دی ورته وهلی.

له سهارنۍ وروسته يې مور ته وويل، څې چې لږ چورت ووهي. ويل بې د يووانا په کور کې هېڅ ويده شوې نه ده. تر خوب مخکې برنجي آينې ته ورغله، د کوټې پر ديواله يې ځوړنده وه. اول يې خپل سپين، ښايسته او ستړی مخ وليد. خو ناڅاپه داسې ورته ښکاره شوه، چې د څېرې تر څنګ يې يوه بله سپېره څېره هم ښکاري. سوفي اوږده سا و ايسته. لکه چې بيا خيالي شوې ده، خيالي شيان ويني.

خپل وېښته يې سمول، داسې وېښته چې بې له خپل طبعي حالته په بله هېڅ بڼه نه جوړېدل. د بلې نجلۍ څېره څېره لا هم د اينې تر څنګ ښکارېده. بلې نجلۍ ناڅاپه په دواړو سترګو سترګک وهل پيل کړل. داسې ښکارېده لکه خپل رښتيني موجوديت چې د آينې تر څنګ ثابتوي.

دغه وهم يوازې څو شيبې دوام وکړ. وروسته له هغې نجلۍ ورکه شوه. سوفي د تخت پر څنډه کېناسته، پوره باوري وه، چې د هېنداري تر شا نجلۍ هيلده وه.

حيرانوونکې وه، هر وخت چې ښه ډېره وړې وي، دغه ډول پېښې ورسره کېږي. له همدې امله به يې وروسته له څانه پوښتنه کوله، په رښتيا داسې څه وشول، که نه په خيالي دنيا کې وه.

کالي يې پر څوکۍ کېښودل او پر خپل ځای ننوته. زر خوب يو وړه او حيرانوونکی خوب يې وليد، ټول يې په ياد و.

خوب يې ليده، چې په ستر بڼ کې ولاړه ده. بڼ پر يوه تپه دی او تر تپه لاندې جونګړه ده. پر برنډه يې يوه ښکلې نجلۍ ولاړه وه او اوبو ته يې کتل. سوفي له تپې راښکته شوه، هغه جونګړې ته ورغله او د نجلۍ څنګ ته کېناسته. څو لکه نجلۍ چې دا نه وي ليدلې، سوفي ځان ور وپېژانده. (زه سوفي يم!) څو داسې ښکارېده، چې نجلۍ نه سوفي ليده او نه يې غږ اورېده. سوفي ناڅاپه غږ واورېد، چا وويل (هيلده)، نجلۍ په چټکۍ له ځايه پورته شوه او کور ته ننوته. نو نه ړنده وه نه کڼه! يو سړی رنګ بنګ د نجلۍ په لوري راغی. خړ نظامي کالي يې اغوستي و او شنه بخملي خولۍ يې پر سر وه. نجلۍ لاسونه د دې سړي په غاړه کې ور واچول، او سړي هغه لکه نانځکه څو دورې ګرده وځرخوله. سوفي، پر هغه ځای چې نجلۍ ناسته وه، د سرو زرو صليب وليد، ځنځير پکې پروت و او پر ځمکه غورځېدلی و. هغه يې پورته کړ او په موټي کې يې پټ کړ. په دې وخت کې له خوبه پاڅېده.

سوفي ساعت ته وکتل، دوه ساعته ويده شوې وه، پورته شوه، پر کټ کېناسته، د حيرانوونکي خوب په اړه سوچونو ډوبه کړه. دومره رښتينی و، تا به ويل چې رښتيا يې همدا صحنه په سترګو ليدلې ده. پر دې هم باوري وه، چې دا کور او هغه برنډه هرو مرو په کوم ځای کې شته ده. د خوب انځور ته ورته صحنه د قومندان د جونګړې په انځور کې نه وه؟ سوفي

باوري وه چې هيلده او د هغه پلار يې په خوب ليدلي دي. پلار يې له لبنانه راغلی و. د هيلده پلار تر ډېره آلبرتو کناکس ته ورته و...
پورته شوه، د خوب کټ يې منظم کړ. ناڅاپه يې تر خپل بالښت لاندې طلايي صليب او ځنځير وليد. د صليب پر شا د (ه. م. ک) درې توري ليکل شوي وو. سوفي تر دې وړاندې په خوب ځو ځو ځله ليدلي و، چې خزانه پيدا کوي، خو دا لومړی ځل و چې خوب يې رښتيا شو.
په زوره يې وويل:

- لعنت پر شيطان لعنت!

پېښو نوره ليونی کوله. د انوارۍ ور يې پرانيست. صليب او ځنځير يې په وروستي پوړ کې، له وريښمني دسمال، جورابې او پست کارتونو سره يو ځای کېښود.
پر سبا يې چې له خوبه پاڅېده، ښه خوندوره سهارنۍ يې وخوړه. توده ډوډۍ، د مالټې جوس، هګۍ او د کاهو سلاد تيار وو. ډېر کم وخت به داسې وشول، چې د يکشنبې په ورځ به يې مور تر سوفي وړاندې وېښه شوې وه. خو کله کله به چې تر سوفي مخکې شوه، بيا به يې نو دې ته ښه په زړه پورې او خوندوره سهارنۍ تياروله. له خپل دې کاره يې خوند اخيست.
د سهارنۍ پر مهال يې مور ورته وويل:

- يو پردی سپی باغچې ته راغلی دی، له سهار راهيسې ګرد راګرځي، هر څه بويوي. نه پوهېږم څه کوي دلته ته پوهېږې؟
- هو!

سوفي يې زر له خپلې خبرې پښېمانه شوه

- لکه چې مخکې هم دلته راغلی دی که څنګه؟

سوفي سهارنۍ وخوړه، له څوکۍ پاڅېده. د سالون له کړکۍ يې بهر کتل. باغچه يې تر سترګو تېره کړه، هو هرمس و، د سوفي د پټنځي په خوله کې يې پښې اوږدې غځولې وې.

حيرانه وه چې اوس څه ووايي. د فکر کولو وخت نه و ورسره، مور يې راغله څنګ ته يې ودرېده،
- تا وويل مخکې هم څو ځله راغلی و؟
- هلته به کوم هډوکی وي، يا به يې خښ کړی وي، اوس به راغلی وي، چې خپله خزانه بېرته وکاږي. سپي هم حافظه لري.
- همداسې به وي سوفي، د کور ويترنره خو ته يې
سوفي ورخطا شوه، بايد يوه چاره يې کړې وای
- هغه به يې کورته بوځم
- نو ته پوهېږې چې کور يې چېرته دی؟
سوفي يې اوږې پورته واچولې.
- هرو مرو به يې نښه په غاړه بند ليکل شوې وي.
دوې دقيقې وروسته له زينو ښکته شوه، بڼ ته ور ووته، د هرمس سترګې پر سوفي ولګېدې. په ټوپونو او منډو د هغې لوري ته ورغی. لکی يې ښوروله، او هڅه يې کوله چې د سوفي مخ ته ځان ور ورسوي او پر اوږو يې پښې کېږدي. سوفي وويل:
- هرمسه خيرکه!
پوهېده، چې مور يې له کړکۍ راګوري. له خدايه يې غوښتل چې اوس سپی مخ ته نه شي او له دې و نه غواړې چې ورپسې شي. سپي د فرش شوو ډبرو پر لور منډه کړه. لکه برېښنا له بوټو او چمن ووت. ورو ورو د کور د سترې دروازې په لور روان شو. سوفي د کور ور په ځان پسې وتاړه، هرمس لا هم تر دې څو ګامه مخکې روان و. لار ډېره اوږده وه. ټول خلک د يکشنبې ورځې د رخصتۍ له امله د چکر په موخه راوتلي وو. ډېری کورنۍ ډله ډله رواني وې او خپله ورځ يې له کوره بهر تېروله.
سوفي چې دوی ته وکتل لږ خپه شوه!
کله کله به هرمس په يوه او بله کوڅه شو، د باغچو مخې ته به يې شيان بويول. نورو سپيانو ته به يې ور منډې کړل. خو همدا چې سوفي به غږ

ورباندې وکړ له څنګ پرته به يې څان ورته را ورساوه. له سترو چمنونو تېر شول. د فوټبال ميدانونه يې تر شا پرېښودل. پر لار يې د ماشومانو د لوبو څېزونه وليدل. يوه ځاى ته ورسېدل، چې نقليه وسايط لږ لږ ډېرېدل. د يوه ستر پياده رو پر سر چې په ډېرو پوښل شوى و، د ښار په لور روان شول.

هرمس مخکې و، د ښار له ميدانه تېر شو، د کليسا پر سرک روان شو. يوه تاريخي او لرغوني ښار ته ورسېدل. د پېړيو، سترې او قوي کلاګانې ولاړې وې. يوې نيمې ته څو دقيقې پاتې وې.

اوس آن د ښار بل اړخ ته راغلي وو. سوفي دې خواوو ته ډېر نه وه راغلې. ان کله چې ماشومه وه، د سپين سرې عمه ليدو ته يې له خپلې مور سره دې کوڅو ته راغلې وه.

وروستى ځاى چې ور ورسېدل، څو پخواني واړه کورونه وو. هر څه ډېر زاړه او د کلونو ښکارېدل. خو سره له دې يې دا ځاى نوى ميدان باله. ښار سر تر پايه لرغونى او پخوانى و. ډېر مخکې په منځنيو پېړيو کې جوړ شوى و.

هرمس د ۱۴ام کور پر لور ورغى. هلته ودرېد سوفي ته يې وکتل، تر هغه ولاړ و، چې سوفي ور پرانيست. د سوفي زړه ودرزيد. په وره ننوته، په کور کې دننه څو شين رنګه لرګين پستې صندقونه پر دېواله لګېدلي وو. پر يوه لوړ صندوق باندې پست کارت سرېښ شوى و. پر هغه يو مهر لګېدلى و، ورباندې ليکل شوي و. (اخيستونکى و نه پېژندل شو).

اخېستونکې، هيلده، مولرکناګ، د کور نمبر ۱۴ نوى ميدان. د پست د مهر تاريخ ۱۵م و، تر اوسه دوې اونۍ پاتې وې. خو ښايي ليک رسوونکي دې مسئلې ته پام نه و کړى.

سوفي کارت را واخيست:

ګرانې هيلده!

اوس سوفي د فيلسوف کور ته څي. ډېره ژر به پنځلس کلنه شي. خو ستا کليزه تېره ورځ وه او ته پنځلس کلنه شوې. که نه نن به

پنځلس کلنه کېږي؟ که نن وي نو ناوخته شوې ده. خو ګوره زما او ستا ساعتونه سره یو شان نه دي. یو نسل زړېږي او بل نسل رامخ ته کېږي. تاریخ خپله لار وهي. تر اوسه دې فکر کړی، چې د اروپا تاریخ د انسان له ژوند سره ورته دی؟ لرغوني پېړۍ لکه د ماشومتوب ورځې، بیا تیاره پېړۍ، چې د پاخه عمر او زده کړو زمانې ته ورته دي، اروپا په دې وخت کې په تحصیل لاس پورې کړ. بیا رنسانس راغی. د زده کړو او تحصیل اوږده زمانه په همدې وخت کې پای ته ورسېده. اروپا په پوره قوت، مینه او خوښۍ د ځوانۍ پر عمر ګام کېښود. داسې ویلای شم، چې رنسانس د اروپا د پنځلس کلنۍ ورځ وه. نن د جون پنځلسمه ده، میاشت نیمه شوې ده. لورکۍ، ژوند څومره ښکلی دی!

پایلیک:

خبر شوی یم، چې طلايي صلیب دې ورک کړی دی. خپه شوم. ته باید پوه شې چې شیان لا تېنګ او کلک وساتې. پلار دې درنه څار شه! نور مو لیدلو ته دومره وخت پاتې نه دی!

هرمس په منډه منډه پر زینو وخوت. سوفي پست کارت واخیست او پر هرمس پسې ولاړه. سوفي ته د زینو په سر کې ودرېد، چې ور ورسېده خوشاله شو، لکۍ یې وښوروله. له دویم، درېیم او څلورم پوړ تېر شول. له هغه وروسته بام ته تللې زینې وې. ښایي د بام سر ته ختل. هرمس پر زینو وخوت، واړه وره ته ودرېد او پر وره یې پنجې راکش کړې. سوفي د چا د را نږدې کېدو غږ واورېد. ور پرانیستل شو. آلبرتو کناکس د وره په خوله کې ولاړ و. جامې یې بدلې کړې وې او نورې یې اغوستې وې. دا ځل یې جورابې په پښو وې، خو لنډ پتلون یې اغوستی و، زنګونه یې تړې ښکارېدل. پر اوږو یې زېړ پنبه یي کوټ پروت و. سوفي د قطعو د جوکر په فکر کې شوه. ښایي دا د رنسانس د دور معمولي او دودیزې جامې وې.

سوفي په حيرانتيا وويل:

- جوکر!

آلبرتو يې ټيله کړ، تر وره ور ووت، خپله غوسه يې بيا د فلسفې پر ښوونکي تشه کړه. د راتګ پر مهال يې د پستي کارت ليدو فکر ګډوډ کړی و.

آلبرتو په سوفي پسې دروازه وتړله.

- آرامه اوسه لورکۍ!

- دا هم ستاسې د نن ورځې پست.

پست کارت يې آلبرتو ته ورکړ. ته به وايې ددې کار مسوول هغه دی.

آلبرتو کارت ولوست او سر يې وښوراوه.

- ورو ورو بې ادبه کېږي. دا سړی د خپلې لور د کليزې په بهانه پر موږ مسخرې کوي.

دا يې وويل، کارت يې ټوټه ټوټه کړ او ستل ته يې واچاوه. سوفي وويل:

- وايي هيلدې يې خپل صليب ورک کړی دی

- هو ومې لوستل

- خو ما صليب، هو همدا صليب ما په خپل کور کې تر بالښت لاندې پيدا کړ. دا ويلای شې چې زما تر کوټې څنګه رسېدلای دی؟

آلبرتو جدي شو، همداسې جدي يې د سوفي سترګو ته وکتل.

- ښايي تا ته حيرانوونکي ښکاره شي، خو دا تر مداري ګری ور هاخوا هيڅ شی نه دي. دا کارونه هغه ته د اوبو څښلو په څېر آسانه دي. راځه چې د سپينې سويې کيسې ته ور وګرځو. هغه چې د کايناتو د مداري له خولې راوځي.

د ناستې کوټې ته روان شول. سوفي په خپل ژوند کې دومره عجيبه کوټه نه وه ليدلې.

په پراخ کور کې یې ژوند کاوه، پر دېوالونو یې نقاشۍ شوې وې. رڼا د گومبزې ته ورته چت له کړکۍ مستقیم د ننه کوټې ته راغلې وه. بله کړکۍ مخامخ ښار ته وتلې وه. سوفي له دې کړکۍ د ښار ټول پخواني کورونه او د هغوی بامونه لیدلی شوای.

خو سوفي ته تر ټولو په کوټه کې شته څېزونه حیرانوونکي وو. فرشونه، لوښي، څوکۍ، د تاریخ بېلابېلې دورې. د دېرشمې لسیزې څېزونه، د پېړیو د لومړیو کلونو وسایل او داسې یوه څوکۍ چې ښایي سل کاله مخکې جوړه شوې وه. یوازې څېزونه حیرانوونکي نه و، عتیقه توکي، هم د ساتلو وړ او هم د کارونې وړ په کوټه کې ښکارېدل. انواری له داسې څېزونو ډکې وې. لرغونی ساعت او گلدان، آونگ او لاستي، نانخکه او چاکو، له وزر جوړ شوی څانگړی قلم، د هندسې نقاله، قطب نما او همدا راز د فشار کتلو آله. یو دېوال سر تر سره له کتابونو ډک و. دا نو هغه کتابونه نه و، چې په پلورنځیو کې پلورل کېدل. دوی نو هر یوه سلگونه کاله عمر درلود. پر بل دېوال انځورونه او رسامۍ را ځوړندې وې. خینې د وروستیو لسیزو محصول وې، خو ډېرو بیا لسگونه کاله تاریخ درلود. نقشې او لارښوونې هم ډېرې پر دېواله ځوړندې وې، خو یوه هم د ناروې په اړه ډېره کره نه وه.

سوفي څو شېبې پټه خوله ودرېده او کوټې څلور کونجه یې تر نظر تېر کړل. مخامخ دېواله ته یې کتل، آلبرتو ته یې وویل:

- څومره ککړ بلا بتر دې را ټول کړي دي
- سپکاوی مه کوه. ولې فکر نه کوې، د څو پېړیو تاریخ مې دلته را ټول کړی دی او ته ورباندې مردار بلا بتر نوم ږدې؟
- ښه ته به هرو مرو د عتیقه آثارو کوم پلورنځی لرې یا دې ته ورته کوم څه ها؟

آلبرتو یو څه خپه شو.

- سوفي موږ ټول کولای شو، پرېږدو چې د تاریخ څپې مو له ځان سره یوسي. خو زموږ له دلې څښتې باید لږ وخت ودرېږي او هغه څه راښوول کړي چې د سینه پر څنډه پاتې دي.

- څومره عجیبه خبره

- هو لورکی! خبره مې عجیبه خو سمه ده. موږ یوازې پخپله زمانه کې ژوند نه کوو، خپل تاریخ هم د خپل وجود په ژورو کې له ځان سره وړو. دا مه هېروه، چې په دې کوټه کې ټول شته شیان یو وخت نوي او ښکلي وو. هغه لرګینه نانځکه د شپاړسمې پېړۍ ده. هغه د پنځه کلنې نجلۍ د کلیزې په پار جوړه شوې ده. ښایي عمر خوړلي نیکه یې ورته جوړه کړې وي. وروسته نجلۍ لس پنځلس کلنه شوې ده، پېغله شوې ده او واده یې کړی دی. ښایي دې هم لورکۍ نړۍ ته راوړه او دا نانځکه یې هغه ته ډالۍ کړه. پخپله زړه شوه او یوه ورځ له دې نړۍ ولاړه. هغه به بیا را و نه ګرځي. ویلای شو، چې د لنډې لیدنې لپاره دلته راغلې وه. خو نانځکه یې، هغه وینې چې اوس هم هغه ده پر انواري پاس ناسته ده.

- ته چې داسې خبرې پیل کړې، هر څه راته جدي، ستړي کوونکي او غم لړلي ښکاره شي

- ژوند یو څه جدي او غم لړلی دی، موږ دې حیرانوونکې نړۍ ته را کاږي. موږ دلته یو بل وینو، سره ملګري کېږو، یو بل پېژنو، بیا شېبه له یو بل خپه شو، بېرته لاسونه سره ورکړو، ناڅاپه په ډېره ناروا توګه پر همغه لار بېرته ولاړ شو چې ورباندې راغلي وو.

- له تا یو څه پوښتلی شم؟

- هو، خو قوي پوښتنې به کوې، د موږک او پیشو لوبه ختمه ده.

- ته ولې د قومندان په کور کې وې؟

- ددې لپاره چې د ليکونو د ليږلو پر وخت سره لرې نه و، نو زه پوهېدم چې د قومندان کور تش دی.
- نو مستقيمه ولاړې او هلته و اوسېدې؟
- هو
- نو په دې خبر به هم پوهېږې، چې د هيلده پلار، هلته ستا په اوسېدو څه خبر شو؟
- که تېروتنه و نه کړم، هغه په هر څه خبرېږي
- خو زه نه پوهېږم، ليک رسوونکی يې څنګه اړ ايستلای شي، چې ليکونه د ځنګله زړه ته يوسي!

آلبرتو مسک شو.

- دا شيان د هيلدې پلار ته ډېر ساده دي. لکه اوبه چې څښې. بې ارزښته، آسانه او ساده. ښايي مونږ هم تر يوې بې جوړې نظارت لاندې دلته ژوند کوو.

سوفي تر دې ډېره غوسه کېده.

- که زه ورسره مخامخ شوم، سترګې يې په ګوتو را وباسم!

آلبرتو د کوټې بل سر ته ولاړ. پر څوکۍ کېناست. سوفي نږدې ورغله او پر نرمه څوکۍ کېناسته. آلبرتو په خبرو پيل وکړ:

- يوازې فلسفه موږ د هيلده پلار ته ورنږدې کولای شي. نن غواړم د رنسانس په اړه خبرې درته وکړم.
- مهرباني وکړه!
- د قديس توماس آکويناس تر مړينې وروسته، په مسيحي فرهنګ کې يو درځ را پيدا شو. فلسفه او علم ورو ورو له کليسا او الهياتو فاصله واخيسته. له مذهبي ژوند سره د عقل او منطق اړيکه خپلواکه شوه. په دې وخت کې خلکو پر دې ټينګار کاوه، چې د عقل له لارې خدای ته نه شو رسېدلای، ځکه خدای له هره اړخه د پلټنو وړ نه دی. د انسان لپاره تر ټولو مهمه مسئله دا ده، چې د

خدای ارادې ته تسلیم شي، نه دا چې په الهي رمزونو پسې پلټنې پیل کړي.

- اوس نو چې دین او علم له یو بل سره آزادې اړیکې پساللی شوای، د نوو علمي تګلارو او مذهبي شور او مینې لپاره لار پرانیستل شوه. په دې توګه نو د پنځلسمې او شپاړسمې پېړۍ د دوو ځواکمنو غورځنګونو بنسټونه ودرېدل او د دیني اصلاح چارې پیل شوې. همدا پېښه د رنسانس په نامه یاده شوه.
- دا شیان یو په یو څرګندای شو؟
- له رنسانس مې موخه، د هغه لوړ فرهنګ د تو کېدو دوره ده، چې د څوارلسمې پېړۍ په پای کې پیل شوې. سرچینه یې شمالي ایټالیا وه، په شپاړسمه او پنځلسمه پېړۍ کې په چټکۍ په شمال کې خپور شو.
- موخه دې دا ده، چې (رنسانس) د ژوند د بیا نوي کېدو په مانا ده؟
- هو! او څه چې بېرته راژوندي کېدل، هغه لرغوني فرهنګ او هنر و. په دې وخت کې له انسان محوري خبرې کېدې. څکه تیاره پېړۍ تېرې وې. په هغه وخت کې ټولو کایناتو ته د الهي نور له زاویې کتل کېدل. اوس نو یو ځل بیا هر څه پر انسان را چورلېدل. د وخت شعار (اصل ته ورګرځېدل) و. موخه یې هم تر هر څه مخکې او ډېر پر انسان تمرکز کول و. په لرغونو پېړیو کې هم همداسې وه، تر هر څه وړاندې انسان و او انسان د هر څه محور ګڼل کېده.
- د جسدونو څېړې کول، څېړل، پخواني شیان راسپړل، د وخت نر ټولو نبې بوختیاوې وې. د یوناني ژبې زده کړه د خلکو په منځ کې دود شوه. انسان پالنې روزنیزې او تعلیمي موخې هم لرلې. دوی انساني خویونه روزل، د کلاسیکې زده کړې او تحصیل

بنسټ همدلته کېښودل شو. دوی به ویل، نـه آس لـه ښـه نسـله زېږي، خو انسان بیا داسې نه دی، روزنې او تعلیم ته اړتیا لري.

- موخه یې دا وه، چې انسان کېدو لپاره باید تعلیم وکړو؟
- هو! موخه یې همدا وه. مخکې تـر دې چـې د انسان پـالنې یـا انسـان محـوري نظریـه پـه کـره توګـه ولولـو، د رنسـانس پـر تـاریخ بـه لـږ تـم شو. د رنسانس په فرهنګي او سیاسي شالېد به څه خبرې وکړو.

آلبرتو لـه څـوکۍ پورتـه شـو، پـه کوټـه کـې یـې ګامونـه واخیستل. لـږ شـېبه وروسته ودرېد، په انوارۍ کې یې شته عتیقه څېز ته ګوته ونیوه:

- دا څه شی دی؟
- له بنې خو قطب نما ته ورته ده
- هو خبره دې سمه ده

وروسته یې پر دېوال خوړندې پخوانۍ وسلې ته ګوته ونیوله

- نو دا؟
- پخوانۍ ټوپک دی
- هو سمه ده او دا؟

آلبرتو ستر کتاب له انوارۍ را واخیست.

- پخوانی کتاب دی
- کـه وغـواړو خـبره مـو سـل پـه سـلو کـې کـره وي، نـو د کتـاب نـوم، اینکونابلوم[۱] دی.
- اینکو نابلوم؟
- ددې کلمـې مانـا (زانګـو) ده. دا کلمـه ده، د هغـو کتـابونو لپـاره کـارول کېـږي، چـې د چـاپ د صـنعت پـه لومړیـو کلونـو کـې یعنـې د ۱۵۰۰ کال په شاوخوا کې چاپ شوي دي.
- دا کتاب رښتیا دومره عمر لري؟

[۱] Incunabulum

- هو لري يې. دا دري نور نوي کشفيات دي، ګرمه وسله، قطب نما او د چاپ ماشين. دا په اصل کې د رنسانس د پيدايښت اصلي توکي دي.
- دا مسئله يو څه راته روښانه کړه
- قطب ښودونکې آلې د سيندونو سفرونه آسان کړل. په بله وينا، دا وسيله ددې لامل شوه چې ستر کشفيات رامنځته شي. په يوه ښه ګرمې وسلې هم همدا حالت درلود. نوو وسلو اروپايي فرهنګونو ته د امريکايي او اسيايي فرهنګونو په پرتله غوره والی ورکړ. سره له دې چې دا وسلې پخپله په اروپا کې هم د بدلون ستر لامل وې. د چاپ صنعت هم همداسې، د رنسانس د افکارو په خپرولو کې يې ارزښتمن رول ادا کړ. د چاپ صنعت کليسا دې ته اړ کړه چې خپل پخواني دريځ پرېږدي او علم د کليسا له ديوالونو وباسي. د نوو وسايلو اختراع همداسې دوام وکړ، يو په بل پسې نوي څېزونه کشف او جوړ شول. د بېلګې په توګه تلسکوپ نوې جوړه شوې آله وه. دغه اختراع د نجوم په اړه پخواني فکرونه له منځه يوړل او نوو مطالعاتو ته يې زمينه برابره کړه.
- ښه ښه! له همدې سپوږمکۍ جوړې او فضايي څېړنې پيل شوې!
- ته ډېره تېزه يې! خو ويلای شو، چې په رنسانس کې رامنځته شوو فکرونو او اختراعاتو ورو ورو انسان تر سپوږمۍ ورساوه. په هر حال په فرهنګي او اقتصادي برخو کې بدلونونه ددې ټولو پرمختګونو پيلامه وه. يو مهم لامل له معيشتي اقتصاده مالي اقتصاد ته د تېرېدو مرحله وه. د وسطا پيړيو په پای کې، ښارونه پراخ شوي وو، پلور او پېر ګڼمور شوی و، د نوو توکو راکړه ورکړه ډېره شوې وه، ددې تر څنګ د اقتصادي او سوداګريزو آسانتياوو لپاره بانکونه ليدل کېدل. په ټولنه کې متوسطه طبقه پيدا شوه، چې د ورځنۍ اړتيا وړ توکو په پلور او پېر کې بې

بشپړه آزادي لرله، اوس مو کولای شو، چې د اړتیا وړ توکي په پیسو واخلو. دې وضعیت خلک هڅول، د تخیل قدرت یې لوړاوه، خلاقیت ډېرېده او خلکو په نوو کارونو لاس پورې کاوه. له هر چا د یوې نوې خبرې او نوي کار تمه کېده.

- دا شیان ډېر لرغوني یونان ته ورته دي، د ۲۰۰۰ کالو په مخکینې یونان کې هم وضعیت همداسې و.
- په تېوله کې همداسې ده. ما دا درته ویلي و، چې یوناني فلسفې څنګه د کلیو او باندو له زړو اسطورو، د هغوی له انځورونو او فکرونو خان خلاص کړ. په رنسانس کې متوسطه طبقه هم ورو ورو د فیوډالانو او کلیسا له منګولو خلاصه شوه. په دې وخت کې یوناني فرهنګ له عربو، هسپانویانو او بیزانس سره د اړیکو له لارې بیا خلې و پېژندل شو.
- د لرغوني پېر درې روان سیندونه سره یو ځای شول
- آفرین! ته تکړه زده کوونکې یې. دا د رنسانس شالید و. اوس به د نوو فکرونو په اړه خبرې وکړو.
- کومه خبره نه ده، خو زه باید ولاړه شم او یو څه وخورم

آلبرتو پر څوکۍ ناست و، سوفي ته یې وکتل

- رنسانس تر هر څه وړاندې په انسان کې نوي لیدلوري ته سا ورکړه. انسان پالنه یا انسان محوري په رنسانس کې د تیاره پېړیو په مقابل کې ولاړه وه، دا فکر یې رد کړ، چې انسان ګناهکار دی او باید دا ګناه وزغمي، دوی به ویل انسان ارزښتمن موجود دی او باید د ارزښت په سترګه ورته وکتل شي. انسان نو اوس عالي او د قدر وړ موجود و. د رنسانس یوه اصلي څېره، مارسیلیو فینچینو[1] و. هغه به ویل، ځان وپېژنه، اې د بنیادم په څېره کې الهي

---

[1] Marsiho Ficino (۱۴۳۳-۱۴۹۹ ز) د ایټالیوي مشهور فیلسوف و، چې اپلاتون او پلوتیس ډېر آثار یې لاتیني ژبې ته وژباړل.

موجوده. بله پېژندل شوې څېره، پیکودلا میراندولا و. هغه د بشر د ارزښت او مقام په اړه د خطابو یو کتاب هم لیکلی دی. داسې کتاب بې لیکلی چې لیکل یې په تیاره پېړیو کې له تصوره وتلې خبر وه.

- د وسطا پېړیو په ټول عمر کې داسې انګېرل کېده چې هر څه د خدای په لاس کې دي. د رنسانس انساناپالو بیا بشر د هر څه محور وباله او د کار د پیل ټکی همدا و.
- یوناني فیلسوفانو هم همدا کار وکړ.
- هو همدا لامل دی، چې د بیا ژوندي کېدو یا د لرغوني یونان د انسان محوری د بیا پیدایښت خبرې کوو. یوه خبره ده، چې د رنسانس انسان پالنه یا انسان محوري تر یونان هم ډېره فرد محوره وه. موږ نه یوازې دا چې انسانان یو، بلکې بې جوړې افراد هم یوو. دا مسئله ددې لامل کېده چې د نامحدوده لمانځنې مفکوره خوره کړي. د رنسانس انسان، آرماني انسان و، یو هر اړخیز نبوغ یې درلود. د علم او هنر په برخه کې خلاق و. دغه نوي لیدلورې د انسان له جسد سره د پوهانو لېوالتیا ډېره کړه. انسانانو لکه د لرغونو پېړیو په څېر د مړو څېړنه او څېړل پیل کړل. دوی د انسان د بدن تشریح او جوړښت ته ملا وتړله. دغه کار طب ته هم ډېره ګټه وکړه. تر څنګ یې په هنر کې نوې لارې و اېستلې. د انسانانو د لوڅو تنو رسامی پیل شوې او د هنرونو په نورو برخو کې هم دا صحنې یادې شوې. وروسته له زرو کلونو ددغه ډول پخوانو وخت هم را رسېدلی و. انسان یو ځل بیا جرأت کړی و چې پخپله دی (انسان) وي او پر هغه څه چې اوس دی و نه شرمېږي.

سوفي پر کوچنۍ میز چې ددې او فیلسوف تر منځ و، پر دواړو لاسو تکیه وکړه و یې ویل.

- ډېره لړزوونکې ده!
- هو په دې کې شک نشته دی. د انسان دغه نوی لیدلوری ددې لامل شو، چې یو نوی ژوند وزېږي. انسان نور یوازې د خدای لپاره ژوند نه کاوه. نو له دې امله یې کولای شوی، چې له خپل اوسني ـ ژوند خوند واخلي. دغې نوې آزادۍ د انسان وزرونه ډېر خلاص کړل. اوس نو موخه دا وه، چې له سختو مرزونو تېر شي. دا د یونان له انسان محوري یو نوی فکر و. ځکه لرغونو انسانپالانو، پر هوساینې، اعتدال، ځان ساتنې او ځان پالنې ټینګار کاوه.
- لکه چې د رنسانس انسانپالانو له ځان ساتنې لاس اخیستی و؟
- په دې کې شک نشته چې ډېر معتدل وو. ددوی چار چلند داسې و، لکه ټوله نړۍ چې نوې له خوبه ویښه شوې وي. دوی پر ځان ډېر نازېدل، پر خپل عصر ـ یې ویاړ کاوه، له همدې امله یې د تیاره پېړیو اصطلاح له خانه جوړه کړه. دوی غوښتل چې په دې توګه خپل عصر ـ له لرغونو پېړیو بېل کړي او هلته د بېلتون یوه وسیله پرته وي. بې جوړې وده او پرمختګ د ژوند په ټولو برخو کې رامنځته شو. معماري، هنر، فلسفې، ادبیاتو، ساینس، موسیقۍ او نورو علومو بې ساري پرمختګ وکړ. زه یوه بېلګه وړاندې کوم. مخکې مې وویل، چې روم یې د ښارونو ښار باله، ډېر ښایسته او بې جوړې و، د نړۍ مرکز به یې هم باله. ددې تر ځنګ یې نور نومونه هم لرل، چې ددغه ښار د عظمت او ستروالي ښکارندویي یې کوله. په تیاره پېړیو کې دغه ښار مخ پر خوړ شو. په ۱۴۱۷ز کال کې، دغه لرغوني ښار یوازې ۷ زره کسه نفوس درلود.
- ښه نو زموږ د ښار د نفوس په اندازه یا ددې په شاوخوا کې
- د رنسانس انسان پالانو، غوښتل د روم شان او شوکت بېرته را ژوندی کړي. دا یې خپله فرهنګي دنده بلله. تر هر څه وړاندې

بې د پتروس پر مزار د سان پيترو کليسا جوړه کړه. د سان پيترو په کليسا کې د زغم او اعتدال هيڅ څرک نشته دی. د نړۍ دېرې نامتو هنرمندانو ددغې ودانۍ لپاره خپلې طرحې وړاندې کړې. د رغولو چارې يې په ١٥٠٦ ز کال کې پيل شوې. ١٢٠ کاله يې دوام وکړ. پنځوس کاله نور هم ورباندې واوښتل، چې د سان پيترو ستر ميدان جوړ شو.

- دا به نو ډېره ستره کليسا وي

- اوږدوالی يې تر ٢٠٠ مترو هم ډېر دی. لوړوالی يې ١٣٠ متره او په شاوخوا ١٦٠٠٠ متره مربع ځمکه کې جوړه شوې ده. دا پخپله د رنسانس د انسان زړورتيا ښيي. رنسانس له ځان سره د طبيعت نوی ليدلوری هم راوړ، چې خورا د ارزښت وړ و. همدا لامل و، چې بشر نړۍ خپل کور وباله، ژوند يې يوازې د آخرت توښه و نه بلله او مادي نړۍ ته يې يوه نوې لار پيدا کړه. په دې وخت کې طبيعت مثبت شی گڼل کېده. د رنسانس انسان به ويل، چې خدای که ستر او با عظمته دی، نو بايد په هر څه کې وي. دغې مفکورې ته وايي (وحدت الوجود). د تياره پېړيو فيلسوفانو به ټينگار کاوه، چې انسان او خدای تر منځ يو ستر او قوي ديوال شته دی. خو اوس يې ويل، چې طبيعت د الهي خلقت پايله ده. ځينې چې تر دې هم يو گام مخکې ولاړل ويل يې، چې دا هر څه د خدای دي، په هر څه کې خدای دی او دا هر څه د خدای د ښکلا نښې نښانې دي. کليسا به تل دغه ډول فکرونو ته په ښه سترگه نه کتل. پر جوردانو برونو چې څه تېر شول ددې خبرې لپاره ښه ثبوت کېدای شي. برونو نه يوازې باوري و، چې خدای په طبيعت کې موجود دی، بلکې ويل به يې کاينات بې پايه او لايتناهي دي. هغه د خپلو باورونو له امله سخته سزا وليدله.

- څنگه؟

- هغه يې په ۱۶۰۰ ز کال کې د روم ښار په ګل بازار کې پر دار وځړاوه.
- څومره وحشتناکه او احمقانه صحنه... تاسې نو دې ته انساناپالنه وايي؟
- نه نه، ګوره برونو انسان پالی و، جلادان خو يې نه وو. د رنسانس په بهير کې که له يوې خوا انسان پالل کېده له بلې خوا د انسان خپل هم دود شول. په رنسانس کې، د جادوګرانو د محاکمې، د سرغړوونکو د مجازات کولو يا سوزولو لپاره خلک ډېر حساس وو. خلک د خونړيو مذهبي جګړو لپاره تيار وو، د امريکا د وحشي نيولو ته اروپايان لېوال وو. ددې ټولو تر څنګ انساناپالنې يوه لوري ته سيوري هم درلود، مو ږ هېڅ وخت يوه څېز ته کاملاً ښه يا کاملاً بد نه شو ويلای. نيکي او بدي دواړه په يوه شي کې موجودې وي، دا نو د بشر- په تاريخ کې اوږد تار لري. دا دواړه کله کله يو بل ته سره برګ شي. په دې اړه زموږ مهم بحثونه وروسته، راځي. د نوو علمي تګلارو او رنسانسي- اختراعاتو د ښو او بدو په اړه وروسته پوره پوره خبرې کوو.
- دا هغه وخت دی چې لومړنی کارخای جوړ شو؟
- نه نه، تر اوسه داسې څه نشته، خو تر رنسانس وروسته د ټولو پرمختګونو لومړني او بنسټيز کارونه په همدې وخت کې تر سره شوي،دي. د همدې نوو علمي تګلارو پر مټ پرمختګونه رامنځته شول. زما موخه دا ده چې علومو ته بيخي له يوې نوې زاويې وکتل شول. ددغه تګلارې فني ګټې وروسته معلومې شوې.
- دا نوې علمي تګلاره څه ډول وه؟
- په نوې علمي تګلاره، کې تر ډېره تکيه پر دې وه، چې په طبيعت کې د خپلو حواسو له لارې هر څه وڅېړو او درک کړو. له

څوارلسمې پېړۍ وروسته، ډېرو پوهانو د پخوانيو د ړندې پيروۍ پر وړاندې غبرګون وښود او پر ضد يې ودرېدل. دا لړۍ همداسې روانه وه، د هغه پوهانو شمېر ورځ تر بلې ډېرېده، چې د سقراط، ارسطو او نورو فلسفي او خيالي نظرونه يې ردول. د مذهبي دودويزو نظرونو پر وړاندې ودرېدل. ددغه باور پر وړاندې هم پوهان وګواښل شول، چې ويل به يې ډېرى مسايل د تفکر له لارې حل کولاى شو. د عقل پر ارزښت په تياره پېړيو کې له اغراقه ډک باور موجود و. په ټولو تياره پېړيو کې عقل حکومت کاوه. خو اوس بيا داسې ويل کېدل، چې هره ښکارنده، بايد د تجربې، مشاهدې، څېړنې او ازموينښت له لارې و پېژندل شي. دې ته وايي تجربي تګلاره.

- مانا يې؟
- يعنې دداسې شيانو پېژندل، چې د انسان د تجربې پر بنسټ رامنځته شوي دي، نه پر يو موټى بې بنسټه خبرو، چې له خيالي افکارو او وېرو زېږېدلې دي. تجربي علم يې په تېرو زمانو کې هم پېژانده. خو د ازموينښتونو تر سره کول بيا يوه نوې خبره وه.
- دوى خو د ازموينښتونو لپاره د اوسني وخت هېڅ وسايل نه لرل.
- هو د حساب ماشين او برېښنايي تله يې نه درلوده. خو رياضيات او عادي تلې ورسره وې. تر ټولو مهمه دا چې خپل مشاهدات به يې په کره توګه په رياضيکي ژبه بيانول. ايټاليوي ګاليله د اولسمې پېړۍ، تر ټولو مهم عالم و. هغه ويل: هر څه چې اندازه کولاى شې، کچ مېچ يې کړه او هغه څه چې نه شې اندازه کولاى د اندازه کېدو وړ يې کړه. ده به همدا راز ويل، چې د طبيعت کتاب د رياضي په ژبه ليکل شوى دى.
- د همدې ازموينښتونو او اندازه کولو پايله وه، چې نننۍ اختراعګانې رامنځته شوې.

- په لومړي سر کې همدا نوې علمي تګلارې وې، چې دا هر څه تـرې رامنځته شول. دې مسئلو ټپخپله صنعتي انقلاب ته لاره هواره کړه. صنعتي پرمختګونو بيا نوررو اختراعګانو ته زمينه برابره کړه. داسې ويلای شو، چې انسان نوې له طبعي حالته د وتو هڅه کوله. له طبيعته يې پښه بهر ايښوده او اوس نو انسان د طبيعت جز او تابع نه و، بلکې طبيعت يې د خپلې ګټې لپاره کاراوه. انګريز فيلسوف فرانسيس بيکن به ويل: پوهه قدرت دی. په دې توګه نو د پوهې او علم پر ارزښت ټينګار کېده. دا خبره په هغه وخت کې نوې وه. بشر-په جدي توګه په طبيعت کې مداخله کوله او ورو ورو يې هغه د ځان په ګټه ځرخاوه.
- ښايي ټول به مثبت بدلون نه و؟
- مخکې مې هم وويل، چې د هر څه نيک او بد اړخونه يو ځای رامنځته کېدل. ځکه دواړه په يوه څېز کې سره اخښل شوي دي. صنعتي انقلاب ته هم د اوبدلو ماشين لاره هواره کړه هم بيکاري، هم دارو او درمل په دې پرمختګونو کې ښکېل وو او هم نوې ناروغي. د بزګري وده، د چاپېريال ککړتيا، د کاليو مينځلو ماشين، يخچال او دې ته ورته شيان هغه څه وو، چې هم يې ژوند آسانه کړ او هم يې تر ځنګ طبيعت او چاپېريال ته زيانونه واړول. نو په دې توګه هر څه مثبت او منفي اړخونه لرل. نن هم ستر خطرونه چاپېريال ته پيدا شوي دي. ډېری پوهان په دې باور دي، چې د صنعت ودې چاپېريال او ژوند ته زيان واړاوه. دغه پرمختګونه له طبيعت سره په ټکر کې بولي. ډېر بيا وايي، مونږ داسې څه رامنځته کړل چې اوس يې کابو کولای نه شو. مثبت او هيله من خلک بيا وايي، مونږ لا هم تکنالوژي په زانګو کې وينو، لا د ودې او پرمختګ لپاره ډېرې مرحلې لري. ددوی په وينا په ماشومتوب کې ستونزې ډېرې وې، د ماشوم غاښ راوځي، درد

لري، تکلیف لري، خو ورو ورو وده کوي او موږ به هم دا زده کړو چې هر څه، څه ډول کابو کړو. نو په دې توګه به مو ژوند او طبیعت ته متوجه خطرونه کابو کړي وي.

- ستا په نظر کومه ډله سم وايي؟
- زما په نظر هر یو تر یوې کچې سمه خبره کوي. په ځینو مسایلو کې باید د طبیعت په چارو کې مداخله و نه کړو خو په ځینو برخو کې بریالي کېدای شو. انسان له رنسانس را په دېخوا یوازې د طبیعت برخه نه و، بلکې د طبیعت په چارو کې یې مداخله کوله. دوی غوښتل طبیعت د ځان په ګټه بدل کړي. (په رښتیا چې انسان څومره ستر شهکار دی).
- بشر ـ کلونه وروسته سپوږمۍ ته ولاړ، په تیاره پېړیو کې به چا په دې اړه آن فکر هم نه و کړی؟
- هو هېچا! اوس نو را رسېږو د نړۍ په اړه یوه نوي لیدلوري ته. په تیاره پېړیو کې کلونه کلونه خلک ولاړل تر ستوري او سپوږمۍ لاندې ودرېدل او ساعتونه یې ورته وکتل. هېچا شک نه درلود، چې ځمکه د کایناتو مرکز دی. دوی فکر کاوه، چې ځمکه ساکنه ده. ټولو به ویل، چې نور فلکي موجودات پخپلو مدارونو کې تر ځمکه ګرد راګرځي. تر دې ور هاوخوا چا خبرې نه کولې. همدا یې ویل، ځمکه د کایناتو مرکز دی یا ددوی په وینا ځمکه د هر څه محور ده. د مسیحي تعلیماتو دا تصور لا ډېر پیاوړی کړ، چې ویل به یې خدای د ټولو فلکي موجوداتو او سیاراتو له هسکه پر ځمکه حکومت کوي.
- دریغه هر څه همدومره ساده وای!
- یو وخت په ١٥٤٣ز کال کې، د سیاراتو د حرکت تر عنوان لاندې کتاب چاپ شو. کتاب پولنډي لیکوال نیکولاس کوپرنیکوس (کوپرنیک) لیکلی و. هغه د همدې کتاب د چاپ په ورځ ومړ.

کوپرنیک باوري و، چې لمر تر ځمکه نه راګرځي، بلکې دا ځمکه ده، چې تر لمر ګرده را ګرځي. د فلکي اجسامو لیدو، دا مسئله په ښه توګه روښانه کولی شوای. دده په وینا، د خلکو دا فکر چې وايي، ځمکه تر لمر راګرځي له دې امله دی، چې ځمکه پر خپل محور ګرده راګرځي. دده په خبره، فرض به کړو، چې ځمکه او نور فلکي موجودات تر لمر ګرد راګرځي، نو فلکي مشاهدې به ډېرې آسانه شي. دې ته نو وايي، لمر د فضايي موجوداتو مرکز دی او لمر د هر څه محور دی.

- دا نو د نړۍ سم تصویر و؟
- نه سل په سلو کې نه و. د کوپرنیک اصلي خبره چې ویل یې، ځمکه تر لمر راګرځي سمه وه، خو دا ادعا یې چې لمر د ټولو فضایي موجوداتو مرکز دی سمه نه وه. اوس پوهېږو، چې لمر هم د میلیونونو ستورو له ډلې یو دی، میلیاردونه کهکشانونه شته دي. زموږ په شاوخوا کې یوازې یو کهکشان موجود دی. یا د یوه کهکشان غړي یو. کوپرنیک پر دې هم باوري و، چې ځمکه او نورې سیارې په خپل دایروي محور کې تر لمر ګرد راګرځي.
- داسې خو نه ده؟
- نه. کوپرنیک د خپلې دغه نظریې د ثابتولو لپاره کومه وسیله نه لرله. ده خپله دغه خبره د ستورو او ځمکې په اړه د پخوانیو اندونو پر بنسټ کوله. پخوانیو به ویل، هر څه چې په اسمان کې دي کروي یا ګرد دي. کره او دایره د افلاطون له وخت مکمل هندسي شکل ګڼل کېده. د اولسمې پېړۍ په لومړیو کې یوهانس کپلر مشهور آلماني ستوري پېژندونکي د خپلو څېړنو او افکارو پایلې خپرې کړې. ده به ویل اسماني ستوري پخپلو دایروي محورونو کې نه، بلکې پخپلو بیضوي محورونو کې ګرځي. ده همدا راز وویل، هغه سیارې چې لمر ته نږدې دي، سرعت یې

هم ډېر دی او هغه چې لرې دي سرعت يې هم لږ دی. د کپلر تر وخته پورې چا داسې نه و ويلي، چې ځمکه هم د نورو سيارو په څېر يوه سياره ده. کپلر همدا راز وويل، چې پر ټولو کايناتو يو ډول فزيکي قوانين حاکم دي.

- په دې خبر نو څه پوهېده؟
- له دې چې د سياراتو حرکات يې په حواسو څېړلي وو. پخواني خرافات يې په پټو سترګو نه و منلي. دده تقريباً هم مهاله کس ګاليله، د فلکي اجسامو د کتنې لپاره تلسکوپ وکاراوه. هغه د سپوږمۍ پر مخ شته لوړې ژورې مطالعه کړې. ويل يې په سپوږمۍ کې هم د ځمکې په څېر غرونه او درې شته دي. تر دې ور هاخوا يې د مشتري سيارې څلور سپوږمۍ کشف کړې. نو يوازې ځمکه نه وه، چې سپوږمۍ يې لرله. خو د ګاليله ارزښت په دې کې دی، چې هغه د جبر اصل تدوين کړ.
- دا نو څه دي؟
- ګاليله به خپله دا خبره داسې تعريفوله. پر هر څه چې بهرنۍ قوه يا فشار نه وي، بدلېږي نه. هر ډول چې دی همداسې به وي. که ساکن دی ساکن به پاتې شي او که په حرکت کې دی په حرکت کې به پاتې شي.
- زه خو ورسره مخالفت نه لرم
- دا ډېر مهم کشف و. له پخوا به خلکو ويل، چې که ځمکه په خپل محور کې ګرځي، نو ولې کله چې ډېره پورته اچوو څو ګامه لرې نه لوېږي.
- نو ولې نه لوېږي؟
- که ته په اورګاډي کې سپره وې، او منه بهر وغورځوې. هغه د اورګاډي ښت ته نه ځي، سره له دې چې هغه روان دی، منه خپل لومړنی سرعت ساتي او مستقيمه لوېږي.

- زه لکه چې پوه نه شوم
- خو د گالیله په وخت کې لا اور گاډی نه و. که یو توپ پورته واچوې او همداسې یې پرېږدې....
- ښه نو پورته ځي
- ښه نو چې پورته یې شوټ کړې خپل سرعت ساتي
- خو که ستره کوټه یا سالون وي آخر درېږي
- دا په دې مانا ده، چې بل قوت یې ځواک کموي. اول د کوټې غولی، په ځانګړې توګه که لرګی وي. مقصد مې د اصطحکاک قوه ده. وروسته د ځمکې جاذبه قوه. دا هغه څه دي چې زر یا وروسته دا توپ دروي. ته اجازه راکړه زه یو څه درښیم

آلبرتو کناکس یې له ځایه پورته شو. د لیکلو د میز پر لور ولاړ. د میز له یوې انواری یې یو شی را وایستل. را وګرځید هغه یې پر واړه میز کېښودل. د لرګي یو صفحه ډوله شی و. یو سر یې تر بل سر څو ملي مېتره پېړ و. نږدې ټول میز یې وپوښه. شنه مردکی یې وربانـدې کېښوده. آلبرتو وویل:

- دې ته وایې مایله سطحه. که اوس دا مردکی پر پېړه خوا کېږدم ستا په نظر څه به پېښ شي؟

سوفي اسوېلی و ایست و یې ویل:

- زه شرط تړم، چې له هغه ځای پر مېز لوېږي او د مېز له سره همداسې پر غولي را لوېږي.
- و به یې ازمویوو

آلبرتو مردکی خوشې کړه. همداسې وشول چې سوفي ویلي وو. پر مېز ولوېده، له هغه ځایه پر غولي، روانه وه، روانه وه، تر هغه چې په دېواله ولګېده.

سوفي وویل: آفرین!

- حوصله وکړه. ګالیله غوښتل پخپلو ټولو حواسو شیان و ازمويي؛ مور خو نوی پیل کړی دی. اول دا ووایه چې مردکی ولې له مایلې سطحې ولوېده؟
- وزن يې درلود، نو ځکه ولوېده.
- آفرین! نو وزن څه شی دی لورکی؟
- دا نو احمقانه پوښتنه ده؟
- هغه پوښتنه احمقانه مه بوله، چې ځواب نه شې ورته پیدا کولای. مردکی ولې پر غولي ولوېده او ورغړېده؟
- د ځمکې د جاذبې له امله
- آفرین! یا زمور په خبره وزن ددې لامل شو، چې مردکی ورغړي. دا هغه قوت و، چې مردکی يې په حرکت راوسته.

آلبرتو شنه مردکی پورته کړه. بیا پر مایله سطحه ورکوږ شو. و يې ويل:

- هڅه کوم، مردکی د تختې پر عرض باندې خوشې کړم. اوس وګوره چې څنګه حرکت کوي؟

سوفي ولیدل، چې مردکی يې ورو ورو لوری بدل کړ. له لوړه ځایه لاندې را وغورځېده. آلبرتو وويل:

- څه وشول؟
- لاندې ولوېده.
- اوس به مردکی رنګ کړم. هغه وخت به ووینې چې له کړوالي مې موخه څه ده.

د رنګ برس يې ور واخیست، ټوله مردکی يې رنګ کړه. هغه يې بیا پر همغه سطحه پرېښوده. اوس نو سوفي په ښکاره توګه ليدلای شو، چې مردکی د تختې پر کومه برخه ځغلېدلې ده، ځکه خط يې ښکارېده.

- ستا په نظر د مردکی مسیر څه ډول دی؟
- منحني.... یوې دایرې ته ورته شکل دی
- هو آفرین!

آلبرتو پورته نجلۍ ته وکتل. بيا يې ورو خپې پورته کش کړې.

- ګوره پوره دايره خو نه ده که نه؟ دغه شکل ته پرابول وايو.
- هر څه چې ته وايې.
- خو مردکۍ ولې داسې لاره ووهله؟

سوفي په ژور فکر کې ډوبه شوه. تر اوږده څنډ وروسته يې وويل:

- ځکه تخته کږه ده. د ځمکې جاذبه مردکۍ ځان ته را کاږي.
- هو هو شاباس! ما يوه نجلۍ چې يوازې پنځلس کاله عمر لري، خپلې غريبانه جونګړې ته راوسته او وروسته له يوه ساده ازمويښت هغه پايلې ته ورسېده چې ګاليله رسېدلی و.

لاس يې پر مېز وواهه، سوفي ووېرېده. هسې نه چې ليونی وي. خبرو ته يې ادامه ورکړه:

- و دې ليدل، کله چې پر يوه وخت دوې بېلې قوې پر يوه شي اغېز وکړي څه پېښېږي؟ دا کار د ګاليله وو، دا اصل د مردکۍ په اړه هم صدق کوي. مرمۍ هوا ته توغول کېږي. يو څه په هوا کې حرکت کوي. بېرته ځمکې ته راګرځي. نو له همدې امله، داسې مسير خپلوي لکه مردکۍ چې پر کږه سطحه خپل کړی و. دا د ګاليله په زمانه کې نوی کشف و. ارسطو به ويل، هر څه چې لږ مايل هوا ته وتوغول شي، لومړی لږ منحني مسير وهي، وروسته عمودي پر ځمکه رالوېږي. دا خبره سمه نه وه، خو تر هغه چې کشف شوې نه وه، هېڅوک نه پوهېدل چې ارسطو ناسمه خبره کړې وه.
- دا خبرې په رښتيا کوم ارزښت لري؟
- ارزښت لري؟ ولې يې نه لري! دا مطلب په ستورو او فضا کې ارزښت لري. لوري! دا د بشر ـ د علم په تاريخ کې تر ټولو مهم کشف و.
- دليل يې راته وايې چې ولې؟

- وروسته يو فزيکپوه ايساک نيوټن، چې د ۱٦٤۲ او ۱۷۲۷ کلونو ترمنځ يې ژوند کاوه، را پيدا کېږي. نيوټن د شمسي- نظام، په اړه وروستی تفصيل او شرحه. همدا راز د سياراتو د حرکت په اړه معلومات له موږ سره شريک کړل. نه يوازې دا يې وويل، چې سيارې تر لمر گردې گرځې بلکې دا يې هم وويل، چې ولې دا کار کوي. هغه په دې توگه بريالی شو، چې ځينو مهمو شيانو ته لاسرسی پيدا کړي، موږ هغې ته د گاليله ديناميک وايو.
- ته غواړې ووايې، چې سيارې پر کره سطحه پرتو مردکيو ته ورته دي؟
- هو دې ته ورته يو څه، خو ته لږ زغم ولره! سوفي.
- نو بله چاره نه ده پاتې
- ما مخکې ويلي و، داسې قوه بايد وي، چې فلکي اجسام ځان ته جذب کړي. د بېلگې په توگه، بايد په لمر کې دا قوت پروت وي، چې ټولې سيارې په خپل مدار کې وساتي. دا قوه همدا راز ښيي، چې له لمر د لرې سيارو سرعت ولې کم دی. کپلر بل فزيکپوه باور دلود، چې د سيندونو د اوبو لوړې او ژورې، هرو مرو د سپوږمۍ د قوې له امله دي.
- دا به غلطه وي که څنگه؟
- نه، خبره يې غلطه نه ده. خو گاليله دا نظريه رد کړه. ان کپلر يې مسخره کړ. ويل يې، کپلر وايي، چې سپوږمۍ پر سيندونو حکومت کوي. گاليله د خپل مخالفت لپاره دليلونه لرل. ده به ويل، د وزن قوه، له دومره لرې ځايونو او فضايي موجوداتو ترمنځ په سيندونو څنگه کار کولای شي؟
- دلته يې تېروتنه کوله؟
- هو، په دې برخه کې په ځانگړې توگه تېروتی و. دا نو د خندا وړ ده. ځکه د گاليله فکر ټول د ځمکې د جاذبې قوې او ځمکې ته

د اجسامو پر راښکون بوخت و. ان ښودلې يې وه، چې ځنګه ډېره قوه کولای شي د څېزونو اصلي مسير بدل کړي.

- تا د نيوټن خبره کوله

- هو نيوټن را ورسېد. د عمومي جاذبې قانون[1] يې رامنځته کړ. دغه قانون وايي، د مادې هره ذره بله ماده جذبوي. ددغه راښکون، شدت د هغه د ضرب له حاصل سره مستقيم نسبت لري او د هغوی د فاصلې له مجذور سره معکوسه رابطه لري.

- په دې خبره لګه چې پوهېږم. لکه ددو فيلانو ترمنځ راښکون (کشش) ددوو موږکانو په پرتله ډېر دی. همداسې په ژوبڼ کې ددو فيلانو ترمنځ، په هند کې د هندي فيلانو په پرتله ډېر دی. همداسې په افريقا کې تر افريقايي فيلانو د ژوبڼ د فيلانو راښکون يا جاذبه ډېره ده.

- ښه نو پوه شوې يې! اوس يوې مهمې خبرې ته را رسېږو. نيوټن دا ثابته کړه، چې دا راښکون او درونډوالی عمومي دی. په دې مانا چې هر ځای کارګران شته دي، ان په فضايي اجسامو کې. ويل کېږي، د منې تر ونه لاندې چې ناست و، نو دا فکر يې ذهن ته ورغی. منه چې له ونې پرېږي را ولوېده پوښتنه ورسره پيدا شوه، چې سپوږمۍ به هم د همدې جاذبې له امله ځمکې ته داسې را کاږل کېږي؟ تر ځمکې د سپوږمۍ د ګرځېدو لامل همدا دی؟

- ځيرک و، خو ډېر هم نه!

- ولې نه و سوفي؟

- ښه نو که سپوږمۍ د منې په څېر د ځمکې د جاذبې له امله راښکل کېدای. نو همداسې به راغلې وه، يوه ورځ به تر ځمکه د ګرځېدو پر ځای غوړز پر ځمکه لګېدلې وه.

---

[1] The low of Universal Gravitation

- نو اوس داسې وخت دی، چې د نیوټن د فلکي محوروننو قانون رامنځته کېږي. ځمکې ته د سپوږمۍ د رابښکون په اړه دې چې څه وویل، پنځوس سلنه سم او پنځوس سلنه ناسم دي. دا چې د ځمکې د جاذبې ستره قوه سپوږمۍ خان ته راکاږي نو ولې هغه پر ځمکه نه رالوېږي؟ ته تصور وکړه، ددوو مترو په لوړوالي د اوبو د یوې ښې پورته کولو ته څومره قوه په کار ده؟
- نه پوهېږم
- د ګالیله مایله سطحه دې په یاد ده؟ کله مو چې مردکۍ د سطحې پر عرض ورغړوله څه وشول؟
- د سپوږمۍ په برخه کې هم دوې بېلې قوې کار کوي؟
- هو! یو وخت، چې شمسي- نظام رامنځته کېده، سپوږمۍ له ځمکې بیله شوه. یوې حیرانوونکې قوې هغه فضا ته وغورځوله. دا قوه به تل پر خپل ځای وي. ځکه له هېڅ ډول مقاومت پرته به هلته په حرکت کې وي.
- خو د ځمکې جاذبه هغه بېرته ځمکې ته راکاږي که داسې نه ده؟
- همداسې ده! دواړه قوې ثابتې دي. دواړه په یوه وخت کار کوي. نو له همدې امله به سپوږمۍ تل تر ځمکه ګرده راګرځي.
- رښتیا! دا خبر همدومره ساده ده؟
- هو همدومره ساده ده. د نیوټن اصلي موخه هم همدا سادګي وه. نیوټن دا وښوده چې څو طبعي اصلونه پر ټول عالم حاکم دي. د فلکي مدارونو د محاسبې لپاره یې له دوو اصلونو کار واخیست. دا اصلونه ګالیله مخکې وړاندیز کړي وو. یو د جبر اصل دی. نیوټن هغه داسې تشریح کړ: هر جسم د سکون یا حرکت په وخت کې د مستقیم الخط په حالت کې پاتې کېږي، تر هغه چې بهرنۍ قوه هغه بدل کړي. بل اصل ګالیله پر مایله سطحه ښودلی

و. (کله چې دوې قوي په یوه وخت کې پر یوه شي اغېز وکړي، نو شی په بیضوي شکل مدار کې حرکت کوي).

- په دې توګه نیوټن بریالی شو، چې د سیارو د حرکت مسئله تشریح کړي.
- هو! سیارې هم ددوو نابرابره حرکتونو په پایله کې په بیضوي مدارونو کې تر لمر ګردې تاوېږي. یو پر مستقیم خط حرکت دی، چې د شمسي-منظومې د جوړېدو پر مهال یې درلود، بل حرکت د لمر په لور دی، چې د جاذبې له امله رامنځته شوی دی.
- ډېره خرکتیا یې کړې ده.
- هو ډېره! نیوټن دا وښوده، چې د کایناتو د حرکت قوانین په ټول عالم کې یو شان دي. په دې توګه نو، د آسماني قوانینو په اړه د وسطا پېړیو د باورونو ملا ماته شوه. په دې توګه نو د کایناتو په اړه نوی لیدلوری پیدا شو، لمر د شمسي-نظام مرکز وبلل شو او دې مسئلې خپله ورروستی توضیح او تشریح پیدا کړه.

آلبرتو پاڅېد، مایله تخته یې پر خپل ځای کېښوده. مردکی یې پورته کړه او پر مېز یې کېښوده.

سوفي په فکر کې ډوبه شوه، چې له وړې تختې او مردکۍ یې څومره ستر مطلب واخیست. شنه مردکی لا هم په رنګ ککړه وه. همداسې یې مردکۍ ته کتل او د ځمکې په سوچ کې شوه.

- خلک اړ دي دا ومني، چې د فضا په یوه کنج په بې موخې سیاره کې ژوند کوي.
- هو رښتیا وایې. نوی نړی لید له ډېرو اړخونو د انسان پر اوږو درونډ بار و. وضعه د ډاروین نظریې ته بې ورته والي نه وه، چې ویل به یې انسان له حیوانه راوتی یا د حیوان د ودې په یوه پړاو

کې دي. په دواړو مواردو کې په پیدابښت کې د انسان لوړ مقام راټیټ شو. په دواړو برخو کې بیا هم کلیسا کلک مقاومت وکړ.

- دا خبرې د پوهېدو وړ دي.

- خو بنسټیزه ستونزه بله ده. کله چې نیوټن پر نړۍ او کایناتو د طبعي قوانینو د حاکمیت خبره وکړه، نو پر خدای د خلکو ایمانونه سست شول. خو د نیوټن ایمان هېڅ وخت کمزوري نه شو. نیوټن به ویل، چې د طبیعت د قوانینو تر شا مطلق او قادر خدای شته دی. او همدا قوانین د هغه له لوري وضع شوي دي. د ځان په اړه د انسان تصور ښایي تر دې بد سرنوشت درلود.

- ستا موخه؟

- له رنسانس وروسته، خلکو ته دا ذهنیت پیدا شو، چې انسان په پراخو کایناتو کې په یوه ډېره وړه او بې موخې سیاره کې ژوند تېروي. زه فکر نه کوم، چې ځینې دې لا هم له دې فکر سره آشنا وي، خو داسې خلک ډېر وو، چې ویل به یې هر یو تر نورو مرکزي ځای او مقام لري.

- په دې خبره هېڅ پوه نه شوم

- مخکې ځمکه د کایناتو مرکز ګڼل کېده. خو کله چې ساینس د یوه حقیقي مرکز د نشتوالي خبره وکړه، نو دا فکر پیدا شو، چې د کایناتو مرکزونه بې شمېره دي، د خلکو د شمېر په اندازه دغه مرکزونه هم دي. هر کس کولای شي، د کایناتو یو مرکز وي.

- اوس پوه شوم

- رنسانس د دینداري یوه نوې بڼه رامنځته کړه. علم ورو ورو له الهیاتو او فلسفې سره خپلې اړیکې وشلولې. د مسیحي دینداري نوې بڼه رامنځته شوه. وروسته رنسانس را ورسېد او له ځان سره یې د انسان نوی انځور راوړ. دې خبرې د انسانانو پر دیني ژوند

اغېز وکړ. اوس نو د انسان فردي اړیکه له خدای سره ډېره مهمه وه، بې له دې چې دا اړیکه د کلیسا په واسطه ټینګه شي.

- ستا موخه، مثلا شپني عبادتونه دي؟
- هو! دا هم له همدې ډلې یو کېدای شي. په وسطا پېړیو کې په کاتولیک کلیسا کې، ټول دیني آداب او تعلیمات په لاتیني ژبه ور ښودل کېدل. په کلیسا کې د لمانځنې مناسک د مذهبي مراسمو د ملا تېر و. سپېڅلی کتاب یوازې په لاتیني ژبه و. له دې امله یوازې کشیشانو او راهبانو هغه لوست. خو په رنسانس کې، تورات او انجیل له عبري او یوناني، محلي ژبو ته وژباړل شو. دې نو د دیني اصلاح په سلسله کې مهم رول ادا کړ.
- مارتین لوتر[1]...
- هو مارتین لوتر مهم و، خو هغه یوازې اصلاح غوښتونکی نه و. د روم په کاتولیک کلیسا کې هم اصلاح غوښتونکي شته وو. په دې ډله کې د روتردام اراسموس[2] یادولی شو.
- لوتر له کاتولیک کلیسا بېل شو، ځکه ده نه غوښتل چې د ګناهونو د ښنلو په پلور کې برخه واخلي همداسې وه؟
- هو دلیلونه یې همدا وو. تر دې یې نور مهم دلیلونه هم درلودل. ده به ویل، له خدایه د ښښنې غوښتلو ته د کلیسا مرسته اړینه نه ده. همدا راز د خدای ښنل په دې پورې اړه نه لري، چې ته دې له کلیسا په بیه ښښنه واخلې. په کاتولیک کلیسا کې په اصطلاح د ښښپاڼې پلور د ۱۶مې پېړۍ په وروستیو کې بند شوی و.
- ښایي په دې کار به خدای هم خوشاله شوی وي
- هو، لوتر له ډېرو هغو قوانینو او اصولو سره مخه ښه وکړه، چې په تیاره پېړیو کې په کلیساوو کې دود شوي وو. ده غوښتل لومړني

---

[1] Martin luther (۱۵۴۶-۱۴۷۳ز)

[2] Erasmous (۱۵۳۶-۱۴۶۹) ادیب، روزونکی او هالنډی کاتولیک کشیش و.

مسيحيت ته ور وګرځي. ده به ويل، يوازې سپېڅلي متون منې او بس. لوتر په دې شعار غوښتل د مسيحيت سرچينې ته ور وګرځي، همداسې د رنسانس انساناپالو غوښتل د لرغوني پېر د هنر او فرهنګ بنسټونو ته ور وګرځي. لوتر سپېڅلی کتاب په آلماني ژبه وژباړه. په دې توګه آلماني ژبه د ليک ژبه شوه. ده به ويل، هر څوک بايد سپېڅلی کتاب پخپله ژبه ولوستی شي او دده په عبارت د خپل ځان کشيش وي.

- پخپله د ځان کشيش؟ دا به يو څه افراط وي

- دده موخه دا وه، چې له خدای سره د اړيکې لرلو لپاره کشيشان داسې کوم ځانګړی مقام نه لري. د لوتر د عباداتو په مراسمو کې کشيشانو، عملي کارونه کول، مذهبي شعاير يې تر سره کول او ورځنۍ اداري چارې يې کولې. هغه باوري نه و، چې څوک دې وکړای شي يوازې د کليسا له لارې د خدای بښنه خپله کړي او په دې توګه دې سپېڅلتيا ته ورسېږي. ده به ويل، سپېڅلتيا او پاکي يوازې د ايمان په مرسته حاصل کېږي. دغه باور لوتر د انجيل او تورات تر مطالعې وروسته خپل کړی و.

- نو لوتر هم د رنسانسي انسان يو بېلګه و؟

- هم هو، هم نه. د رنسانسي- فکر يو اړخ يې دا و، چې پر فرد او له خدای سره پر فردي اړيکه يې ټينګار کاوه. له همدې امله يې په ۳۵ کلنۍ کې يوناني ژبه زده کړه او له يوناني ژبې يې آلماني ته د سپېڅلي کتاب ژباړه پيل کړه، چې په هغه وخت کې تر ټولو سخت کار و. دا کار يې په دې مانا و، چې يوه سيمه ييزه ژبه يې له يوناني سره څنګ ته دروله. دغه کار يې هم رنسانسي- ځانګړنه درلوده. خو لوتر د د فيچنو او ليوناردو پر خلاف انساناپال نه و. د اراسموس روتردامي په څېر انساناپالان هم ورسره موافق نه وو. دوی فکر کاوه، چې د لوتر ليدلوری د نړۍ په تړاو ډېر منفي دی.

لوتر به ویل، چې د خدای د رحمت تر قطع کېدو وروسته، بشر۔ تول په فساد کې ښکېل دی. دده په خبره یوازې د خدای د رحمت له لارې، بشر خلاصون مومي او مرګ هم د ګناه جزا ده.

- دا نو د مایوسۍ خبره ده

آلبرتو کناکس له خپله ځایه پاڅېد. وړه شنه مردکۍ یې پورته کړه. په خپل جیب کې یې واچوله. سوفي لکه وېرېدلې چې وي وویل:

- وای له ځلورو هم څو تېرې دي!
- اوس نو په تاریخ کې یوه بله ستره مرحله ده، اوس نو د باروک[1] عصر دی. خو دا به بل ځای ته پرېږدو، ګرانې هیلدې!
- څه ما ته دې هیلده وویل؟
- هسې مې له خولې ووتل
- څه چې له خولې وځي هېڅ وخت تصادفي نه وي
- ښايي ته په حقه وې. ته خو وینې چې د هیلدې پلار لږ لږ هر څه زموږ په خولو کې اچوي، په چارو کې مو لاس وهي. زما په نظر زموږ له ستړیا ګټه اخلي، دا چې موږ ستړي یو، له ځان دفاع نه شو کولی نو هر څه یې چې زړه وي کوي یې.
- تا یو ځل وویل، چې د هیلدې پلار نه یې. دا خبره سمه ده؟

آلبرتو یې سر وخوځاوه.

- زه خو هیلده نه یم؟
- زه اوس ستړی یم سوفي. دا خبرې بايد درک کړې. تر دوو ساعتونو ډېر وخت وشو چې دلته ناست یوو. تر ډېره ما خبرې کړې دي. ته به ورډې وې ولاړه شه کور ته څه شی وخوره، همداسې نه ده؟

---

[1] Baroque

سوفي حس کړه چې آلبرتو غواړي خبرې تېرې کړي. د کور د دروازې لورې ته روانه شوه. په فکرونو کې ډوب وه. ولې د آلبرتو له خولې يو دم د هيلده نوم ووت. آلبرتو هغه بدرگه کوله.

هرمس د کوټ بندونو تر کتار لاندې پروت و. گنې لرغونې جامې پر کوټ بندونو ځوړندې وې. جامې ډېرې عجيبې وې. داسې ښکارېده لکه د يوه پخواني تياتر توکي چې وي. آلبرتو هرمس ته په سر اشاره وکړه.

- هرمس بيا درپسې درځي او راولي دې

- له درس دې مننه استاد!

بې اختياره يې، آلبرتو په غېږ کې ونيو.

- ته په دنيا کې د فلسفې تر ټولو مهربان او عالي ښوونکی يې، ستا په څېر مهربانه ښوونکی مې تر اوسه هېڅ نه دی ليدلی.

دروازه يې پرانيسته، د بېرته تړل کېدو پر وخت آلبرتو ورته وويل:

- ډېر ژر به يو بل سره ووينو، هيلده!

ور يې وتاړه او سوفي له دې کلماتو سره يو ځای تر وره بهر پاتې شوه.

څه فکر کوې، بيا يې له خولې ووتل. نه دا خل يې قصدا دا کلمه ياده کړه. چلباز دی! سوفي غوښتل بېرته ور وگرځي، ور ووډبوي. له آلبرتو سره خبرې وکړي، خو نامعلوم شي هغه دې کار ته پرې نه ښوده.

سړک ته ورسېده، جېب ته يې لاس کړ، يوه روپۍ ورسره نه وه. اوس نو بايد دومره اوږده لار پياده ووهي. څومره بد کار وشو! که تر شپږو کور ته و نه رسېږي، ښايي مور يې ورخطا او غوسه شي. څو گامه لا وړاندې نه وه تللې، چې ناڅاپه يې سترگې پر لوېدلې سيکې ولگېدې. سيکه د لسو کرونو وه. په همدې پيسو تر کوره رسېدلې شوای.

سوفي د موټرونو تمځای پيدا کړ. داسې بس ته تم شوه، چې هغه تر ميدانه ورسوي. له هغه ځايه يې کولی شوای، په همدې يوه ټکټ په بل موټر کې سپره شي او کور ته ورسېږي.

په سر میدان کې دویم بس ته تم وه. له ځان سره یې سوچ وکړ، چې له
خوا بخت ورسره دومره یاري وکړه، څومره پیسو ته چې اړه وه ورته
کومې
پیدا شوې:
خو به نه وي چې د هیلډې پلار هلته لیدلې ده؟ دا سړی په مناسب
دسې
وخت کې د ډېرو کارونو په کولو کې پوره وړتیا لري. خو دا به د هغه کار
خکه هغه خو په لبنان کې دی.
نه وي: نه دوه خله!
آلبرتو بیا ولې تېروتنه وکړه، هغه هم یو خل نه دوه خله!
سوفي ولړزېده، د ملا په تېر کې یې. له پورته د پښو لورې ته درد وځغلېد.

# باروک

## ...د خوبونو جوړونکې خمیره...

ځو ورځې د آلبرتو احوال را نه غی. سوفي به هر وخت بڼ ته ورکتل او د هرمس د راتلو لاره یې څارله. سوفي یې مور ته وویل، چې سپې ته د خپل کور لار معلومه وه، خو هلته چې ورسېدل، د سپي ښښتن تري وغوښتل چې کور ته یې ورسره ولاړه شي. دې وویل، چې هغه له عمره پوخ و، د فزیک استادي یې کړې وه. دې یې مور ته د ټولو هغو علومو په اړه معلومات ورکړل چې آلبرتو یې په اړه خبرې ورته کړې وې او په ۱۶مه پېړۍ کې رامنځته شوي وو.

یووانا ته یې بیا تر دې ډېرې خبرې وکړې. له آلبرتو سره یې د خپلې لیدنې ټول معلومات ورکړل. د پستي کارتونو خبرې یې ورته وکړې. د لس کروني سیکې کیسه یې ورته وکړه، په لنډه توگه چې ټوله کیسه یې ورته وکړه. خو د خپل خوب او طلایي صلیب خبره یې ترې پټه کړه.

د سه شنبه ورځ د میاشتې ۲۹ مه وه. سوفي په پخلنځي کې لوښي مینځل. مور یې د کېناستې په کوټه کې خبرونو ته غوږ نیولی و. له تلویزیونه سندرې غږ پورته شو، واورېدل شوه خو بېرته چوپ شوه. خبر راغی، چې په لبنان کې د ملگرو ملتونو د ساتونکو یو قومندان د لاسي بم په چاودنه کې وژل شوی دی. دغه قومندان د ناروې دی.

سوفي د لوښو وچولو ټوټه وغورځوله، ناستې کوټې ته یې منډه کړه. چې ورسېده د ځو شېبو لپاره د افسر څېره پر تلویزیون ښکارېده. هغه یې ولید.

چیغه یې وکړه!

- وای نه!

مور یې مخ ور واړاوه.

- هو جگړه وحشتناکه ده

سوفي ژړا پیل کړه

- خو سوفي جګړه دومره بده هم نه وي!
- د هغه نوم يې واخيست؟
- هو خو په ياد مې پاتې نه شو. خو دا يې وويل، چې د ګريمستاد و.
- دا هماغه ليله سن نه دی؟
- نه له خانه احمقه مه جوړوه
- خو ګوره؛ د ګريمستاد خلک به په ليله سن کې ښوونځي ته ولاړ شي

ژړا يې ودرېده. اوس يې نو د مور وار و، چې خپل زړه تش کړي. پورته شوه تلويزيون يې ګل کړ.

- سوفي قضيه د څه په اړه ده راته ووايه؟
- هيڅ!
- نه يو څه هرو مرو شته دي. تا کوم هلک ملګری کړی دی. زه فکر کوم، چې هغه تر تا ډېر مشر دی. ځواب راکړه ته په لبنان کې څوک پېژنې؟
- نه، نه څوک نه پېژنم...
- له داسې کوم هلک سره دې پېژندلي چې په لبنان کې دی؟
- نه له لور سره يې هم نه پېژنم
- د چا له لور سره؟
- دا په ما پورې اړه لري
- نه په ما پورې اړه لري
- نو زه بايد له تا څينې پوښتنې وکړم. ولې مې پلار هيڅ وخت په کور نه وي؟ ځکه جرأت نه لري، چې يو بل طلاق کړي. همداسې نه ده؟ ښايي ته هم کوم نارينه ملګری لرې، چې نه غواړې زه او پلار مې يې په اړه پوه شو همداسې نور نور... که د پوښتنې خبره وي، زه له تا ډېرې پوښتنې لرم!

- زما په نظر باید سره کېنو او خبرې وکړو
- ښـايي اړتيـا وي. خـو زه اوس ډېـره سـتړې يـم. بايـد ولاړه شـم او ويده شم. ناروغه هم يم.

غريو واخيسته، منډه يې کړه، کوټې ته
و يې لمبل، تر نرۍ توټې لاندې پرېوته، څو شېبې وروسته يې مور راغله.
سوفي ځان ويـده واچاوه. پوهېـده چې مـور بـه يـې بـاور وربانـدې و نـه کـړي. سره لـه دې يـې مـور داسـې چلنـد کـاوه، چـې ګـواکې سـوفي ويـده ده. د کټ پر څنډه کېناسته او د لور په وېښتو کې يې ګوتې وهلې.
سوفي لـه ځان سره فکـر وکـړ، چې دوه مخيتـوب څـومره سـخت دی. دعا يې کولـه، چـې د فلسـفې درس لـږ ژر خـلاص شي. ښـايي د زوکـړې پـه ورځ يـې پـای تـه ورسـېږي. يـا ښـايي د اوړي تـر لـومړۍ شـېې پـورې خـلاص شي، تـر هغه چې د هيلده پلار له لبنانه راځي.
ناڅاپه يې وويل:

- غواړم د زوکړې ورځ مې و نمانځم
- عالي خبره ده! څوک را غواړې؟
- ډېر خلک.... راغوښتی يې شم؟
- هو ولې نه، موږ لوی بڼ لـرو. هـوا هـم کـه د خـدای رضـا وه، تـر هغـه وخته ښه کېږي.
- تـر ټولـو مهمـه دا چـې غـواړم مهـماني مـې د اوړي پـه لـومړۍ شـپه وي
- هو ولې نه!
- زه ګومان کوم په دې وروستيو کې ډېره لويه شوې يم
- څومره ښه، نو نه يې؟
- نه پوهېږم

سوفي دا خبرې کولې، سر يې په نرم بالښت کې ننه ايست. مور يې وويل:

- سوفي ته خو وواېه ولې دومره ناقراره يې، مثلاً همدا اوس هم ارام نه لرې؟
- ته چې پنځلس کلنه شوې وې همداسې نه وه؟
- وه به، خو ته زما په موخه پوهېږې چې څه وايم

سوفي يې ناڅاپه مخ ور واړاوه. سترګې يې د مور سترګو ته مخامخ ونيوې.

- هرمس د هغه سپي نوم دی
- ښه؟
- د څښتن نوم يې آلبرتو دی
- ښه!
- کور يې د لرغوني ښار په وروستې برخه کې دی.
- ته دا دومره لار له سپي سره ولاړې؟
- هيڅ خطرناکه خبره نه ده
- تا وويل سپي بيا هم دلته راغلی و
- ما وويل؟

په فکر کې ډوبه شوه. غوښتل يې هغه څه چې اړتيا يې وه مور ته يې ووايي. ټول شيان يې نه شوی ويلی. بهانه يې وکړه.

- خو ته ډېر وخت کور نه وې
- پوهېږې چې بوخته وم
- آلبرتو او هرمس څو ځله دلته راغلي دي
- د څه لپاره؟ کور ته هم راغلي؟
- کېدای شي پوښتنې يوه يوه وکړې؟ نه، کور ته نه دي راغلي. خو ډېر وخت د چکر لپاره ځنګله ته ځي. دا به نو درته دومره حيرانوونکې نه وي؟
- نه، نه دي؟

- نو چې چکر ته ځي لکه لـګونه نور خلک زموږ د دروازې مخې ته تېرېږي. يوه ورځ چې له ښوونځي را وګرځېدم له سپي سره مې خبرې وکړې. همداسې مې له آلبرتو سره وپېژندل.
- دا د سپيني سويي کيسه او نور چټيات له همدې ځايه اوبه کېږي؟
- هغه يوه د آلبرتو خبره وه. ته پوهېږې هغه يو رښتينی فيلسوف دی. د فيلسوفانو په اړه يې ډېرې خبرې راته وکړې.
- همدلته د پنجرو تر شا؟
- نه ليکونه يې راته لېږل. که رښتيا ووايم ځو ځو ځله يې لېږلي دي. کله کله يې په پست کې رالېږي، کله چې چکر ته وځي، پخپله يې راوړي او په پستي بکس کې يې ايږدي.
- نو هغه د ميني ليکونه مو چې يادول همدا وو؟
- هو خو د ميني کومه خبره په ليکونو کې نشته
- په دې مانا چې يوازې د فلسفې خبرې دي؟
- هو باور کوې؟ ما له هغه دومره شيان زده کړي چې په اته کاله ښوونځي کې مې نه دي زده کړي. لکه تا کوم وخت د جوردانو برونو نوم اورېدلی دی؟ هغه په ۱٦۰۰ کال کې پر دار ځوړند او وسوزول شو. يا د نيوتن د عمومي جاذبې او وزن د قانون په اړه معلومات لرې؟
- نه له دې ډېرو شيانو نه يم خبره.
- هرو مرو نه پوهېږې، چې ځمکه ولې تر لمر تاوېږي، دا ځمکه چې ستا خپله سياره هم ده
- دا سړی څو کلن دی؟
- نه پوهېږم ښايي پنځوس کلن وي
- له لبنان سره څه اړيکه لري؟

دا نو سخته پوښتنه وه. سوفي ډېر فکر وکړ، ښه کيسه يې چې ذهن جوړه کړه و بې ويل:

- آلبرتو يو قومندان ورور لري. د ملګرو ملتونو په چوکاټ کې په لبنان کې کار کوي. په اصل کې د ليله سن دی. ښايي همغه سړی وي، چې يو وخت يې په ځنګل کې د قومندان په جونګړه کې ژوند کاوه.
- آلبرتو يو ډول حيرانوونکی نوم نه دی؟
- ښايي همداسې وي
- ايټاليوي نوم راته ښکاري
- هو نو! هر مهم شی يا د يونان وي يا د ايټاليا
- خو په ناروېژي خبرې کوي که څنګه؟
- هو! هغه هم ډېرې رواني خبرې
- ته په يو څه پوهېږې سوفي؟ زما په نظر ته بايد يوه ورځ دا آلبرتو کور ته راولې. ما په خپل ټول ژوند کې تر اوسه رښتينی فيلسوف نه دی ليدلی.
- و به ګورم چې څه کېږي
- داسې هم کولای شو، چې د زوکړې نمانځنې ته يې دې راوبولو. په يوه مجلس کې د خو ګډوډو نسلونو ګډول، ښه خوند لري. که هغه راشي نو ما ته به هم بهانه جوړه شي، نو په ملمستيا کې به دې ګډون وکړم. لږ تر لږه په بدرګه کولو کې خو مرسته درسره کولای شم. ښه فکر نه دی؟
- خو که راشي، له هغه سره خبرې کول ډېر په زړه پورې دي. ښايي له خپلو ټولګيوالو سره دومره خبرې و نه کړم، ځکه له هغه سره خبرې ډېر خوند لري خو...
- خو څه؟

- هلکان او نجونې به فکر وکړي، چې آلبرتو مې نوی ملګری دی، بیا به نو ما مسخره کړي
- هغه وخت به ته ورته ووایې چې داسې نه ده
- ښه، و به ګورم چې څه کېږي
- هو و به ګورو. سوفي ته رښتیا وایې، زما او پلار اړیکې دې دېر وخت ښې نه وې، خو ددرېیم کس موجودیت زموږ په منځ کې ناشونی دی.
- زه به نوره ویده شم، ټول غړي مې درد کوي.
- سپرین درته راوړم؟
- هو که وي خو ښه ده

څو شیبې وروسته یې، مور له یوې پیالې اوبو او درملو سره راغله خو سوفي ویده وه

سه شنبه وه، د مې میاشتې ۳۱ نېټه وه. سوفي، ټول ماسپښین په ټولګي کې زحمت و ایست. له هغه راهیسې یې چې د فلسفې درس پیل کړی و، په ځینو درسونو یې سر ښه خلاصېده. د تل په څېر یې په دېری درسونو کې نومرې ښې وې. په دې وروستیو کې تر پخوا هم ښه شوې وه. نومرې یې لوړې وې. خو په ریاضي کې یې لا هم خوند نه و.

د رخصتۍ پر مهال یې کورنی دندې زده کوونکو ته وسپارلې. سوفي د انسان او تکنالوژۍ په اړه لیکنه کړې وه. څو پاڼې یې، د رنسانس په دوره کې د علمي تحولاتو په اړه ډکې کړې وې. همداسې یې د طبیعت په اړه د فرانسس بیکن نوی لیدلوری، چې ویلي یې و، پوهه قدرت دی، راوړې و. ده به ویل، چې تجربوي تګلاره تر کشفیاتو مخکې رامنځته شوې ده. وروسته یې څو صنعتي ځیزونه یاد کړي وو. ددې په نظر ځینې یې دومره ټولنې ته ګټور نه وو. مقاله یې په دې خبرو پای ته رسولې وه، چې بنو سړی کولای شي کار وکړي او دغه کار به یې یا ښه اړخ ولري او یا بد.

ښېګړه او بدګړه د يوه پېړي تور او سپين تارونه دي. کله کله داسې کلک په بوه بل کې اوبدل شوي، چې بېلول يې ګران کار دی.

ښوونکي يې، چې زده کوونکو ته پاڼې بېرته ورکولې، سوفي ته يې په خير خير وکتل، شل نومرې يې اخيستې وې. ښوونکي په آشيه کې ليکلي وو: دا شيان دې چېرته زده کړي دي؟ ښوونکي يې شنګ ته ولاړ و، قلم يې را واخيست او په لوی خط يې د پوښتنې په مقابل کې وليکل، ما فلسفه لوستې ده. کتابچه يې بندوله، پستي کارت تري ولويد، هغه يې پرانيست، له لبنانه رالېږل شوی و.

ګرانې هيلده!

د ليک د لوستلو پر مهال به هرومرو خبره وه، چې دلته څه پېښ شوي دي. مخکې مې په تليفون کې درته وويل، چې يو کس مړ شوی دی. کله ناکله له ځانه پوښتنه کوم، چې که خلکو لږ ژور فکر کړی وای، له جګړو به يې لاس نه وای اخيستی؟ ښايي له جګړو او وژنو د لاس اخيستنې يوه لار د فلسفې لوستل وي. هر سړی بايد د لږ وخت لپاره فلسفه ولولي. خلک به يې په لوستلو له تاوتريخوالي او جګړو لاس واخلي. د ملګرو ملتونو له لوري د فلسفې يو کوچنی کتاب که چاپ شي، ښه نه دی هيلده؟ ښايي د غوسې د کابو کولو او تاوتريخوالي ددرولو يوازينۍ لار څو ورځې د فلسفې ټولګي ته تلل وي. هر انسان حق لري چې په خپله ژبه يو څه فلسفه ولولي. هر انسان ته دې پخپله ژبه د فلسفې د کتاب يوه کاپي ورکړل شي. دا فکر به هرو مرو د ملګرو ملتونو مشر ته رسوم.

په تليفون کې دې وويل، چې هر څه ته دې ښه پام کوې. خوشاله شوم، هسې هم ته تر ما ډېره احتياط کاره يې. مخکې دې وويل، له هغه وروسته چې له ما سره غږېدلې يې يوازې د لسو کرونو سيکه دې ورکه کړې ده. زه هڅه کوم چې هغه پيدا کړې.

زه له کوره دېر لرې يم خو هلته يو ملګرى لرم. که مې پيسې پيدا کړې هغه دې د کليزې په ډالۍ کې ابېردم. پلار دې درنه خار شه! هغه پلار چې همدا اوس خان کور ته د يوه اوږده سفر پر لار حس کوي.

سوفي چې کارت ولوست د ښوونځي ورروستي زنګ هم ووهل شو. بيا يې فکر ګډوډ شو.

يووانا د لوبو په ميدان کې ورته تم وه. د ښوونځي پر لار يې بکسه پرانيسته او نوى کارت يې يووانا ته وړ وښود.

يووانا وويل:

- د پست پر مهر کومه نېټه ليکل شوې؟
- د جون ۱۵مه
- نه ورته وګوره، ليکلي دي ۹۰/۰۵/۳۰
- يعنې پرون؟ په لبنان کې د يوه قومندان تر مړينې وروسته؟

يووانا وويل:

- فکر نه کوم، چې پستي کارت دې په يوه ورځ کې له لبنانه ناروې ته را ورسيږي.
- ته ګوره بيا دې عجيبې پتې ته. هيلده مولرکناګ، د سوفي په لاس، د فروليا ښوونځي...
- ته داسې فکر کوې، چې له پست سره يو ځاى راغلى دى او ښوونکي کارت ستا په کتابچه کې اېښى دى؟
- نه پوهېږم، دومره جرأت هم نه لرم چې هغه پوښتنه وکړم

د پستي کارت خبره همدلته پاى ته ورسېده.

سوفي وويل:

- غواړم د اوړي په لومړى شپه مې په بڼ کې يوه ښکلې ميلمستيا تياره کړم
- له هلکانو سره؟

سوفي خپلې اوږې پورته واچولې.

- دا خو اړینه نه ده، چې ددوی تر ټولو احمق را وغواړم

- جرمې ته خو به هرو مرو وایې؟

- که ته وغواړې. رښتیا غواړم آلبرتو کناکس هم را وغواړم

- عقل دې په ځای دی؟

- هو پوهېږم.

خبرې همدلته پای ته ورسېدې. ځکه ستر پلورنځي ته را ورسېدل او هر ځوک په خپله لاره ولاړل.



سوفي کور ته را ورسېده، لومړی بڼ ته ولاړه. غوښتل یې ووینې چې هرمس راغلی که نه. تصادفي هرمس هلته و. د منو تر ونو ګرد تاوېده او ځمکه یې بویوله.

- هرمس!

سپی یوه شېبه ځای پر ځای ودرېد. سوفي پوه شوه، چې په دې یوه شېبه کې د سپي په مغز کې څه تېر شول؛ سپی د خپل خاوند غږ اوري. هغه پېژني، په هغه پسې ګرځي. هغه یې چې ولید، ور منډه کوي. په پای کې په څلورو پښو درېږي لکه ډول غپ غپ غږونه وباسي.

دا هر څه په همدې یوه شېبه کې کېږي.

سپي د نجلۍ په لوري منډه کړه. لکۍ یې تېزه تېزه ښوروله، ټوپ یې واچاوه، د سوفي پر مخ یې ژبه تېره کړه.

- هرمس هرمس، بس کړه، ښه سپیه بس کړه، ټول مخ مې دې په ناړو ککړ کړ. آرام اوسه ښکته شه!

سوفي کور ته ننوته. پیشو یې د بوټو له منځه پسې منډه کړه. پردي ژوي ته یې پام نه و. سوفي د هغه خواړه بهر کېښودل. د عشق د مرغانو په لوښي کې یې دانه واچوله. کیشپ ته یې هم د کاهو څو پاڼې واچولې. مور ته یې څو کرښې ولیکلې. لیکلي یې و، چې هرمس یې کور ته رسوي او په اوو بجو بېرته راګرځي.

د ښار پـر لاره روان شـول، دا ځـل يـې يـو څـه پيسـې لـه ځـان سره واخيستې.
ستونزه دا وه، چې لـه هـرمس سره يـو ځـاى بـس تـه نـه شـواى ختلـى. پرېکړه
يې وکړه، چې ودرېږي او له آلبرتو پوښتنه وکړي.
د سپي او انسـان تـوپير پـه څـه کـې دى؟ د ارسـطو خـبر وريـاده شـوه. ارسـطو
بـه ويـل، انسـان او حيـوان دواړه، سـا لرونکـي او سره ورتـه طبعـي موجـودات
دي. دوى گـډ خويونـه لـري. خـو ددوى تـرمنځ د تـوپير سـتره ځانگړنـه تعقـل
دى.
ارسطو پر دې خبره له کومه ځايه باوري و؟
دموکريتوس بيـا بـاوري و، چـې انسـان او حيـوان ډېـر يـو بـل تـه سره ورتـه دي،
ځکـه دواړه لـه اتمونـو جـوړ شـوي دي. دا يـې نـه منلـه، چـې انسـان، حيـوان يـا
بـل هـېڅ حيـوان دې تلپـاتې روح ولـري. دده پـه خـبره روح هـم لـه اتومونـو
جـوړ شـوى دى. کلـه چـې سـاکښ مـړ کېـږي، نـو شـمال يـې اتومونـه سره
ويشي- او شـني يـې. د روح اتمونـه يـې هـم همداسـې کېـږي. دموکريتـوس و،
چې ويل يې د انسان روح د هغه له مغزه بېله نه ده.
خـو روح څنگـه لـه اتومونـو جوړېـدلاى شي؟ روح داسـې څـه نـه دى، چـې د
نورو څيزونو په شان هغه لمس کړو، روح معنوي شى دى.
تـر سـتر ميـدان تېـره شـوه، لرغـوني ښـار تـه نـږدې شـوه. هغـه پيـاده رو تـه
ورسېده، چې لـس کرونـه يـې پکـې مونـدلي وو. نجلـى بـې اختيـاره، قيـر سرک
تـه وکتـل. پـه همغـه ځـاى چـې سـيکه پرتـه وه اوس پسـتې کـارت پـروت و.
انځور يې پورته لوري ته و. په انځور کې د خرما له ونو ډک بڼ ښکارېده.
سوفي ور ټيټه شوه، کـارت يـې را واخيسـت. هـرمس پـه غيبـدا شـو. ښـايي نـه
يې غوښتل چې سوفي کارت راپورته کړي.
د کارت پر څټ ليکل شوي وو:
گرانې هيلده!
ژونـد د تصـادفونو يـو اوږد زنځيـر دى. ښـايي لـه تـا ورکـه شـوې
سـيکه همدلتـه پرتـه وي. ښـايي هغـه سـپين سرې ښـځې اخيسـتې

وي، چې غوښتل يې له ليله سن کريسنين سن ته ولاړه شي. له هغه وروسته، په اورګاډي کې سپريږي او د خپلو لمسيانو لېدلو ته ورځي. ساعتونه وروسته د لسو کرون دلته په ميدان کې ورکوي. بيا نو څوک خبر، يوه نجلۍ به راغلې وي، پيسو ته به يې اړتيا وي او دا سيکه به يې موندلې وي. پوهيږې هيلده! انسان هيڅ وخت پر دې خبرو باوري نه وي، که وي نو بايد هرو مرو له څانه پوښتنه وکړو، چې ددې تولو پېښو تر شا د خداى لاس دى که نه؟ پلار دې درنه خار شه! روح مې اوس هم په ليله سن کې د کور ترڅنګ ناسته ده.

پاپليک: ما ويلي و، چې د لسو کرونو په پيدا کولو کې دې درسره مرسته کوم.

د کارت پر بله خوا ليکل شوي وو: هيلده مولرکناګ، د تېرېدونکي کس په لاس... د پست خوني مهر، نيټه: ۹۰/۰۶/۱۵.

سوفي په منډه منډه له هرمس سره يو خاى پر زينو پورته شوه. همدا چې آلبرتو ور پرانيست، سوفي غږ ورباندې وکړ.

- يوې خوا ته شه، پست رسوونکى راغلى دى

فکر يې وکړ، چې ددومره ورخطايي حق لري. آلبرتو يوې خوا ته ودرېد، نجلۍ ننوته. هرمس د تېر په څېر ولاړ تر کوټ بندونو لاندې پرېووت.

- قومندان کوم بل کارت رالېږلى لوري؟

سوفي آلبرتو ته وکتل. ورته خير شوه، هغه نوري جامې اغوستې وې. ببره خولۍ يې پر سر وه. ويښته يې تاو تاو او ښکلي وو. جامې يې پراخې وې او بندونه يې لرل. وربښمني دسمال يې په غاړه کې و، ښکلي او بريښېدونکي و. پر اوږو يې سور خادر ته ورته شي پروت و. سپينې لوړې جرابې يې په پښو وې، بوټان يې هم ټيټ او ښوى وو. د آلبرتو له سره تر پښو انځور د سوفي په ذهن کې د لوى څوارلسم د دربار کسان انځور کړل. سوفي وويل:

- مسخرې!

کارت یې آلبرتو ته ورکړ.

- همم... دا کارت په رښتيا تا هلته ومونډ، چې د لسو کرونو سکه پرته وه؟
- هو دقيقا پر همغه ځای
- هغه تر خپل حد اوړي، ښايي ښه کار وي
- ولې؟
- نيول يې آسانه کېږي. خو دا کار چل دی او دومره خوند نه کوي. د ارزانه عطرو په څېر بد بوی لري.
- عطر؟
- غواړي ځان ښه ښه وښيي. خو مکار دی. وينې، په بېشرمۍ مونږ تعقيبوي بيا دا ټول کارونه د خدای له لوري بولي؟

پستي کارت يې پورته ونيو. بيا يې هغه ټوټه ټوټه کړ. سوفي په ښوونځي کې د بل کارت خبره پټه کړه. ځکه پوهېده چې آلبرتو به غوسه شي.

- څه چې د نه ولاړ شو. څو بجې دي؟
- څلور
- نن د اوولسمې پېړۍ په اړه خبرې کوو

د ناستې کوټې ته ولاړل. ښکلي ديوالونه يې وو. له پورته ښکلې رڼا رالوېدلې وه. آلبرتو د تېرو څېړونو پر ځای نوي شيان ځای پر ځای کړي وو. ډېرې مخکيني شيان چې سوفي ليدلي وو، اوس نه وو.

پر ميز، عتيقه صندوق اېښي و، له عدسيو او ذره بينونو ډک و. تر څنګ يې پرانيستې او عمر خوړلې کتاب و. ښايي ډېر زوړ و.

- ښوونکيه دا څه دي؟
- د دکارت د فلسفي مقالو لومړۍ ټولګه ده. په ۱٦۳۷ز کال کې خپره شوې ده. د هغه د مشهور ميتود[1] په اړه معلومات په همدې

---

[1] Discourse Method

کتاب کې راغلي دي. دا کتاب يو له هغو ځېزونو دی چې پر ما ډېر ګران دي.

- نه! دا صندوقچه بيا..
- په صندوقچه کې ځينې عدسې او ذره بينونه دي. دا هر څه د اوولسمې پېړۍ په مينځ کې د مشهور هالندي فيلسوف سپينوزا له لوري جوړ شوي دي. دا ډېر ګران بيه توکي دي او همدارنګه پر ما د ګرانو شيانو په ډله کې راځي.
- که پوه شم، چې سپينوزا او ديکارت څوک دي، ددې شيانو ارزښت به هم راته معلوم شي.
- هو هو! خو مخکې تر دې چې له دوی سره معرفي شې، په لومړي سر کې به ددوی د چاپېريال په اړه ځينې خبرې درته وکړم. ته کېنه!

دواړه پر مخکېني ځای کېناستل. سوفي په وړه يوه کسيزه څوکۍ کې کېناسته او آلبرتو بيا په اوږده څوکۍ کې مخامخ سوفي ته کېناست. کوچنی مېز، پر سر يې صندوقچه او کتاب ددوی په منځ کې و. آلبرتو خپله بېره خولۍ لرې کړه او د مېز پر سر يې کېښوده.

- نن د اوولسمې پېړۍ په اړه، يا د هغه څه په اړه خبرې کوو، چې خلک يې د باورک عصر بولي.
- د باروک عصر، څومره عجيب نوم دی
- د باروک کلمه، د نامنظم شکلو ملغلرو د ستاينې لپاره کارول کېږي. بې نظمي د باروک هنر ځانګړنه وه. د رنسانس د هنري سبک په پرتله، چې ډېر ساده او موزون و، له تقابلي شکلونو ډک و. نه ختمېدونکي تکرونه په تولېزه توګه د اوولسمې پېړۍ ښکاره ځانګړنې وې. له يلې خوا د رنسانس بې وقفې هيله مندي وينو. همداسې په مقابل کې يې هغه کسان وينو، چې د سخت ژوند پلويان وو او په مذهبي انزوا کې يې ژوند غوره ګاڼه. په ژوند او

هنر کې له يوې خوا له رنګونو، ښکلا، ځانښودنې او تکبر ډکې صحنې وينو او له بلې خوا بيا رهباني او ګوښه ناستې نهضتونه وينو.

- په بله وينا، هم لوړې ودانۍ وينو هم لرې او ويجاړې جونګړې

- هو، بده خبره نه ده. د باروک د عصر - يوه مشهوره خبره د لاتيني ژبې (هر نفس غنيمت وشماره) عبارت و. بله اصطلاح چې ډېره يادېدله (مرګ مه هېروه) وه. په هنر کې، د بېلګې په توګه نقاش د ژوند يو ښکلې او زړه راښکونکې انځور جوړاوه، خو وروسته به يې يوه وړه ککره هم د انځور په کنج کې رسم کړه.

- د باروک د عصر - ځانګړنې، په بېلو مفاهيمو، ځانښودنې او تصنع کې وې. په ورته وخت کې ډېرى کسان په دې لټه کې وو، چې د سيکې بله خوا پيدا کړي. دوی دداسې واقعيت په لټه کې و، چې دا ټوله ښکلا يې له ځان سره لرله، دوی به ويل، انسان يوه ورځ که وغواړي يا و نه غواړي له دې نړۍ تلونکی دی او دا هر څه له منځه ځي.

- دا سمه ده. دا نو څومره غم لرلې خبر ده، چې هېڅ شی تلپاتې نه دي

- اوس نه د اوولسمې پېړۍ د خلکو په څېر فکر کوې سوفي. د باروک عصر - يوازې د هنر او مذهب له اړخه داسې نه و، له سياسي اړخه هم، د جنګونو او تکرونو عصر - و. جګړو اروپا ړنګه کړه. تر ټولو بده يې دېرش کلنه جګړه وه، چې د ۱۶۱۸- ۱۶۴۸ کلونو ترمنځ وشوه. د اروپا ډېره برخه ړنګه شوه. دا جګړه په حقيقت کې د څو جګړو ټولګه وه، چې آلمان پکې ګرم و پېژندل شو. ددې جګړو يوه مهمه پايله دا وه، چې ورو ورو فرانسه پر اروپا واکمن قدرت شو.

جګړه په څه باندې وه؟

جګړه تر ډېره د پروتستانت او کاتولیک کلیساګانو ترمنځ وه. خو
- د سیاسي واکمنۍ له خپلولو سره یې هم اړیکه لرله.
لږ او ډېر لبنان ته ورته حالت و
- له جګړو چې تېر شو، اوولسمه پېړۍ د سترو طبقاتي اختلافاتو
- زمانه وه. د فرانسوي اشرافو او ورسای ددربار کیسه به دې هرو
مرو اورېدلې وي. خو نه پوهېږم چې د فرانسې د خلکو د ناچارۍ
کیسې دې تر غوږ شوې که نه. د قدرت د ښودلو لپاره لومړی
شرط دا دی، چې خپل شان او شوکت به خلکو ته ښیې. ډېرو
ویلي، چې د باورک د عصر- سیاسي حالت یې هم د هنر او
معماري حالت ته ورته و. د باروک د معمارۍ ځانګړنه دا ده،
چې ښکلې او زړه وړونکې ودانۍ او نقاشۍ په یو بل کې ننوتې
دي. سیاسي وضع هم همدې ته ورته، له قتل، پټنو او دسیسو ډکه
وه.
- هغه د سویډن یو پاچا و، چې په ننداړتون کې ووژل شو؟
- موخه به دې درېیم ګوستاو وي. هو دا زما د خبرې لپاره ښه بېلګه
ده. درېیم ګوستاو په ۱۷۹۲ کال کې ووژل شو. د هغه وژنې هم
باورکي حالت درلود. هغه یې په یوه ستره مېلمستیا کې وواژه.
ټولو ماسکونه اغوستي وو.
- ښه ما فکر کاوه، چې په تیاتر کې و.
- په اپرا تالار کې مېلمستیا وه، ټولو باید ماسکونه اغوستي وای. د
درېیم ګوستاو په وژل کېدو په سویډن کې باروک عصر- هم پای
ته ورسېد. ددغه پاچا په وخت کې یو څه خپل سري پیل شوه،
خو دا خپل سري له یوه روښانه لیډلوري تر سره کېده. کله د
لویي څوارلسم په وخت کې، چې نږدې سل کاله مخکې پاچا
و. درېیم ګوستاو هم ډېر ځانښوودنکی انسان و، د فرانسې د

تشریفاتو بڼه یې ډېره خوښېده. همداسې یې له تیاتر سره هم ډېره مینه لرله...

- همدا یې د مرګ سبب هم شو
- خو د باورک په عصر- کې تیاتر یوازې هنر و... د هغه وخت دود شوی سمبول و.
- د څه سمبول؟
- د ژوند سمبول سوفي. خدای خبر څو ځلې به اوولسمه پېړۍ کې وویل شول، چې ژوند تیاتر ته ورته دی. ډېره دا خبره شوې ده، ډېره. هر څه چې وي، تیاتر، ماشینونه یې، صحنې یې او هر څه یې د باروک عصر- رامنځته کړل. په تیاتر کې انسان یو توهم روزي، څو وښیي، چې ننداره له یوه توهم پرته بل څه نه ده. په دې توګه نو تیاتر د انسان د ژوند ټول انځور شو. تیاتر کولی شوای دا وښیي، چې غرور د ماتې سبب ګرځي. همداسې د بشر- د ضعف یا کمزورۍ یو انځور ښودلی شي.
- شکسپیر د باروک په عصر کې ژوند کاوه؟
- شکسپیر خپله ستره او مهمه ننداره د ۱۶۰۰ ز کال په شاوخوا کې ولیکله. نو په دې توګه د هغه یوه پښه د رنسانس او بله د باورک په عصر- کې وه. د شکسپیر آثار هم له دې خبرو ډک دي، چې ژوند یوه تیاتر ته ورته بولي. غواړې یو څو توټې یې درته ولولم.
- هو!
- د (هر ډول چې غواړې) په ننداره کې وایي:

ژوند ټول یوه صحنه دی
نارینه او ښځینه یې لوبغاړي
صحنې ته راځي او له صحنې ځي
او هر څوک په خپل عمر کې د ډېرو کرکټرونو رول لوبوي

په دویم مکبث کې وایي:

ژوند، د ښوا لوبغاړو ربړدېدلي سيوري ته ورته دی
پر صحنه پرېځوي او په ډک زړه خپل وخت تېروي
وروسته يې په اړه هېڅ خبر هم نه وي، ژوند کيسه ده
له شور او له غږونو ډکه کيسه، خو بې مانا
ښايي يوه بې عقل يې روايت راوړی وي

- خومره منفي!
- ذهن يې د ژوند پر لنډوالي بوخت و. د شکسپير تر ټولو مشهور بيت دې هرو مرو اورېدلی دی که څنګه؟
شته والی يا نشتوالی هومره مهم نه دی!
- هو هملت چې وايي، يوه ورځ د ځمکې پر پلنه سينه ګرځو. بله ورځ مړه يو او تللي يو.
- منه په موخه دې پوه شوم!
- د باروک شاعرانو يا ژوند د تياتر صحنه بلله او يا يې هغه يوه خوب ته ورته څه باله. د بېلګې په توګه شکسپير وايي: موږ د خوبونو د جوړولو يوه خميره يو. زموږ ناچيزه ژوند په يوه خوب پای ته رسېږي.
- دا نو ډېره شاعرانه شوه!
- مشهور هسپانوي ليکوال، کالدرون دلابارکا په ۱۶۰۰ز کال کې ژوند کاوه. د (ژوند خوب دی) په نامه يې مشهوره ننداره وليکله. په هغه کې وايي: ژوند څه دی؟ ژوند لېنتوب دی. ژوند څه دی؟ ژوند يوه وېره، يو سيوری، يوه کيسه او تر ټولو ستره بې ارزښته نېکمرغي ده. ژوند ټول يو خوب دی.
- ښايي هغه په حقه وي. موږ په ښوونځي کې يوه ډرامه ولوسته. نوم يې (جېپه د غره پر سر[۱]) و.

[۱] Jeppa on the mount

- ښـه لودویـګ هـولبر لیکلـې ده. هغـه پـه سـکاندنویا کـې مشهوره شېره ده. هغه له باروک د روښانتیا پړاو ته د اوښتو سمبول دی.
- یوپـه پـه ویرانـه کـې ویـده کېـږي... د سـلطان پـر کـټ لـه خوبـه پـاڅېږي. داسـې انګیـري لکـه خـوب یـې چـې لیـدلی وي. فکـر کـوي دا بـه خـوب و، چـې د کرونـدو تـش لاسـی کـارګر و. بیـا چـې بېرتـه ویـده کېږي، هغـه خپـل پخواني ځـای تـه وړي، را وېښـېږي دا ځـل فکر کوي، چې ځان یې سلطان په خوب لیدلی دی.
- هـولبر دا مضـمون لـه کالـدرون اخیسـتی دی. کالـدرون بیـا دا لـه عـربي داسـتان (الـف لیـل) نـه اقتبـاس کـړی دی. لـه خوبونـو د ژونـد قیـاس کـول، داسـې مضـمون دی، چـې پـه ملتونـو کـې اوږده تـاریخي مخینـه لـري. پـه ځـانګړې توګـه پـه چـین او هنـدي مـذهبونو کې دا مضـمون ډېـر لیـدلای شـو. د چـین یـو لرغـونی افسـانوي کرکټـر چین چوانګ تسـه، پـه یـوه ځـای کـې وایـي: مـا یـو ځـل خـوب ولیـد، چې ښایسته پتنـګ یـم. اوس نـو نـه پـوهېږم، چې چوانـګ تسـه یـم، پتنګ مـې پـه خـوب لیـدلی، یـا پتنـګ یـم، دا خـوب مـې لیـدلی چې چوانګ تسه یم.
- هو یو هم نه شو ثابتولای.
- مـوږ هـم پـه نـاروې کـې بـاروکي شـاعر درلـود. پـتردس نومېـده. د ۱۶۴۷ او ۱۷۰۷ز کلونـو تـرمنځ یـې ژونـد کـاوه. هغـه لـه یـوې خـوا د طبعـي نـړۍ او ژوند پـه سـتاینه کـې ډوب و او لـه بلـې خـوا یـې بـاور درلود، چې یوازې خدای تلپاتې دی.
- خـدای خـو خـدای دی، کـه ټولـه نـړۍ ورانـه شي هـم خـدای شـته دی، که بشر نه وي هم خدای شته دی.
- هو پـه همـدې مـذهبي سندره کـې، د نـاروې د شـمالي برخـو کلیـوالي ژونـد بیـانوي او د کبـانو ډولونـه یـادوي. دا د بـاروک د سـبک ښـه بېلګه ده. په یـوه واحـد مـتن کـې هـم ټـول دنیـوي شیان سـتایل کېږي

او هم اخروي مسايلو ته پام کېږي. سړی د افلاطون په فکر کې شي، د محسوساتو ملموسه نړۍ يې سترګو ته ودرېږي او د مثالونو نړۍ يې ذهن کې انځور شي.

- دوی د فلسفې په اړه څه ويل؟

- ددوی فلسفه هم د متضادو فکرونو د کشمکش ښکار وه. مخکې مې هم وويل، ځينې فيلسوفان په دې باور و، چې شته شيان په اصل کې يو معنوي ماهيت هم لري. دغه ليدلوري ته يې (آيډياليزم) وايه. ددې په مقابل کې بل ليدلوری بيا (ماترياليزم) و. له ماترياليزم موخه .هغه فلسفه ده چې وايي، هر حقيقي شی له ملموسو مادي موادو جوړ شوی دی. په دې ډله کې تر ټولو مشهور او بانفوذه فيلسوف تاماس هابز و. هابزه باوري و، چې د انسان او حيوان په ګډون ټولې ښکارندې، يوازې د مادې له ذراتو جوړې شوې دي. دده په باور د انسان ضمير او روح هم، په مغز کې د وړو ذراتو د حرکت له امله رامنځته شوي دي.

- دا نو د دموکريتوس د دوه زره کاله مخکې خبرې سره ورته خبره وه؟

- ماترياليزم او آيډياليزم دوه هغه مفکورې دي چې په ټوله فلسفه کې ترسترګو کېږي. خو په نورو وختونو کې دومره له يو بل سره نږدې نه دي ليدل شوې لکه د باروک په عصر-کې چې له يو بل سره ډېرې ښکاره رابرسېره شوې دي. نوو علومو تر ډېره له ماترياليزم اوبه څښلې. نيوټن دا خبره ثابته کړه، چې د حرکت يو شان قوانين، پر ځمکه او فضا حاکم دي. دده په باور، ټول طبعي بدلونونه، چې په ځمکه او فضا کې رامنځته کېږي، د اجسامو د عمومي جاذبې او حرکت له مخې بيانولی شو.

- په دې توګه نو هر څه د واحدو نه ماتېدونکو قوانينو يا ميکانيزمونو تابع دي. نو که اصولو ته وګورو، هر طبعي بدلون د

ریاضي له مخې محاسبه کولای شو. په دې توګه نو نیوټن هغه څه تکمیل کړي، چې د میکانیزمي نړۍ لید په نامه مشهور دی.

- نړۍ یې ستر ماشین باله؟
- هو سمه ده. د میکانیک کلمه، د یونانی د میخاني[1] له کلمې راوتې، چې د ماشین په مانا ده. دا به حیرانوونکې وي، چې هابز او نیوټن د میکانیستي لیدلوري او پر خدای د ایمان تر منځ هیڅ ټکر نه لیده. خو د اتلسمې او نولسمې پېړۍ د ماتریالیستانو وضعیت بیا له دوی سره توپیر درلود. فرانسوي فیلسوف لامتري[2] په اتلسمه پېړۍ کې د انسان ماشین[3] په نامه کتاب ولیکه. ده به ویل، همداسې چې پښې د حرکت لپاره عضلې لري مغز هم د فکر کولو لپاره عضلې لري. کلونه وروسته مشهور فرانسوي فیلسوف لاپلاس[4] میکانیستي نظریه په دې توګه بیان کړه: که په یوه ځانګړي وخت کې ټیرکو موجوداتو، د مادې د ټولو ذراتو موضع لیدلې وای، هیڅ شی به مجهول پاتې نه وو. تېر او راتلونکې به ددوی پر وړاندې په ښکاره توګه پراته وو. ددې خبرو مانا دا ده، هر څه چې کېږي مخکې له مخکې همداسې ورته ټاکل شوې ده. په ستورو کې لیکل شوي، چې داسې یا هسې به کېږي. دغه نظریې ته دیترمینیزم[5] وايي.
- نو اختیار او آزاده اراده هم نشته ده
- نه! وايي ټول ځېزونه آن زموږ فکرونه او خیالونه هم د همدې میکانیکي لړۍ محصول دي. د آلمان ماتریالستانو په ۱۹مه پېړۍ

[1] Mechane
[2] Lam emettre (۱۷۰۹-۱۷۵۱)
[3] L Hamme Machine
[4] Simon Lapelas (۱۷٤۹-۱۸۲۷)
[5] Determinism

کې دا ادعا هم وکړه، چې د فکر اړيکه له مغز سره، له گوردو سره
د ادرار اړيکې ته ورته ده.
گوره ادرار ماده ده، فکر خو ماده نه دی
- آفرين پر اصلي مطلب دې گوته کېښوده. په همدې اړه يوه کيسه
- درته کوم. يوه روسي ستوري پېژندونکي او فضانورد يوه ورځ د
مغز له يوه ډاکتر سره د مذهب په اړه بحث کاوه. جراح مسيحي
و، فضانورد بيا بې دينه و. فضانورد وويل، زه په خلونو فضا ته
تللی يم، خو هلته مې خدای او پرښتې نه دي ليدلې. جراح بې په
ځواب کې وويل، ما ډېر هوښيار مغزونه عمليات کړي دي، خو
هېڅ وخت مې پکې آن يو فکر هم نه دی پيدا کړی.
- خو دا ددې دليل نه دی چې فکر نشته
- نه! خو دا حقيقت څرگندوي، چې فکر د ټوټه کېدو، عمليات
کېدو يا ليدل کېدو وړ شی نه دی. هغه په وړو ټوټو نه شو
ويشلای او همداسې د عمليات له لارې يې د چا له سره نه شو
ايستلای. د بېلگې په توگه دا کوم آسانه کار نه دی، چې يو کس
جراحي کړو، بيا په همدې توگه د هغه له مغزه وهمونه او خيالونه
راوباسو. د اوولسمې پېړۍ مشهور فيلسوف لايب نيتس[1] وايي، د
مادي او روحي څيز توپير دا دی، چې مادي شی ماتولای او
ټوټه کولای شو، خو روح آن په دوو برخو هم نه شو وېشلای.
- نه، که وکړای شو هم، نو څه ډول چاړه به ددغه عمليات لپاره
کاروو؟
آلبرتو يې يوازې سر وښوراوه. څو شېبې وروسته يې هغه مېز ته اشاره
وکړه، چې ددواړو ترمنځ اېښی و، و يې ويل:

[1] Leibnitz (۱٦٤٦-۱۷۱٦)

- دیکارت او سپینوزا د اوولسمې پېړۍ تر ټولو ستر فیلسوفان دي.
دوی هم د روح او جسم د اړیکې پر مسایلو بحث کاوه. اوس به
ددې دواړو پر فکر دقیقه کتنه وکړو.
- سمه ده خو ګوره په پوره اوو بجو زه باید په کور کې وم

# دکارت

**...غوښتل يې، چې د دېوالونو ټولې ډبرې او خختې لرې کړي...**

آلبرټو ودرېد. سور څادر ته ورته شی يې له اوږو لرې کړ. پر څوکۍ يې
کېښود، بېرته راغی پر اوږده څوکۍ کې يې ډډه ووهله.

- رنه ديکارت[1] په ۱۵۹۶ز کال کې زېږېدلی دی. د خپل عمر ډېره برخه يې د اروپا په بېلو هېوادونو کې تېره کړې ده. هغه ان په ځوانۍ کې د انسان او طبيعت په اړه پلټونو ته لېوال و. غوښتل يې انسان وپېژني. خو کله يې چې فلسفه ولوسته نو تر پخوا ډېر پخپل جهالت پوه شو.
- لکه سقراط
- هو! لږ و ډېر د هغه په څېر و. د سقراط په څېر باوري و، چې معرفت يوازې د عقل له لارې تر سره کېږي. ده به ويل په تېرو کتابونو کې پر راغلو شيانو باور کولای نه شو، ان هغه څه چې زموږ حواس يې راښيي هم د باور وړ نه دي.
- افلاطون هم همدا خبره کوله. د هغه په باور، معرفت يوازې د عقل له لارې شونی دی.
- هو سمه خبره ده. يوه مستقيمه کرښه موږ له سقراط او افلاطونه، د قديس اوګوستينوس په مرسته تر دکارت پورې را رسوي. دوی ټه عقلپالان ويلای شو. دوی به ويل، عقل د معرفت او پېژندنې يوازينۍ لار ده. دکارت وروسته د خپلو مطالعو په لړ کې دا خبره هم وکړه، چې له تيارو پېړيو پر راپاتې پوهو او کتابونو باور نه دی په کار. ده وويل اړ نه يو، چې له پخوانيو راپاتې شوي شيان د داد وړ وبولو. دکارت له سقراط سره پرتله کولای شو. هغه هم په

[1] Rena Descartes

کوڅو او لارو کې د خلکو پر شته باورونو شک وکړ. سوفي ته
کولای شې، چې په دې حالت کې د انسان مکلفیت په ګوته
کړې؟

- په داسې حالت کې به پر خپله فلسفه کار کوي

- سمه ده. دکارت پرېکړه وکړه، چې د اروپا ګوټ ګوټ ته سفرونه وکړي لکه سقراط چې خپل ټول عمر په آتن کې له خلکو سره په خبرو اترو تېر کړ. ویل کېږي له هغه وروسته یې هڅه وکړه، چې یوازې په عقل پسې ولاړ شي. ده هڅه کوله، چې عقل پالنه، په خپل وجود او د نړۍ په ستر کتاب کې و پلټي. له همدې امله له پوځ سره یو ځای شو او جګړې ته ولاړ. په همدې توګه یې د خپل عمر ډېره برخه د مرکزي اروپا په بېلابېلو سیمو کې تېره کړه. وروسته څو کاله په پاریس کې مېشت شو. په ۱۶۲۹ کې هالنډ ته ولاړ او نږدې شل کاله یې هلته ژوند وکړ. هلته یې د خپلو فلسفي او ریاضیکي آثارو پر ترتیب او سمونه پیل وکړ. په ۱۶۴۹ز کال کې د ملکې کریستینا په غوښتنه سویډن ته ولاړ. هملته د ژوند پر مهال دده په خبره (د خرسونو، یخونو او غرونو) په وطن کې په ذات الریه اخته شو او د ۱۶۵۰ز کال په ژمي کې د همدې ناروغۍ له امله ومړ.

- په ۴۵ کلنۍ کې ومړ.

- هو! خو تر مرګ وروسته یې هم پر فلسفه حیرانوونکې اغېز پروت و. له اغراق پرته ویلای شو، چې دکارت د نوې فلسفې پلار و. په رنسانس کې د انسان او طبیعت له نوي کشف وروسته، ددې اړتیا پیښه شوه، چې د وخت فکرونه په یوه روښانه فلسفي نظام کې سره راټول شي. دکارت ددغه نظام لومړنی با اهمیته جوړوونکی و. تر هغه وروسته سپینوزا، لایب نیتس، لاک، بارکلي، هیوم او کانت..

- له فلسفي نظام دې موخه څه ده؟
- موخه مې داسې فلسفه ده، چې پر یوه بنسټ ولاړه وي او د فلسفې د ټولو اصلي مسایلو سببونه پیدا کړي. افلاطون او ارسطو د لرغونو پېړیو تر ټولو ستر نظم جوړونکي وو. په تیاره پېړیو کې بیا قدیس توماس او آکویناس دا کار وکړي. دوی هڅه وکړه چې د ارسطو او مسیحي الهیاتو ترمنځ پل جوړ کړي. په دې وخت کې رنسانس راغی، له ځان سره یې، پر خدای او طبیعت د نوو او زړو باورونو یو ستر هجوم راوست. تر اوولسمې پېړۍ هېڅ فیلسوف دا هڅه نه وکړې، چې نوي فکرونه په یوه فلسفي نظام کې راټول کړي. دکارت هغه کس و چې د لومړي ځل لپاره یې دا کار وکړ. د هغه کار د راتلونکو نسلونو لپاره د فلسفې په برخه کې بنسټ سرچینه او تګلاره شوه. دکارت تر ډېره د پېژاند یا یقیني معرفت په فکر کې و. د روح او جسم موضوع هم د دکارت ذهن بوخت کړی و. دغه دوه مطلبونه د راتلونکو پنځوسو کلونو د فلسفي بحثونو اصلي جوهر ګڼلای شو.
- نو هغه تر خپلې زمانې مخکې و.
- هو، خو دا موضوع د وخت او ورځې موضوع وه. ډېری معاصرانو یې، د یقیني معرفت د تر لاسه کولو په برخه کې مطلق فلسفي شکاکیت[۱] څرګندلاوه. ددوی په باور انسان باید دا ومني چې په هېڅ نه پوهېږي. خو دکارت بیا دا خبره نه منله. که یې دا خبره منلې وای بیا خو نو ریښتیني فیلسوف نه و. هغه نو له سقراط سره پرتله کولای شو، چې د سوفسطایانو شکاکیت یې ومانه. د دکارت د ژوند په زمانه کې نوي طبعي علوم په دې لټه کې وو، چې د طبعي پېښې او حالات په یقیني او کره توګه تشریح کړي.

---

[۱] Scepticism

- دکارت هم بله چاره نه لرله. له خانه یې پوښتنه وکړه، چې د فلسفي تګلارو لپاره هم، همداسې یقیني او کره لار پیدا کولای شو که نه.
- د پوهېدو وړ ده.
- خو دا د موضوع او پېښې یوه برخه وه. نوي فزیک د مادې د ماهیت موضوع هم رابرسېره کړې وه. او دا پوښتنه به هم را ولاړه شوې وه، چې په طبیعت کې د پېښو مادي علت څه دی؟ ډېرو او ډېرو کسانو له میکانیکي لیدلوري طبیعت ته کتل. خو څومره به چې له میکانیکي لیدلوري طبیعت او ژوند ته کتل ډېرېدل همدومره د روح او جسم ترمنځ شته مسایل سختېدل. تر اوولسمې پېړۍ ټولو روح یو (د ژوند سا) باله. دوی به ویل دا سا د ټولو ژوندیو په وجود کې شته دی. د روح او روان لومړنی ماناګانې په ټولو اروپايي ژبو کې، سا او ساکښل وې. د ارسطو په خبره روح د ژوند اصل دی. د ژوند موجود په ټولو اندامونو کې شته ده. له دې امله هغه له بدنه بېل شی نه شو ګڼلای. له همدې امله ارسطو د انسان او بوټي د روح په اړه خبرې کوي. فیلسوفانو تر اوولسمې پېړۍ پورې د جسم او روح ترمنځ دومره توپیر نه راوست. څکه چې دوی د ټولو مادي څېزونو حرکت، له دې ډلې جسم که د حیوان جسم یا د انسان وي، د میکانیکي بهیر پایله بلله. خو د انسان روح خو د هغه د جسم د ماشین برخه نه شو شمېرلای. نو د روح مسئله څه ده؟ باید دې خبرې ته یوه توضیح پیدا کړو، چې څه ډول یو معنوي شی میکانیکي کار کولای شي.
- حیرانوونکې ده په رښتیا هم!
- څه شی؟

- زه غـواړم لاس مـې پورتـه ونیسـم. لـه خنـده پرتـه مـې لاس پورتـه کېږي. یـا غـواړم پـه بـس مـوټر پسـې منـډه وکـړم، خـو شـېبې هـم نـه وځـي چـې پښـې مـې حرکـت پیلـوي. یـا د یـوه غمنـاک څـه پـه اړه فکـر کـوم، ناڅاپـه مـې اوښـکې حرکـت کـوي. نـو بایـد د جسـم او ضمیر ترمنځ یو پټ تار موجود وي.
- هو دقیقـا همـدا مسـله وه، چـې دکـارت یـې پـه فکرونـو کـې ډوب کـړ. دی هـم د افلاطـون پـه څېـر بـاوري و، چـې د روح او مـادې تـر منـځ ښـکاره تـوپیر شـته دی. خـو افلاطـون دې تـه ځـواب نـه درلـود، چـې څنګه ذهن پر بدن یا روح پر جسم اغیز پرېباسي.
- زه هم ځواب نه لرم ورته، غواړم د دکارت خبرې واورم.
- ته خو اجازه راکړه، د خپل استدلال خط تعقیبوو.

آلبرتو د میز پر سر ایښي کتاب ته اشاره وکړه:

- دکـارت پـه خپـل کتـاب کـې پـر تګـلاره بحـث کـوي، پـر داسـې تګلاره چـې فیلسـوف یـې د فلسـفي موضـوع د حـل لپـاره کـاروي. پـه دې وخت کې علومو خپله نوې تګلاره پیدا کړې وه.
- هو مخکې دې وویل.
- دکـارت وایـي، هغـه څـه چـې مـوږ تـل پـه ښـکاره او مشخصـه توګـه د حواسـو لـه لارې درک کـړي نـه دي، نـه شـو منلای. ددې کـار لپـاره بایـد یـوه موضـوع ټوټـه ټوټـه کـړو، پـه وړو برخـو یـې وویشـو، پـه اجـزاوو یـې وویشـو او تـر ټولـو سـاده برخـه د خپـل حرکـت پیـل وګرځـوو. پـه بلـه خبـره، فکرونـه بایـد یـو یـو وخېـړل شي او و ارزول شي. همداسـې لکـه ګالیلـه چـې هـر څـه ارزول او انـدازه کـول. ده غوښـتل هـر څـه د انـدازه کولـو وړ شي. ددکـارت پـه بـاور فلسـفه بایـد لـه سـاده مسـایلو پیـل وکـړي او ورو ورو پیچلـو تـه ور وړانـدې شي؛ څکـه یـوازې لـه همـدې لارې کـولای شـو نـوی لیـدلوری پیـدا کـړو. پـه پـای کـې بایـد لـه سره کتنـې وربانـدې وشي، هـر څـه وشـمېرل شي

چې کوم څه خو به له قلم نه وي پاتې شوي. پوازې په دې توګه کولای شو، فلسفي پايلو ته ورسېږو.

- دا هر څه د رياضي ازموينې ته ورته دي

- هو. دکارت رياضي پوه و. ده ته د تحليلي هندسې پلار وايي. د الجبر له علم سره يې هم د پام وړ مرستې کړې دي. دکارت غوښتل رياضيکي ميتود په فلسفه کې هم پلی کړي. هغه هڅه وکړه، چې فلسفي حقايق د رياضي د معادلاتو په څېر ثابت کړي. په بله خبره هڅه يې کوله، هغه څه چې موږ د شمېرو پر وړاندې کاروو، يعنې د عقل کارونه. دلته هم بايد عقل وکاروو. ځکه پوازې عقل دی، چې موږ يقين او باور ته رسولای شي. په حواسو باندې باور نه شو کولای. له افلاطون سره د دکارت پر ژوره اړيکه مو مخکې خبرې کړې دي. افلاطون هم باوري و، چې پر رياضياتو او اعدادو د انسان تر حسي ـ باخبرۍ ډېر باور کول په کار دي.

- خو فلسفي مسايل له دې لارې حل کولای شو؟

- ښه به وي چې د دکارت خپل استدلال ته را وګرځم. دده هدف دا دی چې د ژوند د ماهيت په اړه يقين حاصل کړي. دی وايي په لومړي سر کې بايد پر هر څه شکمن وو. دکارت نه غوښتل چې د بنسټ ډېره پر نرم خای کېږدي. پام خو دې دی سوفي؟

- ځکه که بنسټ کېناست ټوله ودانۍ نړېدلې ده.

- ښه دې وويل لورکۍ! د دکارت په خبره دا هم عاقلانه خبره نه ده، چې پر هر څه شکمن شو. خو فکر يې کاوه، چې د پوله اصولو له مخې کولای شو پر هر څه شک وکړو. هيڅ شی معلوم نه دي. د بېلګې په توګه موږ د افلاطون يا ارسطو په لوستلو خپله فلسفي مطالعه ډېره وو. دا مسله کولای شي. د تاريخ په اړه زموږ معرفت لوړ کړي، معلومات مو ډېر کړي. خو د نړۍ په اړه خو

معرفت نه شي راکولای. د دکارت موخه دا وه، چې د خپلې فلسفي ودانۍ د جوړولو لپاره باید بنسټ کلک کړو، په بنسټ کې پر شته ټولو شیانو شک وکړو، له هغو باید تقلید و نه کړو او ارثي مسایل یوې خوا ته پرېږدو.

- غوښتل یې، د شته ودانۍ د بنسټ ټولې ډبرې او خښتې لرې کړي او نوې ودانۍ جوړه کړي...

- هو سوفي مننه! غوښتل یې نوې خبرې او مسایل وکاروي او باوري شي چې فکري جوړښت یې دوام لرونکی او کلک دی. خو د دکارت شک تر دې هم ژور شو. ده به ویل آن پر خپلو حواسو هم باور نه شو کولای. ده به ویل، ښایي حواس مو وغولوي.

- څنګه؟

- کله چې خوب وینو، داسې احساسوو، چې واقعیت همدا دی. په خوب او وینښه کې زموږ د اخیستنو توپیر څه دی؟ دکارت وایي: زه چې په دې اړه دقت وکړم، د خوب او وینښې ترمنځ د بېلتون هېڅ وجه نه شم پیدا کولای. هغه زیاتوي، څنګه باور کولای شو، چې زموږ ژوند تر یوه خوب ورهاخوا هېڅ هم نه دی. په دې مانا چې ټول ژوند یوه خوب ته ورته څه دی.

- یېه، فکر کاوه، چې د سلطان پر تخت پرېوتل یې په خوب لیدلای.

- خو کله چې د سلطان پر تخت و، فکر یې کاوه، چې بزګري او غریبي یې په خوب لیدلې ده. دکارت هم په همدې توګه په هر څه باندې په مطلقه توګه شک کوي. تر ده وړاندې فیلسوفان سم په همدې ځای کې د خط آخر ته رسېدلي وو.

- نو دومره لار یې نه ده وهلې.

- خو ګوره دکارت هڅه کوله، چې د همدې صفر له ټکي مخکې ولاړ شي. په هر څه باندې شکمن شو او دغه شک او باور یې په مخکې درلود. هغه څه یې چې فکر ته راغلل، شک و، ښکاره خبره ده، چې له شکونو پایلې ته رسېده. کله چې پر یو څه شکمنېږي نو هرو مرو په فکر کې ډوبېږي، نو دا چې فکر کوي، یو فکرمند موجود دی. یا هغه دده خبره کوګیتو ارګوسوم[1].
- څه مانا؟
- فکر کوم، نو موجود یم.
- دا خو دومره حیرانوونکې نه وه
- خیر! خو د هغه شهودي یقین د پام وړ دی. دا چې ناڅاپه ځان فکرکوونکی موجود بولي. د افلاطون دا خبره به دې په یاد وي، چې په عقل پیدا شوي څېزونه یې تر هغو شیانو واقعي ګڼل چې په حواسو پیدا کېږي. دکارت هم همدا باور درلود. ده به ویل نه یوازې دا چې فکر کوونکی ایګو دی، په ورته وخت کې یې د شاوخوا تر مادي نړۍ ځان ډېر فکر کوونکی ایګو باله. که تر دې هم یو ګام مخ ته ولاړ شو، د دکارت فلسفي څېړنې هېڅ وخت پای ته نه وې رسېدلې.
- بیا یې څه وکړل؟
- دکارت په دې وخت کې له ځانه پوښتنه وکړه، داسې نور څه هم شته، چې هغه په دې شهودي یقین درک کړو. دې پایلې ته ورسېد، چې د یوه کامل موجود، ښکاره او روښانه تصویر په ذهن کې لري. ده به ویل، کامل تصویر له داسې چا سرچینه نه شي اخیستای چې پخپله ناکامل دی. نو د کامل وجود تصور باید له یوه کامل وجود راوتی وي، چې دده په وینا هغه خدای دی. ددکارت لپاره د خدای، موجودیت له دې امله (هر چا چې فکر

---

[1] Cogito ergo sum

وکړو، نو موجود دی) په دې مانا چې هر فکر لرونکی شی موجود دی. نو ده به ویل چې خدای هم موجود دی.

- نو له همدې امله، د پایلو په ویلو کې ډېره بېړه نه کوي، په لومړي سر کې په احتیاط مخ ته روان دی.
- ته رښتیا وایې. ډېر خلک بیا دا مسئله دده کمزوري بولي. خو دې ته د پایلو اخیستنه نه وایي. دکارت په دې برخه کې د کوم څه د ثابتولو په لټه کې نه و. ویل به یې، چې د کامل وجود تصور له موږ ټولو سره شته دی او ددې ټول تصویر اړتیا دا ده، چې موږ ټول باید کامل وجود ولرو. ځکه که کامل موجود نه وای، کامل به نه وو. تر څنګ یې که کامل موجودیت نه وای، تصور به یې هم زموږ ذهن ته لار نه وه کړې. د کمال تصور له بې کماله ایګو نه شي راوتلای. ددکارت په خبره د خدای تصور زموږ په ذات کې شته دی. دا تصور له هغه وخته چې نړۍ ته راځو، لکه د یوې علامې په څېر، چې کمپنۍ یې پر خپلو تولیداتو لګوي، زموږ پر وجود هک شوی دی.
- هو، خو د سیمرغ تصور هم زما په ذهن کې پیدا کېږي. خو دا په دې مانا نه ده، چې سیمرغ دې هرو مرو موجود وي.
- دکارت که دلته وای ویل یې د سیمرغ د تصور لپاره دا اړینه نه ده، چې سیمرغ دې هم موجود وي. خو د کامل د مفهوم لپاره اړینه خبره دا ده، چې باید او هرو مرو داسې یو موجود شته وي. ددکارت په وینا دا چاره همدومره رښتینې ده، لکه د دایرې د محور او مرکز په اړه چې تصور کولای شو. داسې دایره نه شو پیدا کولی، چې ددې قاعدې تابع نه وي. په دې توګه داسې کامل وجود هم نه شو پیدا کولای، چې د خپله مهمه ځانګړنه (وجود) و نه لري.
- د فکر بنه یې حیرانوونکې ده.

- دا پـه قطعـي توګـه د عقـلي فکـر بنـه ده. دکـارت د سـقراط او افلاطـون پـه څېـر بـاوري دی، چـې د عقـل او کاینـاتو تـرمنځ يـو تـار شته دی. هـر نـاممکن شـی چـې د انسـان عقـل ور ورسـېږي، د هغـه موجوديت حقيقي کېدای شي.
- تـر دې ځايـه دکـارت دې واقعيـت تـه رسـېدلای دی، چـې پخپلـه فکر کوونکی موجود دی او کامل وجود هرو مرو شته دی.
- هو، له همدې ټکي حرکت کـوي او وړانـدې ځـي. لـه بهرنـی نړۍ، لکـه لـه سـپوږمی او لمـر، چـې مـوږ کـوم تصـورونه لـرو، ددې امکـان شـته چـې يـوازې وهمونـه وي. خـو ددې ترڅنـګ بهـر عـالم، داسـې ځـانګړې ځـانګړنې لـري، چـې د عقـل پـه وسـيله يـې درک کـولای شـو. دا د ريـاضي ځـانګړنې دي، يـا پـه بلـه وينـا داسـې څېزونـه دي چـې انـدازه کېـږي. لکـه پلنـوالي او اوږدوالـی لـري. دا د انـدازې وړ ځـانګړنې زمـا عقـل تـه هـومره روښـانه او واضـح دي، لکـه زمـا فکرمنـدوالی چـې دی. د يـادو کمـې ځـانګړنو تـر څنـګ کيفـي ځانګړنې لکه، بـوی، مـزه، رنـګ، لـه بلـې خـوا زمـوږ پـه حسي- ادارک پورې اړه لري. هغه نو بيا بهر عالم نه شي راته بيانولای.
- نو طبيعت خوب او خيال دی که څنګه؟
- نه! خـو د کـارت پـه دې برخـه، کـې د کـاملې نـړۍ پـه هلکـه زمـوږ لـه تصـور ګټـه اخـلي. کلـه چـې عقـل يـو شـی، روښـانه او مشـخص وپېژندلای شـو، دا بـه نـو هـرو مـرو سـم وي. څکـه چـې کامـل خـدای را مختـه کـوي. هغـه وايـي، څـه چـې مـوږ پـه عقـل درک کـوو، د حقيقت حکم لري.
- ډېر ښـه! تـر دې ځايـه پـه دې پـوه شـوی، چـې فکـر کـوونکی موجـود دی، خدای شته دی او بهرنی هستي د عالم بنه ده.

- هو، خو بهرنۍ هستي او داخلي هستي (فکر) په بنسټيزه توګه توپير لري. دکارت اوس ادعا کوي، چې دوه ډوله هستي (جوهر) شته ده. يو د (فکر) جوهر يا نفس، بل د بعد يا کميت جوهر چې ماده ده. نفس يو محض پوهاوی يا خبر دی. په فضا کې کوم ځای نه نيسي، نو ځکه هغه په وړو وړو برخو نه شو ويشلای. خو ماده بعد يا کميت لري. په فضا کې ځای نيسي- هغه په ټوټو او برخو ويشلای شو، خو پوهه يا باخبري نه لري. دکارت باوري و، چې دواړه جوهرونه د خدای له لوري سره يو ځای شوي دي، يوازې خدای دی چې تر بل هر څه مستقل موجود دی. سره له دې، چې ماده او فکر دواړه د خدای ورکړه ده، خو له يو بل سره اړيکه نه لري. فکر له مادې لرې يو مستقل شی دی. د مادي کړنې بيا له فکره مستقلې دي.
- نو د خدای پيدايښت يې وېشلای دی.
- موږ معمولا دکارت دواليست[1] بولو. ياني هغه څوک چې د مادې شته والي او فکر د شته والي تر منځ پر درځ باور لري. د بېلګې په توګه يوازې انسان دی چې نفس لري. حيوانات ټول په مادي نړۍ پورې اړه لري. ددوی ژوند او حرکت په ميکانيکي توګه تر سره کېږي. دکارت حيوان يو ډول خپل سری پېچلی ماشين بولي. د مادي هستۍ په اړه په پوره توګه ميکانيکي ليدلوری لري. (د ماده پالانو په څېر).
- زه په دې شک لرم، چې هرمس دې خپل سری ميکانيکي ماشين وي. دکارت لکه چې له حيواناتو سره مينه نه لري. موږ څنګه؟ موږ هم ماشينونه يو؟
- هم يو هم نه يو. دکارت دې پايلې ته ورسيد، چې دوه ګونی مخلوق دی. هم فکر کولای شي او هم په فضا کې ځای نيسي-

[1] Dualist

په دې توګه نو هم نفس لري او هم مادي جسم. تر ده وړاندې قدیس اوګوستینوس او توماس آکویناس دې ته ورته څه ویلي و. یاني انسان د حیواناتو په څېر وجود او د پرښتو په څېر روح لري. د دکارت په باور د انسان بدن یوه کامل ماشین ته ورته دی. خو انسان نفس هم لري، چې نفس کولای شي په پوره استقلال خپلې چارې سمبال کړي. دا کړنې له جسم مستقلې دي. جسماني کړنې بیا دغه ډول خپلواکي نه لري. له خپلو قوانینو پیروي کوي. د هغه څه په اړه چې موږ په خپل جسم کې نه، بلکې به عقل کې فکر کوو، زموږ په نفس کې رامنځته کېږي. دا نو له مادي شتو په پوره توګه مستقل څه دي. دا خبره مې هېره نه شي، دکارت له دې خبرې منکر نه و، چې ګواکې حیوانات به هېڅ فکر نه شي کولای. ده به ویل بنایي حیوانات هم فکر وکړي. خو که د تفکر قوه ولري، نو همدا دوه اړخ والی لري، مادي او نفسي-اړخونه لري. دا خبره بیا د حیواناتو په برخه کې هم سمه ده.

- مخکې مو په دې اړه خبرې کړې دي. زه که غواړم، چې په بس موټر پسې منډه کړم، نو ټول ماشین په حرکت شي. که په بس پسې و نه رسېږم اوښکې مې روانېږي.
- ان دکارت له دې خبرې انکار نه کوي، چې نفس او جسم تر منځ په پر له پسې توګه د عمل او عکس العمل رابطه شته ده. دی وايي، روح په جسم کې شته ده، د سر د ځانګړي غړي په وسیله چې دی یې صنوبري غده بولي له مغز سره تړل شوې ده. همدلته ده، چې د نفس او جسم پر له پسې عمل او عکس العمل تر سره کېږي. له همدې امله نفس د هغو غوښتنو، شهواتو او احساساتو تر اغیز لاندې دی چې له جسمي غوښتنو سر چینه اخلي. خو نفس کولای شي له دغه ډول ټیټو حوسونو ځان وساتي او به

خپلواکه توګه عمل وکړي. موخه يې دا ده، چې د مسايلو اداره د عقل له لارې تر سره کېږي. څکه زما په خبېته که درد وي، بيا هم د يوې مثلث د داخلي زاويو مجموعه ۱۸۰ درجې ده. نو انسان داسې وړتياوې لري، چې له مخې پر جنسي-اړتياوو برلاسي کېداى شي او پر عقل ولاړ چلند به کوي. نفس په دې مفهوم کې تر جسم غوره دی. که زموږ پښې زړې شي او کمزورې شي، ملا مو کړوپه شي، غاښ مو توېې شي، خو همدا چې عقل مو کار وکړي، د دوو ضرب د دوو حاصل څلور دی. څکه عقل نه زړېږي او ملا يې نه کړوپېږي. دا جسم دی چې زوړ شي او له کاره لوېږي. د دکارت په نظر نفس په اصل کې فکر دی. ټيټ احساسات او شهوات لکه، کينه او هوس جسماني اعمال دي، په دې توګه نو دغه عملونه د مادي نړۍ برخه دي.

- زه اوس هم په دې فکر کې يم، چې دکارت ولې د انسان جسم په خپل سر کارکوونکی ماشين ته ورته بللی دی؟
- هغه وخت يې څکه دا مثال ورکړ، چې ماشين يوازې په خپل سر تاوېدونکی ساعت و. د ټولو ذهن همدې شي ته ورتلو. دوی د ساعت د کار بڼې ته حيران وو، څکه پخپله يې کار کاوه او ګرځېده. نو پخپله دکار کولو کلمه يې څکه ورته استعمال کړه چې پخپله به يې حرکت کاوه. پخپله د حرکت او کار مسئله هغه وخت دوی ته له يوه وهم پرته بل څه نه وه. دوی د ساعت د کار دغه بڼې ته حک حيران و. دکارت به بيا ويل، چې د انسان د سلګونو مفصلونو اتصال، رګونه، زړه، شريانونه او په بدن کې سلګونه نورو مسايلو ته د بشره دا او دې ته ورته نورې اختراعګانې هيڅ دي. هغه ساعت د انسان او حيوان د وجود په پرتله هيڅ دی، يوازې خو توتې سره سر پر سر شوې دي او

ساعت يې جوړ کړی دی. نو ولې خدای نه شي کولای، چې د میکانیکي قواعدو پر بنسټ د انسان بدن جوړ کړي؟

- به دې ورځو کې (د مصنوعي هوښ) په اړه ډېرې خبرې کېږي.
- هو دا هم په خپله کارکوونکې وسیله ده. داسې ماشینونه مو جوړ کړي، چې موږ یې پخپله غولولي یو، بیا مو ویلي، چې دا مصنوعي هوښ لري. دکارت که دا ماشینونه لیدلی وای حیران به و. شک به یې کړی و، چې د انسان ذهن دومره خپلواک دی، څومره یې چې ده په اړه فکر کړی و. داسې فیلسوفان شته دي، چې د انسان معنوي ژوند تر جسماني اعمالو خپلواک او پراخ ګڼي. په دې کې شک نشته چې د انسان روح تر هر ډول کمپیوټري پروګرام پېچلې ده. خو شته دي داسې کسان چې ځان تر ماشینونو ډېر خپلواک نه ګڼي. راځه سوفي غواړم یو څه در وښیم.

آلبرتو د لیکلو مېز ته ولاړ. د اوږدې کوټې په بل سر کې ایښی و. کوچنی کمپیوټر وریاندې ایښی و. سوفي هم ورسره ولاړه کمپیوټر ته ودرېدل.
آلبرتو کمپیوټر روښانه کړ. د (C) توری کمپیوټر پر صفحه راغی. و یې لیکل (لیلا) نجلی ته یې روښانه کړه، چې دا د مکالمې یا خبرو اترو پرمختللی سیستم دی. څو شیبې وروسته لیکل شوی متن د صفحې په پاسنۍ برخه کې را څرګند شو.
(سلام زما نوم لیلا دی، تاسې راحت ناست یاست؟)
سوفي د (هـو) دوې بټنې کېکاږلې.
و یې لیکل (هـو) سره له دې چې تر اوسه ولاړه وه، آلبرتو څوکۍ ورته راوړه.
پر پانه راغلل (نوم دې څه شی دی؟)

سوفي ولیکل (سوفي آموندسن). کمپیوټر بېرته ځواب ورکړ.(۳) نمبر د کلوور کوڅه. دا چې درسره و مې پېژندل خوشاله شوم. سوفي، ښایي د پنځلس کلنې کلیزې ته شېبې شمارې؟

سوفي تکان وخوړ. آلبرتو یې لاس پر اوږه کېښود. و یې ویل:

- یوازې نوم، پته او د زېږېدو نېټه مې دې ورکړې ده. لکه نوې چې له چا سره پېژنې. دا به ښه خبره وي، چې په اړه یې مخکې له مخکې پر ځینو خبرو پوه شې.

سوفي ولیکل. ښه ده!

- اې وبښه! سوفي خدای دې وکړي چې خپه شوې نه وې. د خبرو پر وخت دې پام وي چې جملې پوره پوره ولیکې.
- مننه، زه ښه یم. زه له تا ځینې پوښتنې کولای شم؟
- خوشاله یم چې ښه یې. مهرباني وکړه د څه په اړه پوښتنه کوې؟
- تاسې څومره عمر لرئ؟
- زه د ۱۹۸۸ز کال د اګست په اتمه، په آتلانتا کې جوړ شوی یم. د ۱۹۸۸ کا د مارچ په ۲۸ مه د ناروې په پولتکنیک کې، ناروې ته را ګرځول شوی یم.
- واه!
- ما وویل چې پوره جمله به وایې!
- یوازې واه مې وویل!
- زه په عامیانه خبرو نه پوهېږم. زما ویې پانګه، تر سلو زرو ډېر ویونه نه لري. نو تر ټولو نږدې شی چې زه یې د واه کلمې ته پیدا کولای شم، د وحي کلمه ده.
- وحي د عیسی په دین او داستان پورې اړه لري.
- ته مسیحي یې سوفي؟
- نه پوهېږم!
- نه پوهېدل د نوو زده کولو لپاره یو ګام دی.

- سقراط او په ډېر قوي احتمال ښايي دكارت هم همداسې ويل.
- سقراط د لرغوني يونان فيلسوف و. هغه د ۳۹۹او ۴۷۰ م ز كلونو تر منځ ژوند كاوه. كه د هغه په اړه لا ډېر معلومات غواړې د (۴۷) بېتن كېكاږه. دكارت فرانسوى فيلسوف و. د ۱۵۹۶او ۱۶۵۰ ز كلونو ترمنځ يې ژوند كړى دى. كه لا ډېر معلومات غواړې (۴۸) بټن كېكاږه.
- مننه، همدومره معلومات بس دي، بله پوښتنه كولاى شم؟
- دا چې خواب مې كافي و خوشاله شوم. بله پوښتنه؛ مهرباني وكړه!

آلبرتو ناڅاپه په خندا شو. سوفي وليكل:

- هيلده مولركناګ څوك ده؟
- هيلده مولركناګ په ليله سن كې اوسي. سوفي آموندسن! هغه هم ستا په اندازه عمر لري.
- په دې شيانو څنګه پوهېږې؟
- نه پوهېږم چې څنګه په دې شيانو پوه شوى يم. دا معلومات زما په حافظه كې شته دي.

سوفي د لاس فشار پر خپله اوږده حس كړ. آلبرتو وويل:

- د هيلده په اړه مې چې لږ معلومات لرل هغه مې په دې كمپيوټر كې ثبت كړل.

سوفي بيا وليكل:

- د هيلده په اړه نور څه معلومات لرې؟
- د هيلده پلار په لبنان كې د ملګرو ملتونو ناظر دى. قومندان دى. په پر له پسې توګه يې لور ته پستي كارتونه لېږي.
- غواړم هغه راته پيدا كړې!

- دا کار نه شم کولای. دا معلومات زما په هېڅ فولډر کې نشته. زه د کمپيوټرونو له بل مرکز سره هم نه يم تړلی شوی چې معلومات ترې را واخلم.
- و مې ويل چې پيدا يې کړه!!!!!
- آی! کرجنه خو به نه وې سوفي؟ د ندا دومره ښې ښيي چې احساساتي او کرجنه شوې.
- غواړم د هيلده له پلار سره خبرې وکړم!

آلبرتو بيا د سوفي پر اوږده لاس کېښود.

- ښه وايي. ليلا يوازې يو کمپيوټر دی. دا خو جام جم نه دی.

سوفي وليکل:

- چوپ شه!
- هر څه چې ته وايې. سوفي زمونږ پېژندنې يوازې ۱۳ دقيقې او ۵۲ ثانيې وخت ونيو. زه به زمونږ دواړو خبرې کلمه په کلمه په ياد ساتم. اوس به يې پای ته ورسوو.

د (C) توری بيا پر صفحه راغی. آلبرتو وويل:

- اوس مو بېرته خپلو ځايونو ته تللی شو

خو سوفي نورې بټنې کېکاږلې، و يې ليکل (کناګ)
له ځنډ پرته پاڼه وليکل شول.

- زه دلته يم!

دا ځل آلبرتو ټکان وخوړ. سوفي وليکل:

- ته څوک يې؟
- قومندان آلبرتو کناګ ستاسې په چوپړ کې يم. سيده له لبنانه راغلی يم. کوم فرمايش که لرې مهرباني!

آلبرتو سوفي ته اشاره وکړه، چې يوې خوا ته شي، پخپله پر څوکۍ کېناست.

- ته څنګه زما شخصي کمپيوټر ته د ننه شوی يې؟

- په کار کې مې کار مه لره همکاره! هر ځای ته مې چې زړه شي ورځم!
- ای د کمپیوټر لعینه ویروسه!
- ورو ورو صبر وکړه! اوس یوازې د زړېدنې ویروس یم. نو اجازه خو به وي، چې د مبارکۍ یو ځانګړی پیغام ولېږم؟
- نه، ډېره مننه، همدا چې لېږلي دې دي بېخي بس دي.
- ډېر زر یې وایم! دا ټول کارونه ستا په افتخار کوم. ګرانې هیلده، یو ځل بیا دې د پنځلس کلنۍ مبارکي درته وایم. ما وبښه چې پیغامونه په دې بڼه درته استوم. خو غواړم هر ځای ته چې ځې زما د مبارکۍ پیغام دې په مخ کې راشین شي. پلار دې درنه ځار شه! ډېر لېوال یم، چې ډېره ژر دې په غېږ کې ونیسم.

مخکې تر دې چې آلبرټو کوم څه ولیکي، د (C) توری بیا پر صفحه راغی. آلبرټو ولیکل:

- د کناګ فولډر (*.*) لاندې معلومات پر صفحه را پیدا شول.

| | | |
|---|---|---|
| کناګ لبنان | ۱۴۷/۶۴۳ | ۴۷:۱۲ ۹۰-۶-۱۵ |
| کناګ لیله سن ۳۲۶/۴۳۹ | ۹۰-۶-۲۳ | ۳۴:۰۸ |

آلبرټو لیکل:

د کناګ فولډر پاک کړه (*.*) او کمپیوټر یې ګل کړ.

- بڼه نو پاک مې کړ. خو خدای خبر چې بل ځل به چېرته سر را وباسي.

همداسې هلته ناست و، کمپیوټر ته یې کتل. بیا یې وویل:

- تر ټولو بد دا لعنتي نوم و، آلبرټو کناګ....

سوفي د لومړي ځل لپاره د دوو نومونو ورته والي ته متوجه شوه. آلبرټو کناګ او آلبرټو کناکس. خو آلبرټو داسې غوسه و، چې سوفي د پوښتنې کولو جرأت و نه کړ. بېرته ولاړ او د میز دواړو خواوو ته کېناستل.

# سپینوزا

اوږده شېبه غلي کېناستل، وروسته سوفي خبرې وکړې، غوښتل یې د آلبرتو فکر له هغه څه، چې پېښ شول، را وګرځوي.

- دکارت عجیبه انسان و. هېڅکله مشهور نه شو؟

آلبرتو مخکې تر دې چې ځواب ورکړي، څو اوږدې ساوې یې وایستې:

دکارت ډېر ارزښت درلود، په ځانګړې توګه یوه بل لوی فیلسوف ته چې باروخ سپینوزا نومېده. هغه د ۱٦۳۲ تر ۱٦۷۷ کلونو ترمنځ ژوند کاوه.

- په هکله به یې څه راته ووایې؟

- ما هم همدا غوښتل او نور نه پرېږدم چې د نظام برېدونه زموږ د کار مخه ونیسي.

- زه غوږ یم.

- سپینوزا د امستردام له یهودي ټولنې و، خو د خپل متفاوت فکر او کړلارې له وجې تکفیر شو. په دې نږدې زمانو کې به لږ داسې فیلسوفان موجود وي، چې د سپینوزا په څېر د فکر او نظریو له وجې یې توهین او رټل شوي. لامل یې دا و، چې ده پر رسمي مذهب انتقاد وکړ. ده به ویل مسیحیت او یهودیت په خپلو وچو احکامو او صوري مناسکو ځانونه ژوندي ساتلي. سپینوزا لومړنی کس و، چې د مقدس کتاب په هکله یې تاریخي انتقادي تفسیر وکاراوه.

- هیله کوم، یو څه توضیح.

- سپینوزا له دې منکر و، چې سپېڅلی کتاب کلمه په کلمه د خدای وحې دی. ده به ویل، د تورات او انجیل د لوست پر مهال باید پام وکړو، چې دا څه وخت لیکل شوي دي. ده وړاندیز کاوه، چې دا متونه د نقد په سترګه ولوستل شي، په دې توګه به له تناقضاتو پرده پورته شي. د عیسی(ع) د ښوونو په ټولو برخو کې راغلي، چې دی د خدای ویاند و. د عیسی(ع) ښوونې یو ډول له سختۍ او یهودي تعصبه ازادي ده. عیسی به د عقل کیش ته وعظ کاوه او تر هر څه به یې مینه او محبت غوره بلل. د سپینوزا

په تفسیر، د عیسی(ع) موخه له خدای سره مینه او له انسانیت سره مینه وه. خو پر دې سربېره مسیحیت په خپلو وچو احکامو او صوري مناسکو بیا هم پر خان اخته دی.

- د سپینوزا نظریې به هرومرو، نه کشیشانو ته د زغم وړ وې او نه کلیسا ته.

- کله چې وضع په رښتیا خرابه شوه، ان خپلې کورنۍ یې هم بوازې پرېښود. دوی غوښتل دی د بدعتي خبرو لپاره یې له میراثه بې برخې کړي او عجیبه ده، د بیان ازادۍ او دین په اړه به لږ داسې خلک وي چې د سپینوزا په څېر یې په دومره ټینګار او زړ ورتیا خبرې کړې وي. په هر حال، له هغه سره هر اړخیز مخالفت سبب شو، چې سپینوزا یوازېتوب غوره کړي، ګوښه ګیر شي او خپل ټول وخت فلسفي ته ورکړي. ده به د لږ معاش د پیدا کولو لپاره عدسیې تراشلې، چې څو دانې یې تر ما پورې هم را رسېدلې دي.

- څومره هېښوونکې!

- د عدسیو له تراشلو د پیسو پیدا کول یو نمایشي - کار و. فیلسوف هغه څوک دی چې له خلکو سره مرسته وکړي او دوی ژوند ته په نوي نظر کتلو ته هڅوي. په حقیقت کې د سپینوزا له اصلي موخو یوه دا وه، چې هر څه ته د ابدیت په سترګه وکتل شي.

- د ابدیت په سترګه؟

- هو، سوفي. فکر کوې چې کولای شې خپل ژوند په کایناتو کې تصور کړې؟ یعنې خان او ژوند دې په اوسني شېبه او اوسنیو شرایطو کې ووینې...

- امم... آسانه کار نه دی.

- په یاد ولره، چې ته د ټول طبعي حیات یوه ناڅیزه برخه یې او د ټولې لویې هستۍ یوه برخه یې.

- فکر کوم په مقصد مو پوهېږم.

- آيـا کـولای شـې طبیعـت تـه پـه يـوه نظـر کتـو سره تـول کاینـات يـو ځای ومومې؟
- گومان نه کوم، ښايي عدسيې ته اړتيا ولرم.
- مقصـد مـې يـوازې د مکـان ابـديت نـه دی، د زمـان ابـديت هـم دی. دېرش زره کالـه پخـوا يـو ماشـوم د رايـن پـه دره کـې اوسـېده. هغـه د طبیعـت د لـوی سیند د کـوچنۍ ځپـې يـوه وړه ذره و. سـوفي، تـه هـم د طبیعـت يـوه ناڅیزه برخه يې. ستا او د هغه هلک تر منځ توپير نشته.
- يوازې دومره توپير دی، چې زه اوس ژوندۍ يم.
- هـو، مـا غوښـتل همـدا شـی تصـور کـړې. تـه بـه دېـرش زره کالـه وروسته ژوندۍ وې؟
- د سپينوزا بدعت همدا و؟
- ډېـر نـه! ده نـه يـوازې دا ويـل، چـې هـر څـه طبیعـت دی، بلکـې خـدای او طبیعـت يـې يـو گانـه. ده ويـل هـر څـه خـدای دی او هـر څـه پـه خـدای کـې دي.
- نو پر وحدت الوجود معتقد و.
- همداسـې ده. د سـپينوزا لـه نظره خـدای دا نـړۍ د دې لپـاره نـه ده پیـدا کـړې، چې پـه خپلـه تـرې بهـر واوسي. بلکـې خـدای پـه خپلـه دا دنيـا دی. کلـه بيـا دا بـل شـان بيـانوي، وايـي، دنيـا پـه خـدای کـې ده. دا هغـه څـه دي د قـديس پـولس د آريوپـاگوس پـر غونـډۍ آتنيـانو تـه وويـل: مـوږ پـه هغـه کـې ژونـد کـوو او پـه هغـه کـې حرکـت او ژونـدون لـرو. خـو اجـازه راکـړه چـې د سـپينوزا خپـل اسـتدلال وڅېـړو. د هغـه تـر ټولـو مهـم اثـر (د اخلاقـو هنـدسي برهـان) دی.
- د اخلاق- هندسي برهان؟
- ښـايي عجيـب ښـکاره شي، پـه فلسـفه کـې لـه اخلاقـو نـه موخـه د ښـه ژونـد کولـو لپـاره د اخلاقـي کړنـو څېـړل دي. لکـه د سـقراط او ارسـطو د اخلاقـو پـه

اړه چې خبرې کوو. موخه مې دقيقاً همدا ده. خو زموږ په وخت کې د اخلاقو قواعد دا دي چې د نورو پښې تر پښو لاندې نه کړو.

- د دې لپاره چې يوازې د ځان په اړه فکر کول خودخواهي ګڼل کېږي؟

- هو، پر دې سربېره سپينوزا اخلاق د ژوند د هنر په مفهوم او د اخلاقي کړنو په مفهوم وکاراوه.

- له دې سره... د ژوند هنر په هندسي برهان؟

- هندسي تګلاره هغه اصطلاح ده چې سپينوزا د خپلې دلبندې لپاره وکاروله. په ياد دې دي، چې دکارت غوښتل رياضيکي تګلاره د خپلو فلسفي مفکورو لپاره وکاروي. البته له فلسفي مفکورو يې موخه يوازې د منطقي پايلو بنسټ و. سپينوزا هم پرې تعقلي سنت پورې تعلق درلود. ده غوښتل د اخلاقياتو په ذريعه دا وښيي چې ژوند د طبيعت د کلي قوانينو پرو دی، نو بايد له احساساتو او شخصي- شهوتونو ځان وژغورو. دی معتقد و چې يوازې په همدې صورت کولای شو نېکمرغي او خوښي ته لار ومومو.

- خو موږ يوازې د طبيعت د قوانينو تابع نه يو. کنه؟

- د سپينوزا پر فلسفي پوهېدل اسانه کار نه دی. اجازه راکړه چې ورو ورو وړاندې لاړ شو. په ياد دې دي، دکارت عقيده لرله چې هستي له دوو جلا جوهرونو، يعنې فکر او مادې جوړه شوې ده؟

- څنګه به مې له ياده وځي؟

- د جوهر کلمه د شيانو جوړونکې په مانا کارول شوې، يا کولای شو داسې څه يې وبولو چې له هغه څه جوړ يا ترې کم شي. دکارت په دې دوو جوهرونو لاس په کار شو. د هغه له نظره ټول شيان يا فکر و، يا ماده. سپينوزا دا وېشنه رد کړه، د هغه له نظره يوازې يو جوهر و، څه چې موجود دي د يوازېنۍ هستۍ برخه ده. ده به په آسانۍ سره دې جوهر ته کله خدای او کله طبيعت ويل. سپينوزا د دکارت په څېر د هستۍ په هکله دوه

ګوني لید نه درلود. زموږ په اصطلاح یو منونکی و، یعنې د ټولو شیانو طبیعت او ماهیت یې یوه واحد جوهر ته خانګړی کاوه.

- دوی دواړو لږ اختلاف سره نه درلود؟

- د دکارت او سپینوزا اختلاف لکه څومره چې خلک یې انګېري، هم نه دی. دکارت باوري و، چې خدای پر خپل ذات قایم دی؛ خو کله چې سپینوزا خدای او طبیعت یا خدای او هستي یو شمېري، نو دا ده چې له دکارت، یهودي او مسیحي ښوونو څخه ډېر لرې کېږي.

- نو خدای طبیعت دی، همدا او بس.

- خو د سپینوزا موخه د طبیعت له کلمې یوازې مادي طبیعت نه دی. د ده لپاره د جوهر، خدای یا طبیعت مفهوم ټول هغه څه دي چې شته. همدارنګه له دې ډلې ټول معنوي شیان.

- یعني هم ماده او هم فکر.

- افرین! د سپینوزا په نظر، انسان د خدای دوې خانګړنې یا تجلي پېژني. سپینوزا هغو ته د خدای صفات وايي. دا هماغه صفات دي چې دکارت فکر او بُعد بلل. خدای یا طبیعت او خان د فکر یا بُعد په بڼه را ښکاروي. خدای ډېر نور صفتونه هم لري خو فکر او بُعد یې هغه صفات دي چې بشر یې پېژني.

- منم، خو ولې مطلب دومره پېچلی کوي؟

- د سپینوزا د ژبې د پوهېدا لپاره څټک او قلم ته اړتیا ده، خو په پای کې به خپله موخه خامخا لاسته راوړې او داسې ځلانده فکر ته به رسېږې لکه الماس.

- نور نو د انتظار توان نه لرم.

- ومو ویل چې په طبیعت کې هر څه یا فکر دی یا بُعد. هغه بېلابېلې پدیدې چې په ورځني ژوند کې پېښېږي داسې دي لکه د ګل ښاخ او یا د ورد زوورث د شعر په څېر، چې د فکر او بُعد د بېلابېلو حالاتو وجه ده. له وجې موخه هغه خاص شکل دی چې جوهر، خدای یا طبیعت یې خان

نه اختیاروي. د ګل ښاخ د بُعد د وجهې يو حالت دی او د ګل په وصف کې شعر د هغه فکر حالت وجه ده. خو دا دواړه اساساً د جوهر، خدای يا طبيعت بيانوونکي دي.
- زه مو ګنګسه کړم.
- خو دومره هم پېچلې نه ده. د سپينوزا په وچې او سختې ډلبندۍ کې حيرانوونکی درک موجود دی. داسې ساده درک چې په ورځنۍ ژبه نه بيانېږي.
- ستاسو په اجازه، خو زه ورځنۍ ژبې ته ترجيح ورکوم.
- کومه خبره نه ده. نو ښه ده چې پيل يې په خپله له تا وکړم. کله دې چې زړه درد کوي، څوک ډېر درديږي؟
- څنګه مو چې وويل، زه.
- ډېر ښه. وروسته دې، چې کله د زړه درد دريادېږي، څوک يې په هلکه فکر کوي؟
- يا هم زه.
- نو ته هغه څوک يې چې څينې وخت د زړه درد لرې او څينې وخت هم په فکر کې يې. سپينوزا به ويل ټول مادي شيان او هغه څه چې پر موږ راځي د خدای يا طبيعت له لوري دي. له دې امله هر فکر چې زموږ ذهن ته راځي د خدای يا طبيعت له خوا دی. څکه ټوله هستي يو شی ده. يو خدای، يو طبيعت، يو جوهر شته او بس.
- خو کله چې زه د کوم شي په هکله انديښنه لرم، دا زه يم چې فکر کوم. کله چې له ځايه پاڅېږم، دا زه يم چې حرکت کوم. د خدای خبره ولې رامنځته کوې؟
- خوښېږي مې چې په موضوع کې ډوبه شې. خو ته څوک يې؟ ته سوفي آموندسن يې، چې ډېر ستر شيان مجسمولی شې. هو! البته که ته وغواړې کولای شې ووايې، دا ته يې چې فکر کوې، دا ته يې چې حرکت کوې؛ خو داسې هم ويلای شې، دا طبيعت دی چې ستا د مفکورو په هکله فکر

کوي او یا طبیعت دی چې ستا له پر مېږ حرکت کوي. کیه؟ په حقیقت کې مطلب دا دی چې ته له کومو عینکو نړۍ ته ګورې.
- یعنې تاسو وایئ چې زه د خپلې پرېکړې اختیار نه لرم؟
- هو او نه. ممکن ته په خپل اختیار وې. لکه د لاس ګوته دې چې هرې خواته زړه وغواړي خوځولی شي، خو ستا ګوته یوازې د خپل طبیعت له مخې حرکت کوي. ته نه شې کولای، ګوته دې له لاسه را وباسې او د کوټې په خلورو خواوو کې یې ونځوې. زما ګرانې، ته د هستۍ په جوړښت کې همدا ډول ځای لرې. ته سوفي یې، خو د خدای د پیکر ګوته هم یې.
- نو هغه څه چې زه یې کوم د خدای په اراده دي؟
- او یا د طبیعت په اراده، د طبیعت د قوانینو په اراده. سپینوزا باور درلود چې خدای، یا د طبیعت قوانین د هر هغه څه چې پېښېږي داخلي علت دی. خدای بهرنی علت نه دی، ځکه یوازې د طبیعت د قوانینو له لارې خبرې کوي.
- زه د دې دواړو په توپیر نه پوهېږم.
- خدای د نانځکو نځوونکی نه دی چې پر نانځکې پورې تړلي تول تارونه یې په لاس کې وي او هره پېښه مهار کړي، خو خدای دا نانځکې د پردې له شا اداره کوي. له دې کبله بهرنی علت د نانځکو حرکت دی. خو د خدای دنیاداري داسې نه ده. خدای د طبعي قوانینو له مخې پر دنیا حکم چلوي. نو خدای یا طبیعت د ټولو پېښو داخلي علت دی. د دې خبرو معنا دا ده چې په مادي نړۍ کې هر څه د یوې اړتیا له مخې پېښېږي. له مادي یا طبعي نړۍ د سپینوزا لید جبري و.
- ګومان کوم مخکې موهم دې ته ورته څه وویل.
- شاید د رواقیانو په هکله د خبرو پر مهال به مې ویلي وي. دوی هم دا ادعا کوله چې په نړۍ کې هر څه د اړتیا له مخې پېښېږي. له دې کبله هره

ښيښه بايد د زړه له کومې ومنو او د احساساتو تر اغېز لاندې رانه شو. د سپينوزا د اخلاقياتو لنډيز همدا دی.

- پر مقصد مو پوه شوم. خو اوس هم دا فکر نه خوښوم چې زه د خپل عمل اختيار نه لرم.

- ډېر ښه. بېرته شاته ځو. هغه ماشوم هلک ته ورځو چې ډېرش زره کاله پخوا د ډبرتوږنې په عصر کې اوسېده. هلک چې کله لوی شو، وحشي ځناور يې په نيزه وهل. پر هغې ښځې يې زړه وبايله چې وروسته يې د ماشومانو مور شوه او پرته له شکه چې د خپلې قبيلې د خدايانو عبادت يې کاوه. گومان کوې چې دی ددې کارونو په کولو کې د خپل واک و؟

- نه پوهېږم.

- يا د افريقا د ځنگله زمری په پام کې ونيسه. فکر کوې هغه پخپله غواړي چې داړونکی وي او د دې لپاره پر گوډه هوسۍ حمله کوي؟ او يا پر ځای يې پرېکړه کولای شي چې واښه وخوري؟

- نه. زمری له خپل طبيعته پيروي کوي.

- يعنې د طبيعت له قانون څخه. ته هم همدا ډول يې سوفي. ته هم د طبيعت يو جز يې او د دکارت په مرسته کولای شې خپل غبرگون پورته کړې، چې زمری ځناور دی او له ازاد انسان سره چې د آزادې عقلاني قوې لرونکی دی، توپير لري. خو د يوه نوي زېږېدلي ماشوم په هکله فکر وکړه، چې ژاړي او چغې وهي او که شيدې ورنه کړې، خپله گوته روي. دا ماشوم د آزادې ارادې او واک لرونکی دی؟

- گومان نه کوم.

- نو ماشوم څه وخت آزاده اراده پيدا کوي؟ کله چې دوه کلن شي يوې او بلې خواته ځغلي او هر څه چې وينې د گوتې په اشاره يې نورو ته ښيي. په درې کلنۍ کې مور ځوروي او په څلور کلنۍ کې ناڅاپه له تيارې وېرېږي. د دې ماشوم څه شي آزاد دي سوفي؟

- زه نه پوهېږم.

- پـنخلس کلنـه چـې شي، نجلـی د هېنـداري مـخ تـه کښېني او د سينګار تمـرين کـوي. آيـا دا هماغـه شـېبه ده چې دی يـې پرېکـړه کـوي، چې پخپله خوښه عمل وکړي.

- ورو ورو دې پر مقصد پوهېږم.

- البتـه. دا نجلـی سـوفي آموندسـن ده، خـو هغـه د طبيعـت د قوانينـو پـر بنسټ اوسـېږي. دا پخپلـه هـم پـه دې نـه پـوهېږي، ځکـه هـر کـار چـې کـوي، خـو پېچلي دليلونه ورته موجود دي.

- تر دې زيات نور نه غواړم واورم.

- يـوازې يـوې بلـې پوښـتنې تـه مـې ځـواب راکـړه، نـور يـې بـس کـوم. دوه همزولي نيالګي په يـوه بـاغ کـې کـرل کېږي. يـو يـې ښـه خـاوره، لمرينـه هـوا او پرېمانه اوبـه لـري خـو بـل يـې پـه خرابـه خـاوره، تنګـه او تيـاره ګوښـه کـې دی. کوم يو ښه وده کوي او ډېر حاصل ورکوي؟

- ښکاره خبره ده: هغه چې مناسب شرايط لري.

- سـپينوزا لـومړی نيـالګی آزاد بـولي. دا نيـالګی بشـپړه آزادي لـري چـې خپلـه ذاتي وړتيـا وښـيي. او کـه فرضـاً دا د مڼـې نيـالګی وي، د آلـو ورکولـو تـوان نـه لـري. دا بېلګـه پـر انسـانانو هـم پلـې کېـدای شي؛ د بېلګـې پـه توګـه سياسي اوضـاع او چـارې کـولای شي زمـوږ د شخصيــ ودې او پرمختــګ مخـه ونيسي ــ بهرنـی غوښـتنې مـوږ لـه ودې راګرځـولای شي. مـوږ يـوازې هغـه وخـت خپلـو ذاتي وړتيـاوو تـه وده ورکـولای شـو چـې نـور مـوږ آزاده پرېږدي او د آزادو موجوداتـو پـه څېـر واوسـو. خـو پـه هـر حـال سـوفي، داخـلي او بهـرني فرصـتونه لکـه د رايـن د سـيمې د تيـرې د عصرـ هلـک، يـا د افريقـا زمرى، يا په هغه باغ کې د مڼې نيالګيو په څېر، زموږ برخليک ټاکي.

- ډېر ښه. زه تقريباً تسليم يم.

- سـپينوزا ټينګـار کـاوه، چـې يـوازې يـو موجـود کـاملاً او مطلقـاً پـه ذات پـه ذات دی او پـه ټولـه مانـا پـه خپلـواکۍ عمـل کـولای شي. يـوازې خـدای يـا طبيعـت ازاد او غيـر تصـادفي دی. انسـان د آزادۍ د لاسـته راوړلـو او لـه

بهرني قيد د خلاصون لپاره هڅه کولای شي؛ خو هېڅکله ازادي ارادي او اختيار ته لاسرسی نه مومي. موږ په هغه څه کې چې پر بدن مو تېرېږي، چې د مادي حالت لامل دی، اختيار نه لرو. همدارنګه خپل فکر هم پخپله خوښه نه شو ټاکلی. نو انسان خپلواک روح نه لري او تر ډېره دا روح په يوه ميخانيکي قالب کې بنده ده.

- پر دې مطلب پوهېدل ډېر ګران دي.

- سپينوزا به ويل، زموږ شهوتونه سبب کېږي چې موږ ربښتنې نېکمرغي او خوښي ونه مومو. خو که دا ومنو چې هر څه د يوې اړتيا له مخې پېښېږي په يو ډول شعوري ادراک سره د طبيعت کل ته رسېږو. په روښانه وينو چې ټول شيان په يو بل پورې تړلي دي او ټول شيان يو دي. موخه دا ده، هر څه چې موجود دي په هر اړخيز درک سره يې ومومو. او يوازې په دې حالت کې موږ ربښتنې نېکمرغي او خوښي لاس ته راوړی شو. سپينوزا دې ته د (هر څه ته د ابديت په سترګه کتل) نوم ورکړ. له همدې خايه مو بحث پيل نه کړ؟

- او ناچاره يو چې همدلته يې پای ته ورسوو. زه بايد لاړه شم.

آلبرتو پاڅېد، د مېوو لوی لوښی يې د کتابونو له الماری را واخيست او د سوفي مخې ته يې کېښود.

- مخکې له تګه لږ مېوه وخوره.

سوفي يوه کېله واخيسته او آلبرتو يوه شنه مڼه.

سوفي د کېلې پوستکی را بېل کړ او ناڅاپه يې وويل:

- پر دې کوم څه ليکل شوي.

- پر څه؟

- دلته. د کېلې په پوستکي کې د ننه، لکه په قلم چې ليکل شوي وي.

سوفي ټيټه شوه او کېله يې آلبرتو ته وښوده، په لوړ غږ يې ولوستل:

- زه بيا راغلم هېلدې، زه هر چېرته يم، کليزه دې مبارک شه.

سوفي وويل: ډېره جالبه ده.

- ورو ورو څورونکې کېږي.
- خو دا ناممکنه ده... نه ده؟ په لبنان کې کېلې کرل کېږي؟
آلبرتو سر وخوځاوه
- زه خو دا نه شم خوړلای.
- ښه. مه يې خوره. چا چې د خپلې لور د کليزې مبارکۍ، پر ناپوست شوې کېلې ليکلې هرو مرو يې ماغزه خراب دي، خو په ورته وخت کې به ډېر هوښيار هم وي.
- هو. دا هم او هغه هم.
- نو تر دې ځايه راته معلومه شوه، چې هېلده هوښيار پلار لري يا په بله وينا احمق نه دی.
- دا هغه څه دي، چې زه يې تل تاسو ته وايم او شايد همدا سبب وي، چې کله مخکې ځل زه دلته راغلم تاسو ماته د خبرو پر مهال هېلده وويل. هغه به مو خبرې په خوله راولي.
- هر څه ممکن دي. خو بايد هر څه ته د شک په سترګه وګورو.
- څه پوه شو چې ټول ژوند مو يو خوب نه وي؟
- کوښښ مه کوه چې د پايلې د پوهېدو لپاره بېړه وکړې. کېداي شي يوې ساده توضيح ته اړتيا ولري.
- په هر صورت زه بايد بېړه وکړم. مور به مې سترګې پر لار وي.
آلبرتو تر دوازې پورې له هغې سره ولاړ. د تګ په وخت يې ورته وويل:
- د بيا ليدو په هيله ګرانې هېلدې!
او دروازه يې په نجلې پسې وتړله.

# لاک

**...لکه توره تخته، چې د ښوونکي تر راتګ مخکې پاکه او تشه وي...**

سوفي په اته نیمو بجو کور ته ورسېده. یعنې یو نیم ساعت یې ځنډ کړی و. دوی یې نه وه خوړلې او مور ته یې پیغام پرېښی و، چې مخکې تر اوو بجو به بېرته کور ته راځي.

- داسې نو نه کېږي سوفي. زه مجبوره شوم د معلوماتو ځانګې ته زنګ ووهم او پوښتنه وکړم چې په پخواني ښار کې د آلبرتو په نوم د چا شمېره یا پته لرې کنه. دوی را پورې وخندل.

- ومې نه شوای کړی چې ژر راشم. ګومان کوم د یوه لوی راز د څرګندېدو لپاره نور څه نه دي پاتې.

- چټیات مه وایه.

- جدي وایم.

- په کلیزه کې د ګډون بلنه ورکړه؟

- اوه نه! رانه هېر شول.

- هر ډول چې کېږي، زه باید تر سبا آلبرتو ووینم. دا سمه نه ده، چې یوه پېغله نجلۍ پرله پسې د یوه زاړه سړي لیدو ته ورځي.

- هېڅ دلیل نشته، چې له آلبرتو وېره ولرې، بد انسان خو د هیلډې پلار دی.

- هیلده څوک ده؟

- هیلده د هغه سړي لور ده، چې په لبنان کې دی. هغه په رښتیا بد سړی دی. کېدای شي پر ټولې نړۍ واکمني ولري.

- که دې ژر تر ژره له آلبرتو سره معرفي نه کړم، نوره دې نه پرېږدم چې هغه ووینې. تر هغه چې زه ددې سړي څېره ونه وینم، ناکراره به وم.

د سوفي ذهن ته ناڅاپه کوم فکر ورغی، منډه یې کړه او پورته خپلې کوټې ته وخته.

مور یې پسې غږ کړ: څه وشول؟
نجلۍ د سترګو په رپ کې بېرته راغله.
- اوس به یې خبره در وښیم چې څنګه ده، په لیدو به یې نوره ما ونه خوروې.
په لاس کې یې ویډیویي فلم و. هغه یې ویډیو ته واچاوه.
- ویډیو فلم یې درکړی؟
- د آتن فلم...
د اکروپولیس انځور پر صفحه راغی، آلبرتو له سوفي سره خبرې پیل کړې او مور یې ګوته په غاښ غلې کېناسته.
دا ځل سوفي داسې څه ولیدل چې مخکې یې ورته نه و پام شوی. اکروپولیس له سیلانیانو ډک و او ډلې ډلې روان وو. په دې منځ کې یوې ډلې یوه لوحه پورته نیولې وه، چې پرې هیلده لیکلي وو.
آلبرتو په اکروپولیس کې تګ ته ادامه ورکړه، تر لږ وخت وروسته له دروازې تېر شو او له آریوپاګوس غونډۍ څخه، چې پولیس یې پر سر آتنیانو ته خبرې کولې، پورته وخوت.
وروسته یې د میدان له منځه له سوفي سره خبرې وکړې.
مور یې لاهم ناسته وه، کله به یې لنډه خبره وکړه.
- عجب... دا آلبرتو دی؟ سویه یې هم یاده کړه... هو، دا خو په رښتیا له تا سره خبرې کوي سوفي. زه نه پوهېدم چې پولس په آتن کې دی.
ویډیو هغې برخې ته ورسېده چې لرغونی آتن په کې ناڅاپه له ورانې راووت.
سوفي په وروستیو شېبو کې ویډیو بنده کړه، اوس یې نو مور ته آلبرتو وروښودلی و، نو ضرور نه وه چې افلاطون پر صحنه راشي.
په کوټه کې چوپتیا خوره شوه.
سوفي خپل سر د مور پر سر کېښود، ویې پوښتل: هغه دې خوښ شو؟ ښکلی دی کنه؟

- خو مره عجيب انسان دی، چې آتن ته تللی او فلم يې ډک کړی او بيا بې داسې نجلی ته را لېږلی چې هيڅ يې نه پېژني. آتن ته څه وخت تللی و؟

- هيڅ نه پوهېږم.

- بو بل څه هم دي...

- څه؟

- آلبرتو ډېر قومندان ته ورته دی، قومندان د ځنګله په يوه جونګړه کې اوسېده.

- موري! چې دا په خپله آلبرتو نه وي؟

- خو قومندان دا پنځلس کاله چا نه دی ليدلی.

- د دې لپاره به يې نه وي ليدلی چې تل په سفر دی... ښايي په آتن کې.

مور يې سر وخوځاوه: ما هغه په اوبايمه لسيزه کې وليد، بلکل د آلبرتو همزولی و. نوم يې د بهرنيانو و...

- کناکس؟

- کېدای شي سوفي. لکه چې نوم يې کناکس و.

- شايد کناګ؟

- په ياد مې نه دي. دا کناکس او کناګ څوک دي؟

- يو يې آلبرتو دی، بل يې د هيلدې پلار.

- زه خو بيخي ګنګسه شوم.

- په کور کې کوم څه شته چې ويې خورم؟

- کوفته شته. ځانته يې توده کړه.

دوې اونۍ تېرې شوې خو د آلبرتو هيڅ خبر رانغی. هيلدې ته د کليزې د مبارکۍ بل کارت راغی. د سوفي کليزه هم نږدې وه، خو د مبارکۍ کوم کارت ورته نه و راغلی.

یوه ورخ تر ماسپښین وروسته، لرغوني ښار ته ولاړه او د آلبرټو د کور دروازه یې وټکوله. په کور کې څوک نه وو، خو پر دروازه یو کوچنی یادښت سرېښ و، وربانديې لیکلي وو:

هېلدې! کلیزه دې مبارک شه. لورې! ورو ورو د عطف او حقیقت شېبې ته نېږدې کېږو. هر کله چې په دې اړه فکر کوم، بې اختیاره په خندا شم هرو مرو به دې پښو کې د بارکلي لاس دی، نو خولې دې په دوو لاسونو ونیسه.

سوفي له دروازې یادښت وشکاوه، د آلبرټو پر پستي صندوق یې سرېښ کړ او بېرته ووته.

- خومره بد! داسې نه چې بیا آتن ته تللی وي؟ څنګه کولای شي بې خبره لاړ شي او زما تولې پوښتنې بې ځوابه پرېږدي؟

د جون په څوارلسم چې کله له ښوونځي کور ته راغله، هرمس یې په باغ کې ولید. سوفي د هرمس خواته ور منډې کړه او سپي هم په خوښی ورغی. نجلۍ هغه داسې په غېږ کې ونیو، لکه سپي چې د ټولو معماوو پر حل پوهېږي.

بیا یې خپلې مور ته یادښت پرېښود، خو دا ځل یې د آلبرټو پته هم په کې ولیکله.

په لار کې سوفي د سبا په اړه فکر کاوه. د خپلې کلیزې په فکر کې دومره نه وه، ځکه کلیزه به یې د اوړي په لومړۍ شپه نمانځل کېده، خو سبا نه د هیلدې کلیزه هم وه او سوفي ډاډه وه چې کومه غیرعادي پېښه کېدونکې ده. هیڅ چې نه و، له لبنانه د راتلونکو کارتونو لړۍ خو ختمېده.

له لوی میدانه تېره شوه او د لرغوني ښار په لار کې یوه پارک ته ورسېده، چې د لوبې ځای یې درلود. هرمس د یوې څوکۍ تر څنګ ودرېد او له سوفي یې وغوښتل چې کښېني.

نجلۍ کېناسته، پر سپي یې لاس کښاوه او د هغه سترګو ته یې کتل. هرمس ناڅاپه ولړزید. سوفي ګومان وکړ چې غواړي کوم څه ته ځک

شي. بو خل بيا يې ټول ځان ولړزېد، خو نه يې خُرخُر وکړ او نه وغپېدا.
خوله يې خلاصه کړه او ويې ويل:
- کليزه دې مبارک شه هيلدې!
د سوفي ژبه بنده شوه. په رښتيا سپي ورسره خبرې وکړې؟ ناشوني ده. هرومرو يې د هيلدې په هکله فکر کاوه، نو ځکه يې داسې څه تصور کړل. خو په زړه کې پوهېده، چې هرمس خبرې وکړې، هغه هم په لوړ، بم او رسا غږ.
څو شېبې وروسته هر څه بېرته عادي شول. سپي داسې حرکات کول لکه غوښتل چې يې دا حقيقت پټ کړي، چې څو شېبې وړاندې يې د انسانانو په څېر خبرې وکړې. هرمس په منډه منډه د آلبرتو د کور پر لور روان شو، مخکې تر دې چې کور ته ننوځي، سوفي اسمان ته وکتل.
- د نن هوا تر اوسه ښه ده، نورې ورځې به دا وخت اسمان وريځو پوښلی و.
آلبرتو دروازه خلاصه کړه. سوفي ناځاپه وويل:
- عقل دې کم دی ته هم پوهېږې!
- بيا څه شوي؟
- قومندان هرمس ته خبرې کول ور زده کړي.
- نو خبره تر دې خايه رسېدلې.
- هو، تصور يې کولای شې!
- او هرمس څه وويل؟
- وړاندوينه يې وکړه؟
- شايد کوم څه به يې د کليزې د مبارکۍ په اړه ويلي وي.
- آفرين.
آلبرتو سوفي ننه ايسته. نوي کالي يې اغوستي وو، دا کالي يې هم مخکينيو ته ورته و، خو نن يې زور ورق، رڼاوې او نور تزينات کم و.
سوفي وويل: تر اوسه خو مې درته لا ټولې خبرې نه دي ويلې.

- موخه دې څه ده؟
- ولې؟ په خپل پښتي صندوق کې دې هغه يادښت ليک ونه لوست؟
- آه! هو. په هماغه شيبه مې ايسته واچاوه.
- قومندان چې هر کله د بارکلي په اړه فکر کوي خندا ورځي. زه غواړم پوه شم چې څه شی ددې خوار فيلسوف قومندان ته خندوونکې دي؟
- بايد صبر ولرو چې څه کېږي؟
- خو نن يې ښه موقع ده چې د هغه په هکله راته خبرې وکړې، کنه؟
- هو. نن يې ورځ ده.
آلبرټو پر څوکۍ ځای جوړ کړ، نو وېې ويل:
- عقلپال هغه څوک دی چې عقل ته ارزښت ورکوي او د عقل پر ارزښت باور لري.
نېږ خل چې دلته ناست وو، د دکارت او سپينوزا په اړه وغږېدو. دوی ځينې ګډ صفات درلودل. دواړه عقلپالان وو.
- هو، عقلپال عقل د معرفت او پېژندنې اصلي سرچينه بولي. دوی په دې باور دي چې انسان مخکې تر هر ډول تجربې، يوه اندازه ذاتي فکر په ذهن کې لري او څومره چې دا فکر روښانه وي په هماغه اندازه يې د حقيقت تداعي ډېره وي. په ياد دې دي، چې دکارت د (بشپړ وجود) په اړه روښانه او مشخصه مفکوره درلوده او د هغې پر بنسټ دې پايلې ته ورسېد چې خدای موجود دی.
- په ياد مې دي، زه دومره هم هېرجنه نه يم.
- عقلاني مفکوره د اوولسمې پېړۍ ځانګړې تګلاره وه. چې په منځنيو پېړيو کې يې ريښې پياوړې شوې. د دې ريښو سر ان تر سقراط او افلاطونه رسېږي. خو په اتلسمه پېړۍ کې دا مفکوره له سختو نيوکو سره مخ شوه. ځينو فيلسوفانو نظر وړاندې کړی: هغه څه چې زموږ په ذهن کې دي، سل په سلو د حواسو له لارې تجربه شوي. دې اخذ ته دوی د (تجربه پال - تجربه ګرا - Empiricism) نوم ورکړ.

ـ نن د تجربه پال په هکله راسره خبرې کوې؟

ـ هو، هڅه کوم. دې ډلې فیلسوفانو تجربې ته ارزښت ورکاوه، چې مهم کسان یې لاک، بارکلي او هیوم دي. دوی درې واړه د برېتانیې وو. د اوولسمې پېړۍ فیلسوفانو عقل ته ارزښت ورکاوه، چې مشهور یې فرانسوی دکارت، هالندی سپینوزا او آلماني لایب نیتس وو. له دې امله د برېتانیې د تجربه پالو او د اروپا د عقلپالو تر منځ توپیر موجود دی.

ـ خومره سخت اصطلاحات! کولای شې د تجربه پالو معنا یو ځل بیا راته ووایې؟

ـ تجربه پال د نړۍ پېژندنه د خپلو حواسو له لارې تر لاسه کوي. د تجربې په اړه د ارسطو کلاسیک تعریف دی چې وایي: څه چې په ذهن کې دي، په لومړي سر کې په حواسو کې وو.

دا نظر د افلاطون د اشاري نیوکې ضامن هم و، چې ویل یې: بشر د مثالونو له نړۍ یو لړ ذاتي مثالونه له ځانه سره راوړي؛ لاک د ارسطو نظریه تایید کړه او دکارت یې هدف وټاکه.

ـ څه چې په ذهن کې دي، لومړی په حواسو کې وو.

ـ تر هغه چې موږ خپله نړۍ په سترګو نه وي لیدلې، د هغې په هکله هېڅ ډول فکري یا ذاتي تصور نه لرو؛ خو که په ذهن کې د هغو پېښو تصور ولرو چې تجربه کړې مو نه وي، نو دا به بې بنسټه تصور وي.

کله چې، د بېلګې په توګه ځینې کلمې لکه خدای، ابدیت یا جوهر کاروو، له خپل عقل څخه کار اخلو، هېڅ‌ګا تر اوسه خدای، ابدیت، یا هغه چې فیلسوفان یې جوهر بولي، نه دي تجربه کړي.

که وغواړو، په دې اړه ډېرې ښې رسالې لیکلی شو، خو په اصل کې به هېڅ نوی مفهوم ونه شي رسولای. له دې امله فلسفي نظامونه چې هر څومره هوښیارانه وي، بیا هم سل په سلو خیال پردازي ده. د دې فاضلانه رسالو وارثین د اوولسمې او اتلسمې پېړۍ فیلسوفان وو. اوس نو دوی باید دا رسالې تر مایکروسکوب لاندې ازمویلې وای، چې د تېرو فیلسوفانو

تشي او بې بنسټه عقيدې يې تېرې لرې کړې واى. د هغه چا په څېر چې د سرو زرو وړې ذرې په غلبيل کې ګوري، ناکاره تيږې هم ورسره سومي، کله د دې ناکاره ډبرو په منځ کې د سرو زرو ذرې هم ځلېږي.

- او دا د سرو زرو ذرې، واقعي تجربې دي؟

- او يا هغه فکر دی چې له تجربو سره تړاو لري. د برېتانيې تجربه پالو فيلسوفانو ته دا بېحده مهمه وه، چې بشري مفاهيم په دقت سره په پام کې ونيسي- او ووينې چې له دغو مفاهيمو څخه کوم يو يې له واقعي تجربو سره ريښه لري. خو اجازه راکړه چې دا درې فيلسوفان يو يو در وپېژنم.

- سمه ده، را يې وپېژنئ.

- لومړی کس يې انګليسي- فيلسوف جان لاک دی، چې له ۱۶۳۲ تر ۱۷۰۴ پورې ژوندی و. د ده مهم اثر (د انساني فهم په اړه څېړنه) دی، چې په ۱۶۹۰ز کې خپور شوی.

لاک په دې کتاب کې کوښښ کړی چې دوه موضوعات روښانه کړي:

لومړی: انسان خپل فکر له کومه کوي؟

دويم: په حواسو باور کولای شو؟

- دا ډېر لنډ موضوعات نه وو؟

- دا دوه موضوعات به سره جلا کړو. لاک مدعي و چې زموږ د ټولو افکارو او تصوراتو منشا زموږ حسونه دي. تر هغه چې زموږ ذهن د حس په ذريعه څه درک نه کړي، د يوې سپينې تختې په څېر دی.

- او لايتناهي را لنډولی شي

- مخکې تر دې چې موږ کوم څه احساس کړو، زموږ ذهن د هغې تورې تختې په څېر وي، چې ټولګي ته د ښوونکي له راتګه مخکې پاکه او تشه وي.

لاک ذهن يوې تشې کوټې ته ورته وباله. موږ په تدريج سره د شيانو په احساسولو پيل کوو، خپله شاوخوا نړۍ وينو، بويوو يې، څکو يې، اورو يې او حس کوو يې. ان نوی زيږېدلی ماشوم هم دا کار کوي. د لاک په

نظر، له همدې امله ساده حسي- تصورات رامنځته کېږي، خو ذهن يو مخبزه منفعل او يوازې د بهرنيو معلوماتو منونکی نه دی، بلکې په ذهن کې هم ځينې فعاليتونه تر سره کېږي، تفکر، استدلال، باور، شک...هر يو زموږ په حسي- تصوراتو اغېز لري او هغه ځه ته رسېږي، چې لاک ورته Reflection وايي.

لاک د احساس او تامل تر منځ توپير کاوه، ذهن يوازې د منفعلاتو اخيستونکی نه دی، بلکې مغز ته د را روانو محسوساتو سېل هم ډلبندي کوي او انسان بايد همدلته زنګ ته غوږ ونيسي.

-زنګ ته غوږ؟

-لاک ټينګار کاوه، يوازينی شی چې موږ يې په حس سره درک کولای شو، ساده محسوسات دي، د بېلګې په توګه، کله چې موږ مڼه خورو، تو له مڼه په يوه حس نه شو معلومولای، په حقيقت کې څو ساده حسونه سره يو ځای کېږي، لکه مڼه داسې مېوه ده چې شين رنګ لري، ښه بوی يې دی، مشخص او اوبه لرونکی خوند لري. اوس نو څو څو ځله بايد مڼه وخورو څو باوري شو، هغه څه چې موږ يې خورو، مڼه ده. د لاک په وينا، په دې توګه، د مڼې مرکب تصور زموږ په ذهن کې رامنځته کېږي. کله چې موږ ډېر کوچني وو، د لومړي ځل لپاره مو چې د مڼې خوند څکلی نو هغه شان مرکب تصور مو نه و درلودلی، لکه اوس يې چې لرو. شين شی مو وليد، ښه او اوبه لرونکی خوند يې و. واه واه لږ تروش دی. ورو ورو دې ته ورته د نورو شيانو حسونه راټولوو، چې مڼه، ګلاب، مالته درک کوو.

د وروستي تحليل په توګه د نړۍ د پېژندنې شيان، زموږ محسوسات دي. په همدې دليل هره پېژندنه چې د ساده احساس له لارې نه وي، بې بنسټه پېژندنه ده او دا پېژندنه بايد پرېښودل شي.

-په هر حال، بايد داده وو، څه چې وينو، اورو او څکو؛ هغه څه دي چې حس کوو يې.

-هم هو، هم نه. او دا دويم مطلب دی، چې لاک يې د څوابولو کوښښ وکړ. لومړی يې دا مسئله حل کړه، چې زموږ ادراک له کومه کيږي. اوس دا پوښتنه کوي چې دنيا په رښتيا هغه ډول ده، چې موږ يې په حس سره درک کوو.

سوفي، دا دومره هم ښکاره او بديهي نه دی. په پايله اخيستو کې بايد بيړه ونه کړو. رښتيني فيلسوف هيڅکله بايد داسې کار ونه کړي.

- نو ما خو يوه کلمه څه نه دي ويلي

- لاک د اوليه کيفيتونو او ثانوي کيفيتونو تر منځ توپير رامنځته کړ او ويې ويل چې د مخکينيو فيلسوفانو - له هغه ډلې له دکارت - منندوی دی. له لومړنيو کيفيتونو يې موخه د وزن، حرکت، شمېر او دې ته ورته نورو شيانو بُعد و. په پوره باور سره ويلی شو، چې زموږ حواس له دې کيفيتونو سره دا شيان عيناً بيا مومي.

خو موږ په څېزونو کې ځينې نور کيفيتونه هم حس کوو او وايو چې دا شی خوږ يا تروش، شين يا سور، تود يا سوړ دی. لاک دې ته ثانويه کيفيتونه وايي. په دې توګه - د رنګ، بوی، خوند، غږ - حسونه يوازې زموږ پر حواسو د بهر هستی اغېز دی، نه د شيانو د حقيقي او ذاتي کيفيتونو اغېز.

- که په ساده ژبه يې ووايو، سليقې مختلفې دي.

- بلکل. هر څوک د اوليه کيفيتونو - لکه اندازه او وزن - په هکله په يوه رايه کېدای شي. ځکه دا شيان پر ځای قايم دي. خو ثانويه کيفيتونه لکه رنګ او خوند، د فرد د احساس په ماهيت پورې تړلي دي، چې د اشخاصو تر منځ او حيواناتو تر منځ توپير لري.

يووانا هر وخت مالټې خوري، دا خل يې ليمو خوړلی، څېره يې بدله شوې. هر خل يوه وړه ټوټه پر خوله ايږدي او وايي تروش دی؛ خو مالته مې په نظر معمولاً خوږه او خوندوره راځي.

مسله دا نه ده، چې له تاسو څخه یو یې سم وایي او بل یې ناسم. هر چاته د مڼې اغېز یو متفاوت حس دی. د رنګ احساس هم همداسې دی. ممکن سور رنګ ستا نه وي خوښ؛ خو که یووانا اتفاقاً څانته سره کالي واخلي نو ضرور نه ده چې خپل مخالف نظر ورته اظهار کړې. دا رنګ تا او هغې ته متفاوت ښکاري او دا دلیل د رنګ پر ښکلا یا بدرنګۍ دلالت نه کوي.

- خو ټول پر دې توافق لري چې مالته ګرده ده.

- هو! خوک دا فکر نه شي کولای چې زموږ ګرده مالته څلور کنجه ده. خو پر دې فکر کولای شې، چې تروشه ده که خوږه. خو که وزن یې دوه ګرامه وي، داسې فکر نه شي کولای، چې وزن به یې اته ګرامه وي. دا ګومان کولای شي چې اووه یا اته کیلو وزن لري، چې په دې صورت کې به سخت تېروتلي وو.

کله چې یوه ډله کسان د کوم شي د وزن په هکله وړاندوینه کوي، نو یو کس یې تل د نورو په پرتله حقیقت ته نږدې وي. څینې د شمېر وړ څېزونه هم په دې اړه صدق کوي؛ په قوطي کې د نخودو ۹۸۶ دانې یا شته دي یا نشته دي. حرکت ته هم دا خبره صدق کوي، موټر یا په روان دی یا ولاړ.

- پوه شوم.

- په دې توګه لاک له دکارت سره موافقت درلود، مادي هستي داسې صفات لري چې انسان یې په خپل عقل سره درک کولای شي.

- هو وېل ډېر سخت دي.

- په بله برخه کې لاک شهودي څانپېژندنه یا نمایشي- پېژندنه منله. د مثال په توګه ویل یې: دا پېژندنه د اخلاقي اصولو یوه برخه ده، چې د هر چا لپاره کارېدای شي. په بله وینا، لاک د طبعي حق پر فکر باندې باوري و او دا یې د عقلي تفکر یو اړخ و. د عقلي تفکر بل اړخ یې دا و، چې ویل به یې د انسان ذاتي عقل د خدای د وجود د پېژندنې وړتیا لري.

- شايد رښتيا يې ويل.

- په څه اړه؟

- په دې اړه چې خدای شته.

- کېدای شي همداسې وي، خو دا يې په ايمان پورې اړوند نه ګڼم. ده باور درلود، چې انګېرنه د بشري عقل زېږنده ده، د قضيې عقلي اړخ همدا و. بايد دا هم ووايو، چې د فکر آزادي، رواداري او آساني پلوي و، همدارنګه د سړي او ښځې پر برابرۍ يې باور درلود.

- په دې برخه کې له ده سره موافقه يم.

- د نوي عصر- په فيلسوفانو کې لاک لومړنی کس و، چې د سړي او ښځې رول ته يې ليوالتيا وښوده. د جان ستورات ميل په پرتله- چې هغه هم د سړي او ښځې له برابرۍ نه په دفاع کې اساسي نقش درلود- ډېر نفوذ ومونډ. په ټول کې لاک د آزادۍ غوښتنې په فکر کې مخکښ و، چې په اتلسمه پېړۍ کې دا فکر د فرانسې په روښانې عصر کې نور هم وغوړېد. ده د لومړي ځل لپاره د قوو اصل ډلبندي کړ...

- دا ډلبندي هماغه د بېلابېلو ښستونو تر منځ د دولت د قوو وېشنه نه ده؟

- له دې ښستونو نه دې کوم يو په ياد دی؟

- مقننه قوه يا ټاکل شوي استازي، قضايه قوه يا حقوقي محکمې او بل اجراييه قوه يا دولت دی.

- په حقيقت کې، د قوو دا وېشنه د روښانې عصر- د فرانسوي فيلسوف مونتسکو وېشنه ده. لاک تر ټولو ډېر ټينګار درلود چې بايد مقننه او اجراييه قوې سره بېلې شي او د استبداد مخه ونيول شي. لاک د څوارلسم لويي د واکمنۍ پر مهال اوسېده، چې قوې د ده په واک وې. لويي به ويل: زه دولت يم. موږ هغه ته خودکامه (خپل سری؟) فرمانروا وايو. اوسمهال د څوارلسم لويي حکومت يو بې قانونه او خپلسری حکومت شمېرل کېږي.

د لاک په نظر، قانوني حکومت هغه دی چې د خلکو استازي قانون وضع کړي او پادشاه يا دولت يې پلی کړي.

# هيــوم

## ... نو هغه اور ته واچوه...

آلبرتو غلی و او مېز تـه يـې کتـل. بيـا يـې مـخ واړاوه او لـه کړکـۍ يـې بهـر تـه وکتل.

سوفي وويل: ورېځې راټولې شوې.

- هو! هوا نيولې ده.

- اوس د بارکلي په هکله راته څه وايې؟

- بارکلي لـه بريتانوي تجربـه پـالو درېيم کـس و، خـو بلـه خـبر دا چـې هغـه لـه خو اړخونـو څانتـه څـانګړې معقـولې لـري. لـومړی بـه ډيوېـد هيـوم وپېژنـو، چې لـه ۱۷۱۱ تـر ۱۷۷٦ز پـورې ژونـدی و او پـه تجربـه پـالو کـې تـر ټولـو مهـم کـس دی. د هيـوم بـل ارزښـت پـه دې کـې دی چـې د المـان لـوی فيلسـوف ايمانويل کانت د ده په مرسته د خپلې فلسفې لاره ومونده.

- تاسو تـه هـيڅ مهمـه نـه ده، چـې زه د بـارکلي د فلسـفې اورېـدو تـه ډېـره لېوالـه يم؟

- خير، کومـه خـبره نـه ده. هيـوم ادينبـورو تـه نـږدې پـه سـکاټلنډ کـې لـوی شـو. کـورنۍ يـې غوښـتل دی حقـوق ولـولي، خـو ده پـه څـان کـې (د هـر څـه پـر وړانــدې نــه کمېــدونکی مقاومــت، چــې د حکمــت او فلســفې جــزدی) احســاس کــړ. دی د فرانســې پــه روښــانې عصـر ـ کــې، لــه نــامتو فرانســوي مفکرينو. لکه ولـتر او روسـو سره اوسـېده. پـه اروپـا کـې يـې ډېـر سـفرونه وکـړل او د ژوند په پای کـې بېرتـه ادينبـورو تـه را وګرځېـد او هلتـه پـاتې شـو. مهم اثـر يې (د انساني طبيعـت پـه هکلـه رسـاله) و، چـې پـه اتـه ويشـت کلنـۍ کـې يـې خپره کـړه، خـو ده ادعـا درلـوده، چـې د دې کتـاب فکـر پـه پـنځلس کلنـۍ کـې ذهن ته ورغلی.

- نو زه د وروسته پاتو خلکو په ډله کې يم.

- تا دې خپل کار پيل کړی.

له هغه څه سره چې اورېدلي

- خو که زه فلسفې ته مخه کړم، زما فلسفه به له هغه څه سره چې اورېدلي مې دي، کېدای شي توپير ولري.

- ستا په نظر تر اوسه نیمګړتیا په څه کې وه؟

- لومړی خو د کومو فیلسوفانو په اړه مو چې خبرې وکړې، ټول یې نارینه وو. او نارینه داسې دي لکه په خپله نړۍ کې چې اوسېږي. زه تر ډېره په واقعي نړۍ کې بندي یم. هغه نړۍ چې ګلونه، څاروي او ماشومان په کې زېږي او وده کوي. ستاسو فیلسوفان تل د انسان په اړه خبرې کوي او دا یې بله رساله د (انساني طبیعت) په اړه.

او هر کله یې چې د انسان یادونه کوي، مطلب یې تر نارینه دی. زما په نظر ژوند له مېنداوارۍ او زېږېدلو پیلېږي، خو ما تر دې دمه نه د ماشوم، نه یې د ژړا او نه د مینې او دوستۍ په هکله کومه کلمه اورېدلې.

- هو! ستا خبره پر ځای ده، خو د هیوم فلسفه له نورو توپیر لري. هیوم تر بل هر فیلسوف د مخه، نننۍ نړۍ د خپلو ښوونو د پیل ټکی وټاکه. زه پر دې باور یم، چې هیوم د ماشومانو، د ژوند د ښې او روزنې په فکر کې و.

- نو باید ښه ځیر شم.

- هیوم تجربه پال و. له دې امله یې ټول هغه مفاهیم او فکري جوړښتونه، چې نارینه فیلسوفانو رامنځته کړي وو، منظم کړل. د منځنۍ پېړۍ د فیلسوفانو کتبي او شفاهي نظریات، د اوولسمې پېړۍ له عقلي فلسفې سره یو ځای شول. هیوم به ویل، ښه دا ده چې په نړۍ کې خپلو تجربو ته مخه کړو.

هېڅ فیلسوف به هېڅکله ونه توانېږي چې موږ د ورځنیو تجربو ماورا ته بوځي او یا د ورځني ژوند د تاملاتو د قواعدو خلاف، سلوک او کړنې موږ ته راکړي.

- تر دې ځایه هیله ښوونکې ده، مثال ورکولای شې؟

- د هیوم په زمانه کې خلکو په پرښتو باور درلود. داسې پرښتې چې وجود بې د انسان په ځېر و، خو وزرونه یې درلودل. سوفي، تا داسې کوم موجود تر اوسه لیدلی؟

- نه!

- مګر د انسان وجود خو دې لیدلی.

- څه احمقانه پوښتنه!

- او وزر دې هم لیدلي.

- هو، خو د انسان پر وجود پوري نه.

- په دې توګه، د هیوم په نظر (پرښته) د مرکب تصویر یو ډول دی. یعنې دا داسې دوې تجربې دي، چې له یو بل سره هېڅ تړاو نه لري، خو د انسان په تخیل کې سره یو ځای شوې دي. په بله وینا دا بې اساسه فکر باید بدل شي. بشر-باید په همدې کړنلارې خپل ټول افکار او تصورات، همدارنګه د کتابونو مجموعې، تنظیم او سمبال کړي.

د هیوم په وینا، موږ چې هر کله یو کتاب را اخلو، باید وپوښتو چې (د کمیت یا عدد په هکله د نظري استدلال لرونکی کتاب دی؟ نه)

(د پېښېدونکو چارو او هستی په هکله د تجربي استدلال لرونکی کتاب دی؟ نه

نو هغه اور ته واچوه، ځکه زموږ له تېر ایستلو پرته په کې بل څه نه شته.

- خبره دې وکړه؟

- خو نړۍ تر اوسه موجوده ده، تر پخوا لا تازه او ښکلې. هیوم غوښتل پوه شي چې ماشوم دا نړۍ څنګه تجربه کوي. سوفي، مخکې دې وویل، د هغو فیلسوفانو په اړه چې خبرې شوې، په خپله نړۍ کې اوسېدل او ته تر ډېره د واقعي نړۍ په بند کې یې؟

- همداسې څه دي.

- هیوم هم همدا ویل، اجازه راکړه چې د هغې د تفکر ډول یو څه دقیق وڅېړو.

- زه غوږ يم.
- هيوم دا ثابتوي، چې بشر دوه ډوله ادراک لري، يو تاثرات او بل تصورات.
له تاثراتو يې مقصد د بهر هستی احساس دی او له تصوراتو يې مقصد د دې احساسو بېرته را يادول دي.
- يو مثال راته ويلای شې؟
- که دې لاس په ګرم منقل وسوځي، اغېزمنېږې او چې د لاس سوځول دې بېرته دریاد شي، نو د دې اغېز بېرته رایادولو ته هيوم (تصور) وايي. د دواړو توپير دا دی چې زموږ اغېز، د ذهني تاثر د بېرته را يادولو په پرتله پياوړی او خواکمن دی.
ويلی شو چې محسوسات اصل دي او تصورات او ذهنيات له اصل نه پيکه تقليد دی. تاثرات د هغو تصوراتو مستقيم علت دی چې زموږ په ذهن کې راټولېږي.
- تر دې ځايه پوه شوم.
- پر دې سربېره هيوم ټينګار کاوه، چې تاثرات او تصورات، ساده يا مرکب کېدای شي. په ياد به دې وي، چې د لاک په بحث کې مو د مڼې خبره وکړه، د يوې مڼې مستقيمه تجربه د مرکب تاثر يوه بېلګه ده.
- ښښنه غواړم چې په خبره کې مو ګډېږم، خو دا مطلب په رښتيا څه اهميت لري؟
- اهميت لري، څنګه داسې پوښتنه کوې؟ ممکن هر فيلسوف په ورته مسئله يو څه کار کړی وي. نو بايد ناهيلي نه شو او د دليلونو بنسټ نيمګړی ونه ګڼو. هيوم احتمالاً له دکارت سره هم باوره و، چې ويل يې: فکري مسايل بايد له بنسټه راپيل کړو.
- ډېر ښه. منم يې.
- د هيوم مقصد دا دی، ځينې وخت موږ داسې مرکب تصورات مومو، چې په مادي نړۍ کې نه شته. د بېلګې په توګه لکه پرښتې، چې خبرې مو

پرې وکړي او يا سيمرغ چې مخکې خبره پرې راغله او يا بله بېلګه يې
ورزلرونکی اس دی،
په ټولو مواردو کې بايد ومنو چې دا شيان د انسان فکر جوړ کړي،
رامنځته کړي او ډېر ښه يې له په وس ورته پوره شوي. دا هر عنصر ـ په يوه
زمانه کې احساس شوی او د حقيقي تاثر په توګه زموږ د ذهن صحنې ته
قدم ږدي. په حقيقت کې ذهن هېڅ شی په خپل سر نه رامنځته کوي،
خېزونه يو د بل تر څنګ ايږدي او غير واقعي تصورات جوړوي.
- هو پوه شوم. البته چې دا مهم دي.
- ډېر ښه. هيوم غوښتل هر تصور جلا وڅېړي او وګوري، چې ترکيب يې
له حقيقت سره سمون لري کنه. ده به پوښتل: دا تصور له کوم تاثر څخه
رامنځته شوی؟ هيوم بايد لومړی دا پيدا کړي وای، چې هر مرکب تصور
له کومو ساده تصوراتو څخه جوړ شوی. ده همدا ډول انتقادي کړنلاره
خپله کړه او بريالي شو، چې زموږ تصورات تجزيه او تحليل کړي او زموږ
افکار سمبال کړي.
- کولای شې يو دوه مثالونه ووايې؟
- د هيوم په زمانه کې خلکو د جنت په هکله ډېر واضح تصورات
درلودل. که دې په ياد وي دکارت به ويل (روښانه او دقيق) تصورات په
خپله د دې تضمينوونکي دي، چې يو بل ته ورته شيان په رښتيا شته.
- ما خو مخکې هم ويل چې هېرجنه نه يم.
- نو ناڅاپه مومو، چې له جنت څخه زموږ تصور د متعددو عناصرو
ترکيب دی. جنت عبارت دی له ګوهرينو دروازو، زرينو لارو او بې
شمېره پرښتو. موږ تر اوسه دا ساده عناصر نه دي تجربه کړي. ځکه
ګوهريني دروازې، زريني لارې او پرښتې هم پخپل وار سره مرکب
تصورونه دي. کله مو چې دا وموندل چې زموږ تصور له جنت نه ساده
عناصر لکه: ګوهر، دروازه، لار، زر، سپين پوښلي وجود او وزر دي، نو

ناچاره یو، چې له ځانه وپوښتو، موږ مخکې دا ډول ساده تصورات نه درلودل؟
- طبعاً چې درلودلي مو دي. دا ساده تصورات مو سره غوټه کړي او بېرته مو یو ځای کړي او د یوه واحد تصور په توګه یې بېرته رامنځته کوو.
- بلکل. انسان د تخیل او تجسم پر وخت له سرېښ او بیاتي کار اخلي، خو هیوم ټینګار کوي، ټول هغه عناصر چې موږ یې په خپل تصور کې سره یو ځای کوو د ساده تاثراتو په څېر زموږ ذهن ته دننه کېږي. چا چې په خپل عمر کې سره زر نه وي لیدلي، زرینې لارې نه شي تصورولای.
- ډېر خیرک و. د خدای په هکله د دکارت د روښانه او دقیق تصور په اړه یې څه ویل؟
- هیوم دې ته هم ځواب درلود، که موږ خدای یو بې نهایته هوښیار، پوه او مهربانه موجود ګڼو، په دې حالت کې له خدایه مرکب تصور لرو. یعنې بې نهایته هوښیار موجود، بې نهایته پوه او بې نهایته مهربان. خو که موږ هېڅکله هوښیاري، پوهه او مهرباني نه وي لیدلې، د خدای دا ډول تصور به مو ذهن ته لاره ونه مومي. او یا ممکن له خدای نه زموږ تصور- سختګیره خو عادل پلار ته ورته وي- یعنې له پلاره یې مفهوم سختګیري او عدالت دی.
تر هیوم وروسته ډېریو دیني معتقدینو ویلي، د خدای په هکله دا ډول تصورات زموږ هغو تجربو ته ورته دي، چې په کوچنوالي کې مو له پلاره درلودې. دوی ادعا کوي چې د پلار دا شان تصور د اسماني قدرت د تصورولو سبب شو.
- دا به سم وي. خو ما هېڅ وخت دا نه ده، منلې چې خدای هرومرو نارینه دی. مور مې څینې وخت د الله پر ځای الهه وایي، چې تعادل وساتي.
- په هر حال، هیوم د هغو ټولو افکارو او تصوراتو مخالف و، چې موږ ونه شو کولای ریښه یې په ادارک سره- لکه حسي- درک- پیدا کړو. ده ویل، غواړي، پر ټولو هغو بې معنا څېزونو بانډې د بطلان کرښه وکاږي، چې له

اوږدي زمـاني راهیسـې یـې پـر وروسـتیو طبعـي افکـارو، خپـل سـیوري غوږولي او د هغه د بدمرغۍ سبب شوي.

خو موږ ان په ورځني ژوند کې هم مرکب تصورات کارو، خو هېڅکله مو له خانه دا پوښتنه نه ده کړې، چې دا سم دي که نه.

د بیلګې په توګه د (زه) موضوع. دا د دکارت د فلسفې اصلي پایه ده او دا بې بوازینۍ روښانه او مشخص ادراک و، چې خپلې ټولې نوري فلسفې بې د هغه پر بنسټ رامنځته کړې.

- هیله ده، هیوم هڅه نه وي کړې چې ووایي: زه (زه) نه یم. دا نو مفته خبره ده.

- سوفي! که ما په دې درسونو کې تاته یوازې یو شی در زده کولای، نو هغه به دا و چې په قضاوت کولو کې بېړه مه کوه.

- بښنه غواړم. ښه! څه مو ویل.

- راځه چې د هیوم کړنلاره وڅېړو او کوم څه ته چې ته (زه) وایې، هغه تجربه او تخیل کړو.

- لومړی باید معلومه کړو چې (زه) ساده تصور دی، که مرکب.

- ښه! ستا نظر څه دی؟

- که رښتیا ووایم، زما احساس مرکب دی. مثلاً، زه ډېره زړه نازړه یم، په هر څه کې پرېکړه راته ستونزمنه وي. څینې خلک مې هم خوښېږي او هم مې نه خوښېږي.

- نو د (زه) مفهوم د مرکب تصور یو ډول دی.

- ښه اوس باید معلوم کړم چې ما د خپل (زه) لپاره ورته (مرکب تاثر) لرلای. ګومان کوم لرلای مې دی. هو تل مې لرلای.

- نو له دې امله اندیښنه لرې.

- زه ډېره بدلون منونکې یم. نن هغه نه یم چې په څلورکلنۍ کې وم. خوی، عادت او لیدلوری مې دم په دم بدلېږي. ناڅاپه داسې احساس کوم چې (نوې څوک) یم.

- نو د نه بدلېدونکي (زه) احساس یو بې اساسه فکر دی؟ په حقیقت کې د (زه) ادراک د ساده اغېزو، اوږده ځنځیرونه دي، چې یو کس هېڅکله هغه په یوه وخت او ځای کې نه دي تجربه کړي.
د هیوم په وینا، (زه) د مختلفو ادراکونو له مجموعې پرته بل څه نه دی، چې په ډېرې چټکۍ سره په یو بل پسې راځي او تل بدلون او حرکت کوي.
ذهن د تیاتر یوې صحنې ته ورته دی چې متعدد ادراکونه یو په بل پسې دې صحنې ته راځي، ځان ځرګندوي، بېرته ځي، ورکېږي او په ډېرو حالاتو کې سره یو ځای کېږي.
هیوم وویل چې د دې ادراک او احساس تر شا هېڅ کوم (شخصي-هویت) نه دی نغښتی. کټ مټ لکه د سینما د پردې د نقشونو په څېر چې په دومره چټکۍ سره بدلېږي چې موږ نه پوهېږو فلم له جلا جلا تصویرونو جوړ شوی او په حقیقت کې له یو بل سره متصل نه دي، بلکې د شېبو یوه ټولګه ده.
- خپله خبره مې بېرته اخلم.
- یعنې دا منې چې یوه بدلېدونکی (زه، خودي) لرې؟
- هو!
- څو دقیقې مخکې دې خلاف نظر درلود، او ویل دې چې زه زه یم.
باید دا هم ووایم، چې د انسان له ذهن او د نه بدلېدونکي (زه) د انکار تحلیل نږدې ۲۵۰۰ کاله مخکې د نړۍ په بل ګوټ کې رامنځته شو.
- د چا په وسیله؟
- د بودا په وسیله. عجیبه ده، چې د دواړو فکر ډېر یو بل ته ورته و. د بودا له نظره ژوند د فعل او انفعالاتو مادي او معنوي رشته ده چې خلک مدام په بدلون او تغیر کې ساتي.

یو بالغ سړی د ماشوم په څېر نه دی. نن زه هغه سړی نه یم چې پرون وم.
بودا به ویل، داسې څه نشته چې موږ ووایو (دا زما دي) یا (دا زه یم). پر
دې بنسټ نه بدلېدونکی (زه) په کار نه دی.

- خو! دا خبرې کټ مټ د هیوم د خبرو په څېر دي.

- (د نه بدلېدونکي زه) فکر په دوام کې، ډېرو عقل پالو فیلسوفانو د انسان
د روح نه فنا کېدل یو بدیهي څه وبلل.

- نو دا هم غلط تصور دی؟

- د بودا او هیوم له نظره هو! پوهېږې چې بودا تر مرګ مخکې خپلو
پیروانو ته څه وویل؟

- څه به پوه شم؟

- د ټولو مرکبو شیانو په ذات کې زوال موجود دی. خپله لار باید په خپله
هڅه او جدیت پیدا کړئ.

دا خبرې د هیوم یا دیموکریتوس هم کېدای شوای. هیوم د روح یا د
خدای د وجود د ثبوت والي په اثبات کې هر ډول هڅه مردوده ګڼله. د
دې خبرې معنا دا نه ده، چې دی له دې هر څه منکر و. بلکې د ده له نظره
د انساني عقل په وسیله د مذهبي ایمان ثابتول، زموږ د عقل ځانښودنه ده
او بې ګټې کار دی. هیوم مسیحیت نه مانه، خو د هغه سخت مخالف هم
نه و، دې ته موږ Agnostic وایو.

- یعنې څه؟

- Agnostic هغه څوک چې وایي د خدای شتون یا نشتون نه شو ثابتولی.

د هیوم ملګري د مرګ په بستر کې له هیوم پوښتنه وکړه:
تر مرګ وروسته پر ژوند باور لرې؟ خواب یې ورکړ: ډېری وخت یو
موټی سکاره په اور هم نه سوځي.

- صحیح!

- دا خواب یې د ټول لپاره روښانه فکر څرګندوي. ده یوازې هغه څه منل
چې درک کول یې او نورو امکاناتو ته یې د شک په سترګه کتل.

پر مسیحیت او معجزه یې ایمان نه رداوه، خو دواړه یې په ایمان پورې اړوند ګڼل، نه په عقل او معرفت پورې. ویلې شو چې د هیوم له فلسفې څخه د ایمان او پوهې وروستی اړیکه هم وشلېده.
- تاسو ویل معجزه یې نه ردوله؟
- ده هېڅکله ونه ویل، چې په معجزه باور لري، بلکې برعکس و. خو ډېر ټینګار یې کاوه چې خلک ظاهراً هغو شیانو ته سخته اړتیا لري، چې نن سبا ماورالطبعي پېښې بلل کیږي.
مطلب یې دا دی، د هغو معجزو داستانونه چې اورو یې، تولې یا په کومه لرې زمانه یا لرې ځای کې پېښې شوې دي. په حقیقت کې هیوم معجزې له دې امله ردولې چې ده په خپله نه وې تجربه کړې او تر څنګ یې، ځکه نه وې تجربه کړې چې د ده په وخت کې یې د پېښېدو امکان نه و.
- دا به راته واضح کړئ.
- هیوم ویل، معجزه د طبیعت له قوانینو څخه انحراف دی. همدارنګه دا هېڅ معنا نه لري، چې موږ ادعا وکړو، د طبیعت قوانین مو تجربه کړي دي.
زموږ له تجربې سره سم که تیره خوشې کړو، پر ځمکه لوېږي، خو که کومه ورځ ونه لوېده- نو هغه وخت به مو د هغه نه لوېدل هم تجربه کړي وي.
- زه دې ته معجزه وایم، یا تر طبیعت لوړ شی.
- نو ته باور لرې، چې دوه طبیعته شته دي. یو طبعي او بل فوق طبعي. داسې نه چې د عقل پالو دې وهمونو ستا لمن هم نیولې وي؟
- کېدای شي همداسې وي. خو زه په هر حال کې فکر کوم چې هر ځلې تیره خوشې کړم، پر ځمکه لوېږي.
- ولې؟
- اوس مې تو خوروې؟

.نه سوفي، نه دې خوروم. فیلسوف حق لري، چې تل پوښتنه وکړي
«ولې؟». اوس چې د هیوم د فلسفې اصل مطلب ته رسېږو، نو راته ووایه،
ولې داده يې چې تیږه تل پر ځمکه لوېږي؟
.دا مې دومره ډېر لیدلي چې بلکل پرې یقین لرم.
.د هیوم په وینا، ده پر ځمکه د تیږې لوېدل په وار وار تجربه کړي خو
هېڅکله يې دا نه دي تجربه کړي، چې تل دا تیږه څنګه پر ځمکه لوېږي.
معمولاً ویل کېږي، چې د ځمکې د جاذبې قوې له امله تیږه پر ځمکه
لوېږي، خو هېڅکله یې په خپله دا قانون نه دی تجربه کړی. زموږ تجربه
یوازې دا ده چې شیان پر ځمکه لوېږي.
-دا دواړه له یو بل سره توپیر لري؟
-بلکل! ته وایې باوري يې، چې تیږه پر ځمکه لوېږي ځکه دا پېښه دې په
وار وار لیدلې. هیوم هم عیناً همدا وایي.
نه همداسې عادت شوې يې، چې هر ځل دا دوه کارونه یو په بل پسې
وينې؛ نو تمه لرې چې که تیږه دې خوشې کړه باید همدا پېښ شي.
د طبیعت له بدلون نه منونکو قوانینو څخه موخه همدا مفهوم دی.
-یعنې هیوم په رښتیا دا تصور کاوه، چې ممکن تیږه پر ځمکه ونه لوېږي؟
-شک نشته. هغه هم ستا په اندازه باوري و، چې په هر ځل ازمویلو پر
ځمکه لوېږي، خو ده ټینګار کاوه، چې ده دا تجربه کړې، ځکه داسې څه
پېښېږي.
-یا له ګلانو او ماشومانو لېرې ولاړو.
-نه! برعکس. کولای شو، ماشومان د هیوم پر دعوا شاهدان وټاکو.
که یوه تیږه یو یا دوه ساعته له ځمکې پورته پاتې وي، ته به ډېره حیرانه
شې که یو کلن ماشوم؟
-ګومان کوم زه.
-ولې؟
-ځکه زه د ماشوم په پرتله ښه پوهېږم چې دا څومره غیرطبعي پېښه ده.

- ولې ماشوم فکر نه کوي چې دا غیر طبعي پېښه ده؟
- ځکه هغه لا تر اوسه نه پوهېږي چې طبیعت څنګه عمل کوي.
- یا ځکه چې له طبیعت سره نه دی عادت شوی.
- زما پام دی، چې بحث مو چېرته وغځاوه. هیوم غوښتل چې خلک خپله هوښیاري زیاته کړي.
- اوس یو بل تمرین کوو: که ته او یو کوچنی ماشوم کوم نندارتون ته ولاړ شئ او هلته شعبده باز ځینې شیان په هوا کې درولي وي، له تاسو دواړو به کوم یو ډېر حیران شئ؟
- زه.
- او ولې؟
- ځکه زه پوهېږم چې دا څومره ناممکن کار دی.
- نو د ماشوم لپاره د طبیعت له قانونه سرغړونه حیرانونکې نه ده، ځکه تر اوسه نه پوهېږي چې د طبیعت قوانین څه دي.
- سمه ده.
- موږ تر اوسه د هیوم د تجربې په فلسفه کې یو. او هیوم به حتماً وایي چې ماشوم له تمو سره نه دی عادت شوی. له دې امله یې فکر زما او ستا په پرتله ښه کار کوي. یو ماشوم به یو ښه فیلسوف هم وي، ځکه پرته له هر ډول وړاندوینې میدان ته دننه کېږي. ګرانې سوفي! د فیلسوف تر ټولو غوره ښېګڼه همدا ده.
ماشوم نړۍ لکه څنګه چې ده، درک کوي او هر څه د خپلې تجربې په محدوده کې ویني.
- که ما کومه وړاندوینه کړې وي، ښښنه غواړم.
- هیوم په خپل بحث کې د علیت قانون د عادت پر څواک ټینګار کوي، د دې قانون له مخې هر څه چې پېښېږي، یو علت لري. هیوم د مثال لپاره د بیلیارد له دوو توپونو څخه کار واخیست.

که یو تور توپ ورغړوو او د سپین ولاړ توپ سره ولګېږي، نو سپین توپ په څنګه شي؟

.تور توپ چې په سپین توپ ولګېږي، سپین توپ حرکت کوي.

.سمه ده او ولې داسې کېږي؟

.ځکه چې تور توپ په هغه لګېدلی.

.نو ویلی شو، چې د سپین توپ د حرکت علت، د تور توپ ضربه وه.

خو په یاد ولره، موږ یوازې د هغه څه په هکله خبرې کولای شو چې تجربه کړي مو دي.

.ما خپله دا څو څو ځلې ازمویلي. یووانا د خپل کور په تل خونه کې د بلیارد یو مېز لري.

.کېدای شي هیوم ووایي، هغه څه چې تا ازمویلي دا دي، چې سپین توپ پر مېز روانېږي، د توپ د حرکت واقعي علت دې نه دی تجربه کړی.

لیدلي دې دي، چې په یوه پېښه پسې بله پېښه رامنځته کېږي. خو دا چې دویمه پېښه د لومړی پېښې له امله ده، دا دې نه دي ازمویلي.

.دا د ډېرې وړې موضوع په هکله خبره نه ده؟

.نه، ډېره مهمه ده. هیوم ټینګار کوي، چې په یوه څه پسې د بل څه د راتلو تمه په هغه څه کې نه ده، بلکې زموږ په ذهن کې ده. موږ ولیدل، چې هره تمه، د یوه عادت پایله ده. اوس به د ماشوم مثال ته راوګرځو. که د بلیارد د توپ د ټکر پر وخت د بل توپ سره دواړه توپونه بې حرکته ولاړ وي، نو بیا به هم ماشوم حیران شوی نه وي. کله چې د «طبیعت له قوانینو» یا «علت او معلول» خبرې کوو، نو تر ډېره به مو خبرې په هغه څه وي چې تمه یې لرو، نه هغه څه چې «معقول» دي.

د طبیعت قوانین نه معقول دي او نه نامعقول. بلکې همدا دي چې دي.

نو له دې سره د سپین توپ د حرکت تمه له تور توپ سره ذاتي نه ده. کله چې موږ دې نړۍ ته راځو، نه د دې نړۍ د ځرنګوالي په هکله څه پوهېږي او نه د کړنو د ځرنګوالي په هکله معلومات لرو.

نړۍ همدا ده چې ده او دا هغه څه دي، چې موږ ورو ورو ورسره عادتېږو.
- زما په اند بیا له موضوع لرې کېږو.
- نه! داسې نه شي، چې زموږ ډېره تمه د بېړې سبب شي. هیوم د طبیعت له (نه بدلېدونکو قوانینو) څخه منکر نه و، خو ویل یې، چې موږ په هغه مرحله کې نه یو، چې طبعي قوانین تجربه کړو، نو په ډېرې آسانۍ به ناسمو پایلو ته ورسېږو.
- لکه څه؟
- لکه دا چې که ما یوه ډله تور اسونه لیدلي وي، نو فکر به کوم چې ټول اسونه به تور وي؟
- نه! البته چې نه.
- او دا چې ما ټول عمر تور کارغه لیدلي، دا دلیل نه شي کېدای چې سپین کارغه نشته. د فیلسوفانو او پوهانو لپاره مهمه دا ده، چې د سپین کارغه د پیدا کېدو امکان رد نه کړي. ویلای شو، چې د سپین کارغه به هکله څېړنه د علم مهمه دنده ده.
- هو، پوه شوم.
- د علت او معلول په هکله شاید ډېرې تصور وکړي چې تالنده د برېښنا معلول دی، ځکه تالنده تل په برېښنا پسې راځي. دا مثال په حقیقت کې د بیلیارد له توپونو سره ډېر توپیر لري، خو په رښتیا د تالنده علت برېښنا ده؟
- نه! ځکه تالنده او برېښنا په یوه وخت کې پېښېږي.
- تالنده او برېښنا دواړه د الکترونو د تولید پایله ده، نو دریم عامل دا دواړه رامنځته کوي.
- بلکل.
- زموږ د پېړۍ یو تجربه پال، برتراند راسل زړه بوږنوونکی مثال وړاندې کړی.

بـو چرګـوړی هـره ورځ بزګـره ښـځه وینـي چـې راځـي او ده تـه خـواړه ورکوي، نو یـوې پـایلې تـه رسیږي، چې د بزګـرې ښـځې راتـګ او پـه لوښـي کې د دانې اچول یوه علتي اړیکه ده.
- خو یوه ورځ چرګوړي ته خواړه نه رسیږي.
- نه! نر دې بد. یوه ورځ بزګره ښځه راځي او د چرګوړي سر پرې کوي.
- آه! څومره وحشت.
- پر دې ښسته، د پیښـو تکرارېـدل هـرو مـرو د علتـي اړیکـې د شتون پـه معنا نه ده.
د فلسـفې لـه مهمـو مسـایلو یـو هـم خلکـو تـه خـبرداری ورکـول دي، چـې پـه پایله اخیسـتو کـې بېـړه ونـه کـړي. کېـدای شي بېـړه د خرافـاتو او وهـم سـبب شي.
- څنګه؟
- تـوره پیشـو پـه کوڅـه کـې وینـې. بلـه ورځ پـر خمکـه لـوېږې او لاس دې ماتیږي. دا پـه دې معنـا نـه ده، چـې د دغـه دوو پیښـو تـر منـځ علتـي اړیکـه شته. په علومو کې دا ډېره مهمه ده چې باید بېړه ونه شي.
د بیلګې پـه توګـه دا چې خلـک لـه دارو خوړلـو وروسـته ښـه کېږي لامـل یـې دا نـه دی، چـې دارو شـفا ښښـونکي دي. لـه همـدې املـه ډېـره مهمـه ده، چـې یوه لویه ډلـه تـر څـارنې لانـدې ولـرو، هغـه ناروغـه ډلـه چـې ګومـان کـوي دارو خـوري، خـو پـه حقیقـت کـې دوی تـه لـه اوبـه او اوړو پرتـه بـل څـه نـه دي ورکـړل شـوي. کـه دا ناروغـان هـم ښـه شـول، دریـیم لامـل هـم دلتـه شـته دی. مثلاً د دارو په اغیزمنتیا او د هغه په شفابښونکي خاصیت ایمان لرل.
- ګومان کوم ورو ورو پوهیږم چې تجربه پالي څه ده.
- هیـوم د اخلاقیـاتو پـه برخـه کـې لـه تجربـه پـالنې سره مخالف و، تجربـه پـالو تـل ویـل، د انسـان ذاتـي عقـل د حـق او نـاحق د پېژنـدلو توانـایي لـري، د طبعي حق مفهـوم بـه مـو د ډېریـو فیلسـوفانو لـه خـولې - لـه سـقراطه نیـولې تـر لاک -

پـورې اوربـدلې وي. خـو د هیـوم پـه وینـا، عقـل زمـوږ خـبرې او کـردار نـه ټاکي.

- نو څه يې ټاکي؟

زمـور عواطـف. کـه دې وغوښـتل چـې لـه يـوه اړ کـس سره مرسـته وکـړې دا کار د احساساتو لپاره کوې، نه د عقل لپاره.

- خو که د مرستې په هکله بیخي فکر ونه کړم، بیا؟

- دا هـم پـه احساسـاتو پـورې تړلـې ده. لـه اړمنـو سره مرسـته نـه کـول، لـه عقـل سره کار نه لري، بلکې دا د مهربانۍ او شفقت مسئله ده.

- خو حتماً څـه اړيکـه بـه لـري. څـوک بـه وي چـې پـوه نـه شي، وژل خطا کار دی.

- د هیـوم پـه وینـا، هـر څـوک د نـورو د هوسـاینې لپـاره احسـاس لـري. مـوږ ټول د رحم او زړه سوي توان لرو او دا زموږ له عقل سره تړاو نه لري.

- زه دېره موافقه نه يم.

- دا لـه عقلـه لـېرې نـه ده سـوفي. د انسـان شر بایـد تـرې لـرې شي. کېـدای شي دا کار زموږ د ځانګړي مطلب په رسولو کې دېره ښه لار وي.

- څه؟ صبر؟ زه اعتراض لرم.

- ماته ووايه! ولې بايد شر اچونکی کس ونه وژل شي؟

- هغه هم غواړي ژوند وکړي، نو ځکه بايد ونه وژل شي.

- دا منطقي دلیل و.

- زه نه پوهېږم.

- تـا لـه يـوې توصـیفي جملـې (هغـه هـم غـواړي ژونـد وکـړي) پـه اصـطلاح جـواز لرونکـې پايلـه (نـو ځکـه بايـد ونـه وژل شي) واخيسـته. د عقـل لـه نظـره دا بې معنـا ده. دا داسـې ده لکـه چـې وايـې. ډېـر خلـک پـه مالیـاتو کـې درغلي کوي، نو ځکه زه هم بايد په خپلو مالیاتو کې درغلي وکړم.

هیوم ویل چې له «دی» جملې څخه هېڅکله نه شو کولی د «باید» جملې نتیجه واخلو. دا د ډېرو دود شوو کارونو له ډلې دی، په ځانګړې توګه د ورځپاڼو په مقالو، د سیاسي حزبونو په خپرونو او وینااوو کې.

بو څو مثالونه درکړم؟

ـ لطفاً.

ـ ډېر خلک لیوال دي، چې په الوتکه کې سفر وکړي، نو باید ډېر هوایي ډګرونه جوړ شي. ستا په نظر دا سمه پایله اخیستنه ده؟

ـ نه! دا بې معنا خبره ده. باید د چاپېریال په فکر کې وو، زما په نظر باید د رېل پټلۍ جوړې شي.

ـ او یا دا چې د نویو نفتي سیمو پراختیا لس سلنه د ژوند سطحه لوړوي، نو باید په ډېرې چټکۍ سره نویو نفتي سیمو ته پراختیا ورکړو.

ـ په بشپړه توګه نه. په دې برخه کې باید د چاپېریال په فکر واوسو. په هر حال، په ناروې کې د ژوند سطحه په کافي توګه لوړه ده.

ـ کله ویل کېږي چې دا قانون د سنا مجلس تصویب کړی، نو د هېواد ټول اوسېدونکي باید له هغه پیروي وکړي، خو له داسې موازینو څخه پیروي کول د خلکو د عقیدې او ایمان پر خلاف دي.

ـ هو، دا منم.

ـ نو دې پایلې ته رسېږو چې عقل د خپلو کړنو معیار نه شو ګرځولی. با مسوولیته کړنې د عقل په استحکام پورې اړه نه لري، بلکې دا د نورو د هوساینې لپاره زموږ د احساساتو په پراختیا پورې اړه لري.

هیوم ویل، که زه دا ښه وګڼم چې ټوله نړۍ دې ورانه شي، چې زما ګوته خوږ نه شي، نو دا له عقله لېرې نه ده.

ـ دا خواشینوونکې خبره ده.

ـ خو خواشینوونکې خبره به دا وي، چې له موضوع لرې لاړ شو. پوهېږې چې نازیانو په میلیونونه یهودیان ووژل. ستا په نظر د نازیانو عقل ناقص و؟ که بې عاطفي حیات نیمګړی و؟

- فکر کوم احساسات يې خطا وو.

- د دوی دېرې، بې اندازې هوښيار وو، د بې رحمانه پرېکړو پر وړاندې خان غلی نيول له معمولو لېرې خبره نه ده. تر جګړې وروسته ډېر شمېر دا نازيان په محکمه کې محکوم شول، خو د دوی محکوميت د (بې عقلۍ) لپاره نه و، بلکې دوی ځکه محکوم شول چې ډېر خطرناکه سرې وژونکي وو. ناقص العقله کسان بنايي له جنايت څخه برائت حاصل کړي، موږ وايو (دوی د خپلو اعمالو مسوول نه دي). خو تر اوسه هېڅ د خپلې بې احساسۍ له امله د جنايت له کولو برائت نه دی تر لاسه کړی.

- دا د شکر ځای دی.

- اړينه نه ده چې، زړه بوږنوونکي مثالونه ياد کړو. که د سېلاب راتګ په ميليونه کسان بې کوره کړي، زموږ احساسات موږ مجبوروي، چې له دې غمځپلو خلکو سره مرسته وکړو. خو که سخت زړي کسان وو، خپله پرېکړه (بې احساسه عقل) ته پرېږدو، له ځانه سره به وايو، په دې لويه نړۍ کې، چې جمعيت ورځ تر بلې مخ په زياتېدو دی، که يو څو ميليونه کسان يې مړه شول نو څه کېږي، پروا نه لري.

- ستاسو له لوري حتی دا شان تصور هم زما وينه ايشوي.

- او پام دې وي، چې ستا احساسات دې وينه ايشوي نه عقل.

- سمه ده، پوه شوم.

# بارکلي

## د قومندانانه سیارې په څېر، تر سوزوولکي لمر چاپېره

آلبرتو کړکۍ ته ودرېد. د ښار لور ته یې کتل. سوفي هم پسې ورغله. دواړه ولاړ وو او زړو کورونو ته یې کتل. پر بامونو یوه الوتکه راښکاره شوه، د الوتکې پر لکۍ یوه اوږده ټوټه راځوړنده وه.

سوفي گومان وکړ، چې کوم سوداگریز یا د سیمه ییزې پېښې اعلان به وي او یا ښایي د کوم موسیقي ،کنسرت خبرتیا؛ خو کله چې الوتکه نږدې شوه او راوگرځېده، نجلۍ یو بلکل حیرانوونکی پیغام پرې ولوست:

میلادې، کلیزه دې مبارک شه!

آلبرتو یوازې دومره وویل: همېشني مزاحم.

د گرد ښار د جنوبي غونډۍ پر سر تورې او درنې ورېځې راخې او کوچنۍ الوتکه یې په منځ کې ورکېږي.

آلبرتو وویل: داسې ښکاري لکه هوا چې توپاني کېدونکې ده.

-باید په بس موټر کې کورته ولاړه شم.

-هیله لرم چې قومندان په دې کې لاس ونه لري.

-نو هغه خدای دی، هن؟

آلبرتو ځواب ورنه کړ، د کوټې بلې خواته لاړ او بیا د کوچني میز تر څنگ کېناست. خو شېبې وروسته یې وویل: باید د بارکلي په هکله خبرې وکړو.

سوفي لړ ورانديې پر خپل ځای کېناسته، ناڅاپه یې پام شو، چې خپل نوکان خوري.

آلبرتو خبرې پیل کړې:

-جورج بارکلي د ایرلنډ و او له ۱۶۸۵ څخه تر ۱۸۵۳ پورې ژوندی و.

څه شېبه غلی و. سوفي هڅه وکړه چې بیا یې په خبرو راولي: تا ویل، بارکلي د ایرلنډ و...

- فیلسوف هم و.
- بنه ؟
- بارکلي فکر کاوه چې د ده د زماني فلسفه او علوم د مسیحي ژوند د لارې او رسم لپاره یو خطر دی. تر دې لا بده دا چې دا علوم یې د شته ماده پالنې، د مسیحیت پر خدای د ایمان او د ټول طبیعت د پیدا کوونکي او ساتونکي خدای پر وړاندې ګواښ پاروونکي بلل.
- بنه ؟
- نو له دې امله بارکلي د تجربه پالو له ډلې ترټولو ډېر مبارز و.
- یعنې هغه پر دې هم باوري وو، موږ په دې نړۍ کې، تر هغه څه پرته، چې د حواسو په وسیله یې درک کوو، په بل څه نه شو پوهېدای.
- تر دې لا زیات. بارکلي ادعا کوله، چې دنیوي شیان په رښتیا هماغه څه دي، چې موږ یې درک کوو، خو دا (شی) نه دي.
- باید دا راته واضح کړې.
- په یاد دې دي چې لاک وویل موږ د شیانو د ثانویه کیفیتونو په هکله نظر نه شو څرګندولی؛ داسې نه شو ویلی، چې شنه یا تروشه منه، یوازې دومره ویلی شو، چې له دې منې مو درک داسې څه دی.
خو د لاک په وینا، اولیه کیفیتونه لکه: غلظت، جاذبه او وزن په حقیقت کې زموږ پر بهرنۍ هستی پورې تعلق لري. او (بهرنۍ هستي، مادي جوهر دی).
- په یاد مې دي او فکر کوم د لاک دا وېشنه ډېره مهمه وه.
- هو سوفي. خو افسوس چې موضوع په همدې ځای ختمه نه شوه.
- ادامه ورکړئ.
- لاک د دکارت او سپینوزا په څېر باور درلود چې د مادي هستی عالم، واقعي دی.
- بنه ؟

-او دا هغه څه وو چې بارکلي تر پوښتنې لاندې ونیول. دا کار یې د تجربه
پالنې له منطق سره سم ترسره کړ. ده وویل، یوازې هغه شیان موجود دي
چې د حواسو په مرسته درک کېږي. له څیزونو څخه زموږ ادراک د
ملموسو شیانو په توګه نه دی.

که موږ ګومان وکړو، هر څه چې په یوه حس سره درک کېږي په خپل
کې پټ جوهر لري. نو دا به بې فکره تو پیر وي. هیڅ تجربي دلیل د دې
ډول ادعا لپاره په واک کې نه لرو.

-څه احمقانه خبره. دا وګوره.

مېز یې کلک په سوک وواهه او ویې وویل: اخ!

زیانه یې کړه: دا همدا نه ثابتوي چې دا په رښتیا مېز دی، له مادې او
مادیت څخه جوړ شوی.

-کله دې چې مېز په سوک وواهه، څه شی دې حس کړل؟

-کلک شی.

-کلک شی دې احساس کړ. خو د مېز دننه ماده دې احساس نه کړه. دا
کټ مټ لکه خوب چې وینې. سوک وهې خو په خوب کې کوم کلک
شی نشته، شته؟

-په خوب کې، نه.

-همدا ډول ممکنه ده، چې انسان هیپنوتیزم شي او په دې حال کې څینې
شیان لکه تودوخه او یخ یا ضربه او نوازش حس کړي.

-خو که مېز په رښتیا کلک نه و، نو ولې یې ما کلک والی حس کړ.

-بارکلي پر (روح) معتقد و. ده ویل: زموږ ټول تصورات زموږ په پوهېدو
کې یو علت لري او دا علت مادي نه دی، معنوي دی.

سوفي بیا د خپلو نوکانو په خوړولو پیل کړی و.

آلبرتو یې خبره وغځوله، د بارکلي په نظر، زما روح - مثلاً کله چې زه
خوب وینم - زما د تصوراتو علت دی، خو د هغو تصوراتو علت چې
مادي نړۍ یې جوړه کړې ده، اراده یا کوم بل روح.

هر څه له روح څخه دي، هغه روح، چې په هر څه کې د هر څه علت دی او د ټولو شیانو تضمینوونکی دی.
- مقصد يې کوم روح و؟
- بارکلي د خدای په هکله فکر کاوه، ویل یې: موږ دا ادعا کولای شو چې د خدای د وجود په هکله زموږ حسي- درک؛ د انسان د وجود په هکله زموږ د حسي درک په پرتله ډېر روښانه دی.
- نو ان زموږ وجود هم کامل نه دی؟
- هو او نه. بارکلي وویل: هر څه چې وينو او احساس کوو يې، د خدای د قدرت اغېز دی. څکه خدای زموږ له ذهنه هم موږ ته ډېر نږدې دی او ګڼ شمېر تصورات او ادراکات چې زموږ مغز ته راځي، رامنځته کوي. زموږ چاپېره نړۍ او ټول حيات د خدای په وجود کې دی. خدای د هر څيز د شتون يوازېنی علت دی. موږ يوازې د خدای په نفس کې موجود يو.
- زه لږ څه حيرانه يم.
- يوازې (شتون او نشتون) ټوله مسئله نه ده، مسئله دا هم ده چې موږ څوک يو؟ موږ په رښتيا د بشر- موجود او يو موټی هډوکي او پوستکي يو؟ زموږ نړۍ له واقعي شيانو جوړه ده، يا ټول شيان زموږ د ذهن جوړونه او سمونه ده؟
سوفي لاهم خپل نوکان چيچل.
آلبرتو ادامه ورکړه: بارکلي يوازې مادي هستي تر پوښتنې لاندې ونه نيوه، بلکې د زمان او مکان په مستقل يا مطلق شتون يې هم شک درلود. له زمان او مکان زموږ حسي- ادراک صرف د ذهن يو وهم کېدای شي. زموږ يوه يا دوې اونۍ، هرومرو د خدای يوه يا دوې اونۍ نه دي.
- تاسو وويل، د بارکلي په نظر د ټولو شيانو روح، د مسيحي خدای روح ده.
- هو، همداسې څه يې ويل، خو زموږ لپاره.

- زموږ لپاره؟
- زموږ لپاره. زما او ستا لپاره- دا (اراده یا روح) چې (په هر څه کې د هر څه)- علت دی، کېدای شي د هیلډې پلار وي.
د سوفي سترګې له ډېرې حیرانی زدې شوې، ورسره سم یې نوی فهم او ادراک ذهن ته ورغی.
- تاسو داسې فکر کوئ؟
- بل امکان مې فکر ته را نه غی. دا به د ټولو هغو بلاوو لپاره یوازېنی د منلو وړ توضیح وي، چې پر موږ راغلې. ټول هغه پُستي کارتونه او نښې چې دلته او هلته ورسره مخ کېږو، د هرمس خبرې کول، بې اختیاره زما د ژبې اوښتل.
- زما...
- نه تصور وکړه هیلډې، ما تاته سوفي وویل. زه تل پوهېدم چې ستا نوم سوفي نه دی.
- څه وایې؟ بیا ګډوډې وایې؟
- هو لورې! زما مغز ګرد څرخېدلی، د هغې قومندانانه سیارې په څېر چې تر سوزوونکي لمر چاپېره ګرځي.
- او هغه لمر د هیلډې پلار دی؟
- شک یې نشته.
- غواړې ووایې چې هغه زموږ لپاره یو ډول خدای دی؟
- هو او باید په خپلو کړنو وشرمېږي.
- په خپله هیلده څه؟
- هغه پرښته ده سوفي.
- پرښته؟
- هیلده د دې (روح) قبله ده.
- مطلب دې دا دی چې آلبرټ کناګ زموږ خبرې هیلډې ته وایي؟
- او یا یې ورته لیکي، ځکه موږ نه شو کولای هغه ماده، چې زموږ هستي یې جوړه کړې درک کړو. تر دې ځایه همدومره پوهېدلي یو.

موږ نه شو پوهېدای چې زموږ بهرنۍ هستي د غږ له امواجو جوړې شوې ده، که له کاغذ او لیکلو. د بارکلي په وینا، یوازېنۍ شی چې موږ پرې پوهېدای شو دا دی چې موږ روح یو.

- او هیلده پرښته ده...

- هو هیلده پرښته ده او پرېږده چې وروستي کلام مو همدا وي، هیلدې کلیزه دې مبارک شه.

ناڅاپه آبي رنګې رڼا تولــه کوټــه ونیــوه. شېبه وروسته د تندر د لګېدو غږ واورېدل شو او ټول کور ولړزېد.

سوفي وویل: زه باید لاړه شم

پاڅېده او د دروازې خواته یې منډې کړې. دروازه یې چې خلاصه کړه، هرمس په لاره کې له خوبه پاڅېد او نجلۍ داسې ګومان وکړ لکه سې چې وایي: (د بیا لیدو په هیله هیلدې)

سوفي په بېړه له زینو ښکته شوه او په سړک یې منډې وهلې. مرغه وزرې وهي او باران د اس د لکۍ غوندې اوري. یو دوه کوچني موټرونه یې له مخې تېر شول، خو بس هېڅ نه و.

سوفي له لوی میدانه په منډه منډه تېره شوه او د ښار د سړک خواته روانه وه. د منډې په حال کې یې یو فکر په ذهن کې ګرځېده. سبا زما د زېږېدو ورځ ده، څومره سخته ده، انسان یوه ورځ مخکې تر خپلې پنځلس کلنۍ پوه شي چې ژوند یو خوب دی.

لکه څوک چې خوب ویني یو میلیون یې ګټلې، خو چې د پیسو اخیستو وخت راځي، له خوب راویښېږي.

د لوبې میدان تش او غلی و، سوفي له هغه هم تېره شوه. څو دقیقې وروسته یې ولیدل چې کوم څوک یې خواته په منډه را روان دي، مور یې وه.

په آسمان کې د تالنده او برېښنا، غږ او رڼا پرله پسې خپرېدل.

- لورې! پر موږ څه بلا راغلې؟

سوفي په ژړا وویل: نه پوهېږم، لکه چې وېروونکی خوب دی.

# برکلي

**...هغه زړه جادويي هېنداره چې د نيکه مور مې له کولي ښځې اخيستې وه...**

هيلده مولرکناګ د ليلــه ســن د زاړه کــور پــه کوټــه کــې ناڅاپــه لــه خوبــه پاڅېده، ساعت تـه يـې وکتـل، د سهار شپږ بجې وې، خو هوا روښانه شوې وه، د سهارني لمر وړانګې کوټې ته راغلې وې.

د خوب لـه کتـه راښـکته شـوه، د کړکـۍ خواتـه لاړه او د ليکلو د مېز ترڅنګ ودرېـده. د جنـترۍ يـوه پاڼـه يـې څېـرې کـړه. پنجشـنبه، د جـون ۱۴، ۱۹۹۰کـال. کاغـذ يـې پـه مـوټي کـې غونـډ کـړ او د خځلـو سـطل تـه يـې واچاوه.

د نـن ورځـې جنـترۍ، جمعـه، د جـون ۱۵، ۱۹۹۰کـال ښـه ښـوده. وختونـه مخکې د جون مياشـتې پـر دې پاڼـه ليکـل شـوي وو: (د پـنځلس کلنـۍ کليـزه دې مبارک شه!)

د هغې پـه نظـر د مياشـتې پـه پنځلسـمه، د پـنځلس کلنـۍ کليـزه، ډېـره ځانګړې پېښه وه. ييا به هېڅکله داسې څه پېښ نه شي.

پـنځلس کلنـي! نـن د هغـې د بلـوغ لـومړۍ ورځ ده. پـه داسـې ورځ، نـور تـر دې زيـات بايـد د خـوب پـر کـټ پـاتې نـه شي. همدارنګـه، نـن د ښـوونځي وروسـتۍ ورځ او د اوړي د رخصـتيو پيـل و. زده کـوونکي بايـد پـه يـوه بجـه په کليسا کې واى، پلار يې هم تر يوې بلې اونۍ له لبنانه راتلونکی دی.

هيلده د کړکـۍ ترڅنـګ ودرېـده، بهـر بـاغ او د واړه سيند کوچنيو سور رنګـه کېښـتيو تـه يـې کتـل. د اوړي لپـاره يـې د کېښـتيو ماشـين لا نـه و راوړى، خـو پخوانۍ پـارويي وړې کېښـتۍ پـه رسيو تـړل شوې وې. د تېرې شـپې تـر بـاران وروسـته کېښـتۍ لـه اوبـو ډکـې وې. بايـد پـه يـاد يـې واى، چـې اوبـه يـې تـرې تشې کړې واى.

بيا يې سيند تـه وکتـل، هغـه شـېبه وريـاده شـوه، چـې کـوچنۍ شپږ کلنې نجلۍ ځـان د وړې کېښـتۍ تـر ژۍ ورسـاوه، پـارو يـې وواهـه او پـه يـوازې ځـان د

سیند منځ ته ولاړه. بیا په اوبو کې ولوېده، په ډېر زحمت یې ځان تر ساحله ورساوه. سر تر پښو لمده وه، د ګنو وښو په منځ کې وړانډې ولاړه او د خپل کور لاره یې ومونده.

همداسې یې باغ ته سترګې نیولې وې، ولاړه وه، مور یې خواته راغله. خو وړه کیښتۍ او پاروګان لاهم د اوبو په منځ کې وو. تر اوسه به یې څینې وخت د کیښتۍ خوب لیده.

خپل ځان په اوبو کې قومندانانه او یوازې لیدل، یوه ناراموونکې تجربه وه.

د دوی باغ نه دومره شین و، نه منظم، خو لوی و او ټول د هیلدې په واک کې و. د منو ونو او څو بې ثمرو نیالګیو د ژمي د شدیدو توپانونو پر وړاندې مقاومت کړی و. د دوی د باغ په منځ کې زړې اوږدې ډېرې هم کارول شوې وې، چې په سهارنۍ رڼا کې ډېرې ځلېدې. په تېره چې توشکچې یې هم ترې کوټې ته وړې وې، تېره شپه ناوخته یې مور هغه له بارانه را ټولې کړې وې.

تر لوی باغ یو ډول ځانګړې ونې چاپېرې وې، چې په ناروېژي ژبه ورته (برکه تریر) وایي. دې ونو، تر ډېره کورونه له باد او بارانه خوندي ساتلي وو. د همدې ونو له وجې د سلو کلونو پخوا کور برکلي نومول شوی و.

د هیلدې د نیکه پلار، د اوسني پېړۍ له پیلېدو څو کاله مخکې یو کور جوړ کړی و، هغه د وروستي لوړې بادي کیښتۍ جوړوونکی هم و. ډېری خلک لا تراوسه هغه ځای ته د کیښتۍ جوړوونکي کور وایي.

تېره شپه ناڅاپه شدید باران وشو، نښې نښانې یې نن سهار په باغ کې تر سترګو کېږي. د تالنده غږ څو ځلې هیلده له خوبه را ویښه کړه، خو نن هیڅ وریځې په آسمان کې نشته. د اوړي هوا تر دې ډول توپان وروسته څومره ښکلې کېږي. څو اونۍ کېدې چې هوا ډېره وچه او ګرمه وه، د باغ د ونو سرونه هم ژېړ شوي وو. اوس داسې ده لکه ټوله نړۍ چې نوې

مینځل شوې وي، ته به وایې چې توپان یې له ځانه سره ماشومتوب هم

وړی.

- آه کله چې د پسرلي غوټۍ غوړېږي...

سوبلډني که فنلنډي شاعر و، چې دې ته ورته څه یې ویلي وو؟

د انا د سینګار د پخواني مېز د پاسه، یوه درنه برنزي هېنداره پر دېوال
خوړنده وه. هیلده مخامخ هغې ته ودرېده، ښکلې ده؟ په هر حال، بدرنګه
هم نه ده، د ښکلي او بدرنګ تر منځ به وي.

وېښتان یې اوږده او بور (نسواري) وو. دې هر وخت غوښتل چې درېغه
وېښتان یې لږ نور هم بور وای یا لږ تیاره رنګ یې وای، دېرو دوستانو به
یې خپل وېښتان لږ څه حلقه کول خو د هیلدې وېښتان په طبعي حالت
پېچلي وو. په مخ کې یې یو بل ښه والی، د هغې ښکلې شنې سترګې وې.
ترونو او عمه ګانې به یې چې کله سترګو ته ښه ځیر شول نو ویل به یې: په
رښتیا شنې دي؟

هیلده د هېنداري دننه تصویر ته ځیر شوه، خو ووینې چې په هغې کې د
نجلۍ څېره ښکاري، که د یوې خوانې ښځې.

په نظر یې یوه هم ورنغله، اندام یې ممکن بلکل د ښځوغوندې شوی وي.
خو څېره یې نوې تازه منې ته ورته وه. دې پخوانۍ هېنداري به تل هغې
ته پلار ور یاداوه. یو وخت به په کارځای کې ځوړنده وه. کارځای د
کوچنیو کیښتیو مخې ته و. دا کارځای هم د پلار کتابتون و، هم د یو څه
لیکلو چاپېریال او هم د یوازېتوب لپاره ګوښه ځای.

د هیلدې پلار به چې په کور کې و، هیلدې به آلبرت باله. آلبرت تل
غوښتل چې سم څه ولیکي. یو وخت یې هڅه کړې وه، چې رومان
ولیکي خو هېڅکله یې هغه پای ته ونه رساو. د اسکاندنوي تاپو په هکله
به کله کله د ده خو کرښې شعر یا شرح او تفصیل د هېواد په ورځپاڼو کې
خپرېده.

آلبرت کناګ نوم چاپ شوی ولید، پر ځان به یې
هیلدې به چې هر کله د آلبرت ارزښت درلود. د پلار د
کې لږ څه ارزښت درلود. د پلار ر
وبار کاوه؛ دې موضوع په لیله سن کې لږ
نیکه نوم یې هم آلبرت و.
پلار خپل سر د هیلدې پر سر ایښی و او
خو هنداره. کلونه مخکې یې پلار خپل سر د هیلدې پر سر ایښی و او
ورته یې ویلي وو، چې هېڅکله به په دواړو ترلو سترګو په هنداره کې
ځان ته سترګک ونه شي وهلی، مګر پرته په هغې جادویي هنداري کې
چې د نیکه مور یې له خپل خاوند وروسته، له کولي ښځې اخیستې وه.
هیلدې د کلونو په ترڅ کې څو ځلې دا ازمویلې وه، خو ځان ته په پټو
سترګو سترګک وهل داسې دي لکه انسان چې منډې وهي او غواړي له
خپل سیوري وتښتي.
په پای کې دا پخوانی پلرنی میراث دې ته رسېدلی و. د کلونو په ترڅ کې
یې کله کله هڅه کړې وه، چې دا ناممکن هنر به تر لاسه کړي.
نن سخته په فکر کې وه او دا کوم عجیب څه نه وو. پنځلس کلنه کېده او
طبعي وه، چې د ځان په هکله فکر وکړي. سترګې یې د تخت تر څنګ
پر مېز ولګېدې. بوه لویه بسته یې پر مېز ولیده، چې ښکلی آبي رنګ یې
درلود. پر شاوخوا یې سره وربښمنې فیته را تاو وه. هرو مرو د کلیزې ډالۍ
ده.
کېدای شي داسې ډالۍ وي چې د خلاصولو اجازه یې نه وي. د پلار لویه
او مهمه ډالۍ دومره له اسرارو ډکه وه؟ هغه کارتونه چې له لبنانه را استول
شوي وو، ډېر په رمز او راز لیکل شوي وو، مثلاً لیکلي وو: (ځان سخت
هېروم.)
دا هغه څه دي چې پرله پسې (لوېېږي او لوېېږي) وروسته یې د یوې
نجلۍ یادونه کړې، چې هیلده به ډېر ژر له هغې سره آشنا شي. او د ټولو
کارتونو نسخې یې هغې نجلۍ ته هم استولې دي. هیلدې هڅه وکړه چې
په دې هکله له خپلې مور څه واوري، خو هغه هم نه پوهېده چې د پلار
مقصد یې څه دی.

د پلار تـر ټولـو عجيبـه کنايـه يـې دا وه چـې شـايد دا ډالـی (نـورو تـه هـم ورکړل شي).

څه نه وه، چې ملګرو ملتونو ته کار کوي، پلار يې ډېر عجيب او نوي غريب افکار درلودل، خو د دې ټولو افکارو موخه دا وه، چې ملګري ملتونه بايد يو ډول نړيوال دولت شي. په يوه کارت کې يې ليکلي وو:

هيله ده چې ملګري ملتونه يوه ورځ ټول بشريت سره يو کړي.

خو مخکې تر دې چې مور يې له کيک، ناروې بيرغ او د (کليزه دې مبارک) له سندرې سره کوټې ته راننوځي، اجازه لري چې ډالی خلاصه کړي؟ که يې نه لرلای نو هغه به يې د تخت تر څنګ نه وای ايښې. ورو د تخت خواته ورغله او ډالی يې را واخيسته، درنه وه، يادښت يې هم پرې وليد، چې ليکلي وو: (د پلار لخوا د هيلدې د پنځلس کلنۍ کليزې په وياړ).

د کڅ پر ژی کښناسته او په آرامه يې د ډالی سره فيته را خلاصه کړه. بيا يې آبي کاغذ هم خلاص کړ، يود لوبو ډبلی يې په منځ کې و.

دا يې د کليزې ډالی وه؟ همدا د پنځلس کلنۍ هغه ډالی وه، چې پلار يې په هکله دومره تفيصل ورکړی و؟ هغه ډالی چې (لوېږي او لوېږي) او نور هم بايد له هغې برخمن شوي وای.

په يوه نظر پوه شوه، چې ډبلی له ليکل شويو پاڼو ډک دی او پر هغه ټايپي ماشين ليکل شوي توري يې وپېژندل چې پلار يې له خانه سره لبنان ته وړی و.

يعنې پلار يې دې ته يو بشپړ کتاب ليکلی؟

په لومړي مخ کې يې په لاس ليکل شوي لوی توري ولوستل: (د سوفي نړۍ)

په همدې مخ کې لږ ښکته دوه کرښې شعر ټايپ شوی و:

**د انسان لپاره حقيقي ښکاره ليدنه**

**د خاورې لپاره د لمر په څېر ده**

هیلدې پاڼه واړوله، د لومړي څپرکي پیل ته یې وکتل، د څپرکي عنوان (د عدن بڼ) و.
خپل تخت ته ولاړه او آرامه کېناسته، ډالۍ یې پر دواړو زنګونو کېښوده او په لوستو یې پیل وکړ.
*سوفي آموندسن له ښوونځي څخه کور ته تله، تر لېرلارې له یووانا سره راغلې وه. دوی دواړو د ماشیني انسانانو په هکله خبرې کړې وې. یووانا په دې باور وه چې د انسان مغز د پرمختللي کمپیوټر په څېر دی، خو سوفي دومره داده نه وه. آیا انسان تر ماشیني توکو مخکې دی؟*
هیلدې لوستل او لوستل. هر څه یې هېر شوي وو، ان په یاد یې نه وو چې نن یې د کلیزې ورځ ده، کله کله یې د ځینو کرښو تر منځ ذهن ته یو فکر ورتلو: پلار یې کتاب لیکلی؟ آخر یې خپل مهم رومان بشپړ کړی، هغه یې په لبنان کې پای ته رسولی؟ ده به ډېری وخت شکایت کاوه، چې د نړۍ په هغې برخه کې وخت په ډېرې سختۍ تېرېږي.
د سوفي پلار هم له هېواده لېرې و. کومه نجلۍ چې له دې سره آشنا کېدونکې ده شاید همدا سوفي وي...
*یوازې د دې ژور تصور په احساس، چې یوه ورځ به مرې، ویې کولای شول چې د خپل ژوندون په قدر پوه شي... نړۍ له کومه شوې؟ باید له کوم هېڅ شي پیدا شوې وي. خو دا ممکنه ده؟ دا ناممکن. بلکل د نړۍ د دایمي شتون د ګومان په اندازه ناممکن نه دی؟*
هیلدې لوستو ته دوام ورکړ. په حیرانۍ یې ولوستل چې سوفي آموندسن ته له لبنانه کارتونه راغلي: (هیلده مولرکناګ، د سوفي آموندسن له خوا، ۳مه شمېره، کلوور کوڅه...)
*ګرانې هیلدې! د پنځلس کلنۍ کلیزې مبارکي درته وایم. زه باور لرم چې ته پوهېږې، غواړم داسې ډالۍ درکړم چې په وده کې دې مرسته کوي. وبښه چې ستا کارتونه د سوفي له لارې در استوم. دا تر ټولو آسانه لاره وه.*

پلار دې در نه څار
پلار يې وران کاري دي، خو نن يې هغه په رښتيا حيرانه
ډيله پوهېده چې پر څاى چې د مبارکي کارتونه له ډالي سره کېږدي، هغه
کېږي وه. د دې
د کتاب په متن کې ليکلي وو.
بې
خو بېچاره سوفي! هغه نجلۍ به ضرور ګنګسه شوې وي.
بو پلار ولې بايد د خپلې لور د کليزې د مبارکۍ کارټ د سوفي په پته
واستوي، حال دا چې مقصد بيخي بل چېرې دی؟ دا څنګه پلار دی چې
خپله لور تېره باسي او د لور د کليزې د مبارکۍ کارټ بل ځاى استوي؟ دا
څنګه آسانه لاره کېداى شي؟ او تر ټولو مهمه، هيلده به دا نجلۍ له کومه
ځايه پيدا کوي؟ واقعاً له کومه ځايه؟
بو دوې پاڼې يې واړولې، دويم څپرکي (د مداري باز خولۍ) ته ورسېده
او اوږد ليک چې يوه ناپېژاند کس سوفي ته ليکلی و.
د دې پوهېدو ته لېوالتيا چې موږ څوک يو، د ليکونو د کوچنيو نښو د
راټولولو په څېر کوم تصادفي امر نه دی. د دې مطلب څېړونکي په هغه
بحث کې ګډون کوي چې د ځمکې پر مخ د بشر له پيداينبته را پيل
شوی.
(د سوفي توان ختم شوی و.) د هيلدې هم. پلار يې دا کتاب نه يوازې د
هغې د پنځلس کلنۍ کليزې لپاره ليکلی و بلکې جالب او هېښوونکی
کتاب هم و.
لنډيز يې وايم: د مداري له خولۍ سپينه سويه راوځي، چې دا سويه ډېره
لويه ده. دا مداري ګري په ميلياردونه کلونه وخت نيسي ـ انسان د دې
سويې د نازک وېښته په څوکه نرۍ ته سترګې را پرانيستې؛ له همدې کبله
له دې ېېښې څخه حيران دي، خو ورو ورو يې چې عمر زياتېږي، د
وېښته له څوکې نښکته څي، نښکته څي او همالته پاتې کېږي.
يوازې سوفي نه وه چې احساس يې کاوه، د سويې د وېښتانو تر منځ ځانته
ارام ځاى لټوي. نن د هيلدې د پنځلس کلنۍ کليزه وه. هغې هم احساس

کاوه، چې اوس د دې پربکړې وخت را رسېدلی چې پر کومه لار لاړه شي.

د یونان د طبعي فیلسوفانو داستان یې ولوست. هیلده پوهېده چې پلار یې له فلسفې سره علاقه لري. ده ورځپاڼې ته یوه مقاله لیکلې وه او په هغه کې یې وړاندیز کړی و، چې فلسفه دې د ښوونځیو په درسونو کې ځای شي. د مقالې عنوان دا و: (ولې باید فلسفې ته د ښوونځیو په درسونو کې ځای ورکړل شي). دا موضوع ان د انجمن په غونډه او د هیلدې په ټولګي کې هم یاده شوې وه. هیلده په رښتیا خجالت شوې وه.

ساعت ته یې وکتل، اووه نیمې وې. ښايي نیم ساعت پاتې و، چې مور یې سهارنۍ په لاس، په زینو کې را پورته شي. اوسمهال هیلده سخته د سوفي او فلسفې په مهمو مسایلو کې راګیر وه. دموکریتوس څېرکې ته ورسېده. سوفي لومړی یوه پوښتنه ومونده چې په اړه یې فکر وکړي:

ولې لېګو په نړۍ کې د لوبو تر ټولو څیرک څیز دی؟وروسته یې په پُستي بکس کې غټ خړ رنګه پاکټ پیدا کړ.

*دموکریتوس او تر ده پخوانیو ویل، د طبیعت بدلونونه له دې کبله نه دي، چې څیزونه په رښتیا بدلون کوي. د دې فکر پر بنسټ څیزونه له تلپاتې او نه بدلېدونکو نامرئي ټوټو څخه جوړ شوي. دموکریتوس دا بې حده واړه واحدونه اتوم ویلل.*

کله چې سوفي د خپلې غاړې سور وربښمني شال تر تخت لاندې پیدا کړ، هیلده حیرانه شوه. نو د غاړې شال یې هلته پیدا شو! څنګه شوني ده، چې د غاړې صاف او ساده شال ورک شي او بیا په داستان کې یې یادونه وشي؟ باید یو چیرې خو وي...

بل څپرکی د سقراط په اړه و، چې په ورځپاڼه کې له (یو څه په لبنان کې د ملګرو ملتونو د ناروېژي بدلون په اړه) عنوان سره پیلېدو. دا یې ضرور د پلار کار دی. پلار یې سخت اندېښمن و، چې د ناروې خلک د سولې راوستلو لپاره د ملګرو ملتونو نقش ته پوره لېوالتیا نه لري. اوس چې داسې

ده ته سوفي بايد ليوالتيا وښيي، نو له همدې کبله دا موضوع په خپل داستان کې راوړي او د ډله ييزو رسنيو پام خانته را اړوي.

کله چې هيلدې، سوفي ته د فيلسوف ليک ولوست نو خندا ورغله:

*که دې کوم چېرې د غاړې سور وربښمنې شال پيدا کړ نو لطفاً ويې ساته. خيني وخت د انسان شخصي-شيان تري تم شي، په تېره بيا په ښوونځي او داسې نورو ځايونو کې او دا د فلسفې ښوونځی دی.*

هيلدې په زينو کې د خپلې مور د پښو غږ واورېد، دا شيبه يې نوې د هغې برخې لوستل پيل کړي وو، چې سوفي په خپل پټنځي کې د آلبرټ ويډيو پيدا کړې وه.

مور يې د زينو په نيم کې د (کليزه دې مبارک شه) ويل پيل کړل. په دې منځ کې د فلسفې ښوونکي مخامخ له اکروپوليس څخه له سوفي سره خبرې کولې، مور يې دننه شوه. د فلسفې ښوونکی يې څومره ډېر پلار ته ورته و- (خړه او منظمه ږيره) او قره قلي خولۍ پر سر.

- هيلدې کليزه دې مبارک شه.

- هيوم

- هيلدې؟

- هلته يې کېږده.

- نه غواړې چې ...

- وينې چې يو څه لولم.

- فکر وکړه، ستا پنځلس کاله پوره شول.

- موری ته کوم وخت آتن ته تللې يې؟

- نه، ولې؟

- څومره عجيب دي چې دا پخواني معبدونه تر اوسه پر پښو ولاړ دي. په حقيقت کې دا دوه نيم زره کاله لرغونتيا لري. چې د تر ټولو لوی معبد نوم يې په رښتيا د باکرې نجلۍ ځای دی.

- د پلار ډالۍ دې خلاصه کړه؟

- کومه ډالۍ؟

- ماته وګوره هیلدې. فکر دې پر ځای نه دی.

هیلدې د پلار لویه بسته پر لمن کېښوده.

د مور په لاس کې يې پتنوس و. کټ نه ټيټه شوه، په پتنوس کې روښانه شمعې، ډوډۍ او خواړه، د میګو سلاد، نوشابه او يوه وړه ډالۍ ایښي وو. د مور يې لا هم پتنوس په لاس کې و. بيرغ يې تر بغل لاندې نیولی و او نارامه ولاړه وه.

- آه! ډېره مننه مورې، ته څومره مهربانه يې، خو زه ډېره مصروفه يم.

- نن خو به د ماسپښین تر یوې بجو ونځې ته هم نه ځې.

هیلده په هوښ شوه. نوې پوه شوه چې چېرته ده، مور يې پتنوس د تخت تر څنګ پر مېز کېښود.

- وبښه مورې، زه په دې کې ډوبه شوې وم.

- دا څل يې څه لیکلي دي هیلدې؟ زه هم ستا په خبر حیرانه يم. میاشتې به کېږي چې ان یوه معقوله خبره مې ترې نه ده اورېدلې.

هیلدې بې اختیاره د شرمنده ګۍ احساس وکړ.

- آه! هیڅ نه دي. یو داستان دی، بس.

- داستان؟

- هو، داستان. د فلسفې تاریخ یا دې نه ورته کوم څه.

- نه غواړې چې زما ډالۍ خلاصه کړې؟

هیلدې نه غوښتل چې د پلار او مور تر منځ توپیر وکړي، نو په بېړه يې د مور ډالۍ خلاصه کړه، د سرو زرو غاړه کۍ وه.

- څومره ښکلې ده مورې! ډېره مننه.

له تخته را ښکته شوه او مور يې په غېږ کې ونیوه.

څو شیبې کښناستې او خبرې يې وکړې، وروسته هیلدې وویل:

- مورې! زه بېرته کتاب ته ور وګرځم. هغه اوس پر اکروپولیس ولاړ دی.

- څوک؟

- نه پوهېږم، سوفي هم نه پوهېږي او مهم تکی همدا دی.

- په هر صورت، زه باید خپل کار وکړم. چې هېر دې نه شي، لږ څه وخوره. کالي دې پر کوټبند ځوړند دي.

مور یې په زینو کې کښته شوه، همدارنګه د فلسفي ښوونکي هم د اکروپولیس پر زینو راکښته شو او د آریوپاګوس پر غونډۍ ودرېد. لږ شېبه وروسته د آتن په پخواني میدان کې و. کله چې پخوانۍ ودانۍ له ورانۍ راپورته شوې، نو هیلده ولړزېده. د پلار له محبوبو فکرونو څخه یې یو دا و، چې د ملګرو ملتونو ټول غړي هېوادونه همکاري وکړي، څو بلکل آتن ته ورته یو لوی میدان جوړ کړي. او دا میدان دې د خلکو د فلسفي بحثونو او د بې وسلو کولو لپاره د خبرو اترو د راغونډېدو محل شي. د ده په فکر دا ډول حیرانوونکې طرحه نړیوال یووالی رامنځته کوي. (مور په هر حال کې توانېدلي یو چې د نفت څاه ګانې او فضایي سپوږمکۍ جوړې کړو).

وروسته یې د افلاطون په اړه ولوستل. (روح هیله لري چې د مینې په وزرو د مثال په نړۍ کې والوځي. روح دا تمه لري چې د تن له زولنو خلاصه شي).

سوفي له پېچلې لارې نه بهر راوځي او په هرمس پسې ځي، خو سبې ترې تښتي. وروسته د افلاطون په اړه د شرحې لوستلو نه، نجلۍ په ځنګله کې ورانږدې ځي او د واړه سیند تر څنګ، یوې وړې سوررنګه جونګړې ته رسېږي، خو د جونګړې په منځ کې د بارکلي تصویر را ځوړند دی.

له ځانګړنو یې همداسې ښکاري چې د هیلدې کور دی. او تر څنګ یې د بارکلي په نوم د یوه کس تصویر. (څومره عجیب!)

هیلدې د پلار درنه بسته پر تخت کېښوده. د کتابونو الماری ته ورغله او په خپل درې ټوکه قاموس کې، چې تېر کال په څوارلس کلنۍ کلیزه کې ورکړل شوی و، په دې نوم پسې ګرځېده. بارکلي، بارکلي... آهان دا دی.

*بارکلي، جورج، ۱۶۸۵ - ۱۷۵۳، انګليسي فيلسوف، اسقف کلوين. د انسان په ذهن کې د مادي نړۍ له وجوده منکر و. زموږ حسي-ادراک د خدای د وجود له وجې دی. مهم اثر يې د انساني معرفت اصول. (۱۷۱۰)*

هو! بې شکه چې ډېر عجيب و. هيلده خو شېبې ودرېده، په فکر کې ډوبه شوه، وروسته بېرته د خوب تخت او ليکنو ته وګرځېده.

په ګومان يې، دا دوه انځورونه يې پلار پر دېوال را ځړولي وو. پرته د نوم له ورته والي کومه اړيکه هم سره لري؟ بارکلي هغه فيلسوف و چې د انسان له ذهنه بهر يې د مادي نړۍ پر شتون انکار کاوه. دا په رښتيا ډېره عجيبه وه. د دا ډول ادعا ردول آسانه کار نه دی، خو د بارکلي خبره د سوفي له وضعې سره ښه سمبده. داسې خو نه وه، چې د هغې (حسي-ادراک) يې د پلار په لاس کې و؟

لږ څه چې وړاندې ولاړه شي، قضيې به په خپله روښانه کېږي. هغه ځای ته ورسېده چې سوفي په هېنداره کې د يوې نجلۍ تصويرويني، هغه په دواړو سترګو سوفي ته سترګک وهي.

هيلدې له ليکنې سترګې لرې کړې او موسکه شوه. (اوس نجلۍ غوښتل په سترګک وهلو هغې ته ووايي: سوفي زه تا وينم. زه د هېنداري بلې خواته يم.)

سوفي په جونګړه کې شنه بټوه پيدا کوي، چې په کې پيسې او داسې نور شيان وو. دا څنګه هلته پيدا شوه؟ دا خندوونکې ده! يو څو شېبې هيلدې په رښتيا باور وکړ چې سوفي شنه بټوه پيدا کړې وه، خو وروسته يې هغه وکړه، وړاندوينه وکړي چې دا پېښې به د سوفي تر نظر څنګه راغلې وي. ضرور به سر تر پايه ورته نامعلومې او د نه درک وړ وې.

د لومړي ځل لپاره هيلدې داسې احساس کړ لکه له سوفي سره چې مخامخ ليدو ته ډېره لېواله ده. زړه يې غوښتل هغې ته هر څه رښتيا او سم پرته له کومې پېښې ووايي.

اوس بایـد سـوفي مخکـې تـر دې چـې مـوټې یـې خـلاص شـوی وای، لـه جـونګړې وتلـې وای. وړه کیښـتۍ د سـیند پـه مـنځ کـې روانـه ده. پـلار یـې د هغه پخواني داستان له بیا یادوني نه شوای تېرېدی، نه، نه شوی تېرېدی!
هیلـدې لـږ شربـت وڅښـل، دوډۍ یـې سـره شـوې وه او د ارسـطو پـه اړه لیـک یـې ولوسـت. هغـه ارسطو (موشـکاف) چـې د افلاطـون نظریـې یـې تـر نیـوکې لاندې ونیوې.
*ارسطو وایـي: ټـول شیزونـه چـې زمـوږ پـه ضـمیر کـې موجـود دي، پخـوا زمـوږ پـه حواسـو آزمویل شـوي، افلاطـون ویـل، پـه طبعـي نـړۍ کـې داسـې څـه نشـته چـې پخـوا د مثـال پـه عـالم کـې موجـود نـه وي. ارسـطو وایـي: افلاطـون پـه دې ډول (د شیزونو شمېر دوه برابره کوي).*
هیلـده نـوې پـوه شـوه چـې د (څـناور، بـوټي یـا جـماد) لوبـه ارسـطو اخـتراع کړې.
*ارسـطو غوښـتل د طبیعـت پـه (کوټـه) کـې بشـپړه کورڅنډنـه وکـړي. ده هڅـه وکړه چې وښايي، پـه طبیعـت کـې هـر څـه پـر یـوې مقـولې پـورې تعلـق لـري او پـه جلا مقولو کې راځي.*
هیلدې چې د ښـځو پـه اړه د ارسـطو نظریـاتو تـه ورسـېده هـم پـه غوسـه شـوه او هـم مایوسـه. هـېڅ یـې تصـور نـه شـم کـولی چـې دومـره پـوه فیلسـوف دې دومره احمق واوسي.
ارسـطو سـوفي تـه الهـام ورکـړ او نجلـۍ خپلـه کوټـه پاکـه او سـوتره کـړه. د ګـډوډو شـیانو تـر مـنځ یـې سـپینې جورابې پیـدا کـړې چـې تېـره میاشـت لـه هیلدې نه ورکې شوې وې.
سـوفي د آلبرټـو لخوا ټـولې را رسـېدلې پـاڼې پـه یـوه صـندوق کـې ایښـې وې. (ټولې څو پنځوس مخه وې).
هیلـده پـه خپلـه ۱۲۴ مـخ تـه رسـېدلې وه. څکـه پرتـه د آلبرټـو کنـاکس لـه لیکونو څخه یې باید د سوفي خپل داستان هم لوستی وي.

د راتلونکي خپرکي عنوان (یونانیگري) و. لومړی سوفي یو پوستي کارت پیدا کړ، د جون په ۱۵مه نېټه، د جیب تصویر د ملګرو ملتونو له مُهر سره.

دا له هغو کارتونو څخه یو بل و، چې پلار یې هغې ته د استولو پر ځای، په کتاب کې راوړی و.

*ګرانې هیلډې! زه داسې انګیرم لکه د پنځلس کلنۍ د کلیزې جشن او خوښي دې چې تر اوسه پای ته نه وي رسېدلې. یا دا چې اوس ناوخته شوی؟ په هر حال، ډالۍ دې پر خپل ځای ده. او بل دا چې د عمر په نوم یو مفهوم لا هم دوام لري. د کلیزې لپاره دې یو ځل بیا د نېکمرغۍ هیله لرم. اوس به پوهېږې چې ولې هغه کارتونه د سوفي په پته استوم. زه باور لرم چې هغه به دا کارتونه تاته در رسوي.*

مور دې ویل، د پیسو بټوه دې ورکه کړې. ژمنه کوم چې ۱۵۰ کرونه دې بېرته جبران کړم. او کېدای شي ښوونځی هم مخکې د اوړي رخصتۍ له پای ته رسېدو نه، نوی کارت درته جوړ کړي. پلار دې در ځار شه!

بدې نه دي! ۱۵۰ کرونه یې پر پیسو زیاتې شوې، شاید پلار یې فکر کاوه، چې یوه لاسي کورنۍ ډالۍ کافي ده.

نو داسې ښکاري، چې د جون په ۱۵ د سوفي کلیزه هم ده. خو د سوفي جنتري یوازې د مې میاشتې تر نیمایي تلله. دا هغه نېټه وه چې پلار یې دا څپرکی لیکلی و. خو د هیلډې (د کلیزې مبارکي) کارت یې وروسته یا لیکلی او د سوفي خوارې په هکله فکر وکړه، په منډه منډه یوې فروشګاه ته لاړه څو ځان یووانا ته ورسوي.

*هیلډه څوک ده؟ د هیلډې پلار ولې دومره ډاډه دی چې سوفي به هغه پیدا کوي؟ دا خو هېڅ مانا نه لري چې پلار د خپلې لور لیک، د دې پر ځای چې مستقیم خپلې لور ته واستوي، هغه سوفي ته لېږي.*

هیلډه هم، چې د سوفي په څېر د پلوتینوس برخې ته ورسېده داسې احساس یې وکړ، لکه اسمان ته چې تللې وي.

*غږ په وړايم. څه چې موجود دي، په ټولو کې د ملکوتي راز يوه برخه ده. خلا بې په خشخاش يا د لمر پرست په ګل کې هم ليدلای شو. دا ناپوهېدلي رازان په هغو الوتونکو کې، چې له يوه ښاخه بل ښاخ ته الوځي- يا په هغه سور رنګه کب کې چې په بلوري اوبو کې دی- احساسولای شو. خو خدای ته تر هر څه زموږ خپل روح ډېر نږدې دی. هلته موږ او د ژوندون لوی راز سره يو کېږو. په حقيقت کې، په ډېرو کمابه شېبو کې پر موږ داسې حالت راځي، چې احساس کوو (موږ په خپله هغه ملکوتي راز يو).*

تر اوسه بې چې څه لوستي وو، دا موضوع تر ټولو پکې ګنګسوونکې وه، خو په ورته وخت کې ډېره ساده هم وه. هر څه يو دي او دا (يووالی) ملکوتي راز دی. چې ټول ترې برخمن دي.

هيلدې فکر وکړ. دا د عقيدې او ايمان موضوع نه ده. هر څوک د (ملکوت) کلمه په خپل زړه معنا کولای شي.

ژر بل څېرکي ته لاړه. سوفي او يووانا (د مې اوومه) له ملي رخصتۍ يوه شپه مخکې له ښاره بهر ځي. هلته خيمه وهي او د قومندان جونګړې ته نه ورځي...

هيلدې چې يو څو مخه ولوستل، څادر يې په غوسه ايسته کړ، پاڅېده، په کوټه کې ښکته پورته لاړه او د پلار بسته يې په دوارو لاسونو کې ټينګه نيولې وه.

دا نو له بې ادبۍ ډک چل دی، چې پلار يې ځنګه په هغه وړه جونګړه کې دوو نجونو ته د مې مياشتې په دوو لومړيو اونيو کې ټولو استول شوو کارتونو د کتلو اجازه ورکوي.

ليکونه رښتيا او سم وو. هيلدې څو ځلې په خپله دا خبرې اورېدلې وې، هغه يې کلمه په کلمه پېژندلې.

*ګرانې هيلدې! ستا د کليزې په اړه دې رازداری زما وجود داسې کړی لکه چوي چې. هره ورځ څو ځلې ټيلفون را اخلم چې کورته زنګ ووهم او*

*هر څه درته ووايم، خو بيا خپله مخه نيسم. زما راز داسې دی چې ورو ورو وده کوي، لوېږي او لوېږي. پوهېږې، کله چې يو څه ډېر لوی شي پټ ساتل يې ګران وي.*

سوفي ته د آلبرتو نوی درس تول د يهوديانو او يونانيانو، او د دې دوو لويو فرهنګونو په اړه و. د هيلدې دا ډول د تاريخ ټولېزه څېړنه ډېره خوښېده. په ښوونځي کې يې داسې څه نه وو زده کړي. په ښوونځي کې چاته يوازې واړه جزيات او کوچني تکي ويل کېږي.

اوس يې عيسی او عيسويت ته له يوه بلکل نوي لوري کتل. د ګوېټه وينا يې ډېره خوښه شوه. (څوک چې له درېيو زرو کلونو څخه څه لاسته راوړنه ونه لري، نو ناداره به وي.)

بل څېرکی داسې پيلېده، سوفي وينې چې د پخلنځي پر کړکۍ يو کارټ نښلول شوی، البته دا د هيلدې د کليزې لپاره يو بل کارټ دی.

*ګرانې هيلدې! نه پوهېږم، کېدای شي کله چې دا کارټ لولې، کليزه به دې وي. هيله لرم همداسې به وي او يا لږ تر لږه چې ډېر نه وي ناوخته شوی. سوفي ته د يوې يا دوو اونيو وخت دومره نه دی لکه څومره چې ما او تاته دی. زه به د اوړي په لومړۍ شپه کورته درشم. هيلدې! هغه وخت به په ساعتونو د بڼ پر څوکۍ کښېنو او د سيند ننداره به کوو. دواړه ډېرې خبرې لرو چې يو بل ته يې ووايو.*

دلته آلبرتو سوفي ته زنګ وهي او دا لومړی ځل دی چې نجلۍ د هغه غږ اوري.

*(داسې غږېږي لکه کومه جګړه چې کېدونکې وي).*

*ښه ده چې ووايو د ارادو جګړه ده، بايد د هيلدې پام ځانته را واړوو او مخکې تر دې چې پلار يې ليله سن ته ورسېږي، نجلۍ د ځان هملاسې کړو.*

سوفي وروسته، د دولسمې پېړۍ په ډېرينه کليسا کې آلبرتو کناکس، چې د منځنيو پېړيو د راهبانو کالي يې پر ځان وو، وليد.

کليسا! آه، نه. هيلډې ساعت ته وکتل، يوه او پنځلس دقيقې... ساعت يې بيخي هېر شوی و.

دا چې نن يې کليزه ده نو دومره به مهمه نه وي چې ښوونځي ته لاړه شي. خو د ټولګيوالو له مبارکۍ به پاتې کېږي. څه به کوي نو. هيلډه تل ډېر مينه ناک دوستان لري. ډېر وخت نه و، وتلی، چې آلبرټو خپله اوږده خطبه پيل کړه. آلبرټو په ډېرې اسانۍ سره د منځنيو پېړيو د يوه کشش نقش لوباوه.

کله چې آلبرټو هغې شېبې ته ورسېد چې هيلډه ګارد، سوفيا د زړه په سترګو ويني نو هيلډه بيا پاڅېده او قاموس يې را واخيست. خو په هغه کې بې د هېڅ يوې په اړه څه ونه موندل. د تل په څېر، کله چې د کومې ښځې يا د ښځو په اړه کومه يادونه کېږي نو قاموس وچېږي.

هيلډه ګارد د بينګن اوسېدونکې وه. هغه واعظه، ليکواله، طبيبه، بوټي پېژندونکې او طبيعت پوهه وه. (ښايي په منځنيو پېړيو کې د هغو ښځو ستره بېلګه وه، چې د زيات علم او عمل خاوندانې وې).

پر دې سربېره بيا هم د هغې په هکله په کتابونو کې ان يوه کلمه هم نشته. څومره د شرم خبره!

هيلډې هېڅکله نه و اورېدلي، چې خدای (ښځينه بڼه) يا (د طبيعت د مور بڼه) هم لري. د سوفيا له نظره خدای داسې ياد شوی، خو ظاهراً د خدای دا بڼه بل ډول وه. تر ټولو نږدې څه چې يې قاموس کې وموند. په قسطنطنيه (اوسنی استانبول) کې د قديس سوفيا کليسا په هکله معلومات وو. چې ايا سوفيه لوستل کېدل او معنا يې سپېڅلی حکمت وه. خو د دې قديس د ښځينه والي په هکله څه نه وو ليکل شوي. دا سانسور نه دی؟

که له دې تېر شو، حقيقت دا دی چې سوفي يې د زړه په سترګو ليدلې وه.

هيلډې هغه له ځانه سره د صافو وېښتانو لرونکې نجلۍ مجسموله...

سوفي تر نيمې ورځې د سن ماري په کليسا کې پاتې کېږي، کله چې کور ته راځي، مخامخ برنزي هېنداري ته، چې د ځنګله له جونګړې يې ځان سره راوړې، درېږي.

د وېښتانو تر منځ يې د ښېرې الوتي رنګ کرښو ته وکتل- هغه وېښتان چې له خپل طبعي حالت پرته يې بل حالت نه خپلاوه. خو د دې ښېرې تر شا دې ته ورته بله نجلۍ ليدل کېږي. نجلۍ ناڅاپه ځانته ژر ژر په سترګک وهلو شوه، ته به وايې لکه په رښتيا چې غواړې ونښايي دا د هېندارې بل لوري ته ولاړه ده. له دې وېرې خو شېبې نه وې وتلې چې نجلۍ ورکه شوه.

هيلده هم دې ته ورته ځومره ډېره هېندارې ته مخامخ درېده، لکه د هېندارې تر شا چې په بل چا پسې ګرځېده؟ خو پلار يې په دې ځنګه پوهېده؟ پخپله هيلده د تياره وېښتانو لرونکې ښځې په لټون نه وه؟ د نيکه مور يې دا هېنداره له کولي ښځې اخيستې وه، کنه؟

هيلدې د پلار بسته په لاسونو کې ټينګه نيولې وه. خو پام يې شو چې لاسونه يې رېږدي. داسې يې احساسوله لکه سوفي چې په رښتيا د هېندارې بلې خواته وي.

اوس سوفي د هيلدې او برکلي خوب ويني. هيلده هغه نه شي ليداى، نه يې غږ اورېدلاى شي او بيا سوفي د هيلدې د سرو زرو صليب غاړه کې له کيښتې سره پيدا کوي. کله چې له خوبه را ويښېږي، صليب، چې د هيلدې د نوم د پيل توري او نوري ځانګړنې لري، د سوفي د خوب پر تخت وي.

هيلده سخته په فکر کې شوه، داسې نه چې خپله غاړه کې يې ورکه کړې وي؟ خپل سينګار مېز ته ورغله او د ګانو صندوق يې را واخيست. دا د صيلب غاړه کې يې د انا ډالۍ وه، خو په صندوق کې نه وه.

نو په رښتيا يې هغه ورکه کړې، خو په داسې حال کې چې دا په خپله له دې موضوع نه ده خبره، پلار يې له کومه ځايه پوه شو؟

او بیا بل خه: سوفي په ښکاره خوب ویني چې د هیلدې پلار له لبنانه کور ته راځي. حال دا چې راتګ ته یې یوه اونۍ پاتې ده. یعنې سوفي په خوب کې غیب ویني؟

پلار یې دا ویل غوښتل چې کله کورته راشي سوفي به یو ډول هلته وي؟

لیکلي یې وو، چې هیلده نوې ملګرې پیدا کوي. هیلده نوره پوه شوه چې سوفي یوازې پر کاغذ او لیک نه ده، بلکې په رښتیا موجوده ده.

# د روښانتيا پړاو

## ... د ستنې له جوړولو نيولې د توپ او ټوپک تر جوړولو...

هيلډې د رنسانس څېرکـې نـوی پيـل کـړی و، چـې پـه کـور کـې د مـور د راتګ غږ شو. ساعت ته يې وکتل، د مازديګر څلور بجې وې.

مور يې پورته رامنډه کړه او د هيلډې د کوټې ور يې خلاص کړ.

- کليسا ته نه يې تللې؟

- لاړم، ولې؟

- نو... څه شی دې اغوستي وو؟

- همدا چې مې پر ځان دي.

- د خوب کالي؟

- ډېرينه کليسا ډېره پخوانۍ ده، ان د منځنيو پېړيو له زمانې.

- هيلډې!!

د پلار ډالۍ يې پر لمن کېښوده، سر يې پورته کړ او مور ته يې وکتل.

- مورې! وخت بېخي رانه هېر شو. وبښه، ډېر جالب څه لولم.

مور يې بې اختياره موسکه شوه.

هيلډې زياته کړه: دا کتاب جادوګر دی.

- ډېر ښه، هيلډې! يو ځل دې بيا کليزه مبارک شه.

- نور نو د دې جملې اورېدل راباندې ښه نه لګېږي.

- مـا خـو کـوم بـد څـه نـه دي ويـلي. زه څـم چـې لـږ آرام وکـړم، بيـا بـه مابـښام درته خوندور خواړه تيار کړم، له بازاره مې توت هم راوړي.

- ښومره ښه، تر هغې زه کتاب لولم.

مور يې لاړه او هيلډې بيا لوستل پيل کړل.

اوس سـوفي لـه هـرمس سره لـه سـړکه تېرېـده. د آلبرتـو د کـور پـر لاره يـې لـه لبنانـه را اسـتول شـوی يـو بـل کـارت پيـدا کـړ. د دې کـارت نېټـه هـم د جون ۱۵مه وه.

هیلده د پوستي کارت په نېټه لیکنې نوې پوهېدلې وه. کوم کارتونه چې د جون له ۱۵مې نېټې مخکې لیکل شوي او هیلدې له پلاره تر لاسه کړي وو. خو پر هغو کارتونو چې د نن نېټه لیکل شوې وه. هیلدې د لومړي ځل لپاره په لیکنو کې ولیدل.

*ګرانې هیلدې! اوس سوفي د فیلسوف کور ته ورځي. هغه هم دېرش زر پنځلس کلنه کېږي، خو ته پرون پنځلس کلنه شوې یا نن شوې هیلدې؟ که نن شوې وې نو باید ناوخته شوې وي. زما او ستاسو ساعت سره توپیر لري.*

هیلده هغو مخونو ته ورسېده چې آلبرتو د رنسانس، نویو علومو، د اوولسمې پېړۍ عقلپالو او د برېتانیې د تجربه پالو په هکله سوفي ته خبرې کولې.

کله به یې چې پلار نوی کارت یا د کلیزې بله مبارکي په کیسه کې راوړله، هیلدې به ټکان وخوړ. کارتونه او پیغامونه د ښوونځي له کتابچې څخه راوتل، د کیلې د پوستکي په منځ کې را ښکاربدل او په کمپیوټري پروګرام کې یې ځان څرګنداوه.

پلار یې بې هېڅ زحمته کولای شو، چې آلبرتو په لفظي څېړونو تېر باسي، خو سوفي ته هیلده ووایي او هرمس مجبور کړي چې ووایي: (هیلدې کلیزه دې مبارک شه!)

هیلدې آلبرتو پر حق ګڼه. پلار یې لږ څه زیاتي کاوه. ځان یې له خدای سره برابر ګاڼه. خو په اصل کې هیلده د چا طرفداره وه؟ همدا پلار یې و، چې د ځان په هکله یې هغه الفاظ د آلبرتو په خوله ورکول؟ نو له خدای سره د هغه پرتله کول دومره هم احمقانه کار نه دی. په حقیقت کې د هیلدې پلار د سوفي د نړۍ لپاره مطلق ځواک له ځانه سره درلود.

هیلده چې بارکلي ته ورسېده، د سوفي په څېر هیجاني شوه. اوس به څه کېږي؟ ټولې هغه اشارې او کنایې چې ورته شوې وې چې که هر کله دې فیلسوف ته ورسېږي، کومه ځانګړنه رامنځته کېدونکې ده.

د هغه څېرکي په پيل کې، آلبرتو او سوفي د کړکۍ تر څنګ ولاړ دي، يوه الوتکه ويني چې توټه پرې خوړنده ده او پرې ليکل شوي (کليزه دې مبارک). په دې وخت کې د ګرد ښار آسمان تورې وريځې نيسي.

*يوازې (شتون او نشتون) ټوله مسئله نه ده، مسئله دا هم ده چې موږ څوک يو؟ موږ په رښتيا د بشر-موجود او يو موټې هډوکي او پوستکي يو؟ زموږ نړۍ له واقعي شيانو جوړه ده، يا ټول شيان زموږ د ذهن جوړونه او سمونه ده؟*

سوفي د خپلو نوکانو په خوړلو پيل کوي، چې ډېره حيرانوونکې هم نه ده. هيلدې هېڅکله دا ناخوښ عادت نه درلود، خو اوس له دې امله چندان خوښه نه وه. نو بلاخره مطلب روښانه شو: ( زموږ لپاره. زما او ستا لپاره-دا (اراده يا روح) چې (په هر څه کې د هر څه)- علت دی، کېداى شي د هيلدې پلار وي).

- *غواړې ووايې چې هغه زموږ لپاره يو ډول خداى دی؟*

- *هو او بايد په خپلو کړنو خجالت شي.*

- *په خپله هيلده څه؟*

- *هغه پرښته ده سوفي.*

- *پرښته؟*

- *هيلده د دې (روح) قبله ده.*

سوفي چې دا خبرې اورې له آلبرتو څخه لېرې کېږي او بهر په توپان کې منډې وهي.

آيا دا هماغه توپان و، چې تېره شپه يې برکلي په کې د رڼا منځ وليد؟

سوفي څو ساعته د ښار پر سړکونو منډې وهلې. د منډې په حال کې يې يو فکر په ذهن کې څرخېده: (*سبا زما د زېږېدو ورځ ده. څومره سخته ده چې انسان يوه ورځ مخکې تر خپلې پنځلس کلنۍ پوه شي، چې ژوند له يوه خوب پرته بل څه نه دی. لکه څوک چې خوب ويني يو مېليون يې ګټلي، خو کله چې د پيسو اخيستو وخت راځي، له خوب راوينېږي*).

د لوبې میدان تش او غلی و، سوفي له مغه هم تېره شوه. څو دقیقې وروسته یې ولیدل چې کوم څوک یې خواته په منډو را روان دي، مور یې وه.

په آسمان کې د تالنده او برېښنا، غږ او رڼا پرله پسې خپرېدل.

-لورې! پر مور څه بلا راغلې؟

سوفي په ژړا وویل: نه پوهېږم، لکه وېروونکی خوب دی.

د هیلدې اوښکې راغلې: (شتون یا نشتون- مسئله دا نه ده.) د پلار بسته یې پر تخت واچوله، پاڅېده، څو ځلې په کوټه کې ښکته پورته وګرځېده. بیا برنجي (برنزي) هېنداري ته مخامخ ودرېده. همالته ولاړه وه، چې مور یې د دروازې شاته راغله او ویې ویل: ډوډۍ تیاره ده. مور یې چې دروازه وټکوله هیلده نه پوهېده چې څومره وخت هلته ولاړه پاتې وه، خو ډاډه وه، بلکل ډاډه وه، چې تصویر یې په هېنداره کې په دواړو سترګو سترګک ورواهه.

د ډوډۍ پر وخت یې هڅه وکړه چې له خپلې مور سره وي، خو فکر یې ټول وخت له سوفي او آلبرتو سره و. دا چې سوفي او آلبرتو دواړه پوهېږي چې ټولې پېښې د هیلدې د پلار له لاسه کېږي، نو دوی به څه کوي. ته به وایې لکه پوهېږي چې شاید دا (اغراق) وي. دا سمه ده، که فکر وکړو چې دوی اصولاً پر څه نه پوهېږي. خو آیا دا د هیلدې پلار نه و، چې پرېکړه یې کوله دوی دواړه دې پر څه پوه شي او پر څه نه؟

مسئله چې له هرې خوا وګورې ببرته هماغه ده. سوفي او آلبرتو همدا چې (پوه شول) ځېزونه څنګه سره اوډل شوي، نو په یوه وینا د کرښې پای ته ورسېدل.

ناڅاپه یې فکر شو چې دا شاید د هغې د خپلې نړۍ مسئله هم وي، نو مړی یې ستوني ته والوته. د طبیعت د قوانینو په هکله د بشر-پوهه پرله پسې زیاته شوې ده.

له کوم وخت راهیسې چې د علم او فلسفې لومړی چستان رامنځته شوی، تاریخ به بیا هم همدا ډول تر ابده دوام مومي؟ آیا د علم او مفکورې د پرمختګ، د هوا ککړوالي او د ځنګلونو د له منځه تللو تر منځ کومه اړیکه نشته؟ شاید هغوی چې د پوهې او پېژندنې لپاره د بشر تنده یو ډول ګناه شمېري، خوشې چټیات نه وايي؟

موضوع دومره لویه او وېروونکې وه چې هیلدې غوښتل هغه هېره کړي. شاید که د پلار ډالۍ کتاب لږ نور هم ولولي، نو پر دې مسئلو یې سر خلاص شي. ډوډۍ او ایټالیوي توت چې وخوړل شول، د هیلدې مور بیا (کلیزه دې مبارک شه!) نغمه وغږوله او ویې ویل:

- اوس چې هر څه ته وغواړې، هماغه کوم.

- پوهېږم، دا به درته احمقانه ښکاره شي؛ خو یوازېنی شی چې اوس مې پې زړه غواړي، د پلار د ډالۍ بیا لوستل دي.

- سمه ده، خو په دې شرط چې عقل دې له ځانه سره و نه تښتوي.

- نه، مه وېرېږه.

- کولی شو هغه ټلوېزیوني خپرونه یو ځای وګورو؟ او یوه پیزا هم سره وخورو؟

- هو! که ته وغواړې.

هیلدې ته ناڅاپه د له مور سره د سوفي خبرې وریادې شوې. ان شاءالله چې پلار زما د مور اخلاقي ځانګړنې د سوفي په مور کې نه وي کارولې.

د ځان د ډاډمنولو لپاره یې پرېکړه وکړه چې د سپینې سوېې او د مداري د خولۍ موضوع له خپلې مور سره شریکه کړي؛ خو نن نه، نن باید په دې هکله ورته څه ونه وايي.

د خوړو له مېزه چې پاڅېده، ویې ویل: رښتیا...

- رښتیا څه؟

- زه چې هر څومره وګرځېدم، د سرو زرو غاړه کۍ مې پیدا نه شوای کړی.

مور يې په عجيبه ورته وکتل
- ما خو اوني مخکې هغه د کوچنيو کښتيو له تمځي سره پيدا کړه. گومان کوم تا پخپله هغه هلته اچولې وه. مېرمن هېرجنې.
- دا دې پلار ته ويلي؟
- صبر چې فکر وکړم... هو! شايد ويلي مې وي.
- اوس غاړه کې چېرته ده؟
مور يې پاڅېده او د خپلو گاڼو صندوق ته ورغله، د خوب له خونې تېښ غږ واورېدل شو. مور يې ژر د ناستې کوټې ته بېرته راغله.
- هر څه چې وگرځېدم پيدا مې نه شواى کړی.
- ما اټکل وکړ.
هيلدې خپله مور په غېږ کې ونيوه او بيا يې پورته خپلې کوټې ته منډه کړه. اوس يې نو کولای شو، چې د سوفي او آلبرتو د داستان پاتې برخه ولولي. بيا پر خپل تخت کېناسته، د پلار بسته يې پر زنگونو کېښوده او د بل څپرکي په لوستو يې پيل وکړ.
بله ورځ سهار چې کله سوفي سترگې پرانيستې، ويې ليدل چې مور يې له ډاليو ډک پتنوس او بېرغ سره کوټې ته راننوته.
- کليزه دې مبارک شه سوفي.
نجلۍ خپلې خوبولې سترگې وموښلې، ويې غوښتل چې د تېرې شپې پېښې رايادې کړي، خو لکه د ماشوم د لوبو د قطعو په څېر ټولې گډوډې شوې وې. يو قطعه آلبرتو، بله هيلده او قومندان، دريمه بارکلي او څلورمه برکلي. تر ټولو بد يې هغه قهرجن توپان و، چې نجلۍ ته يې په رښتيا تکان ورکړی و. مور يې په وريښمني دسمال وچه کړې وه، شيدې او عسل يې ورکړي وو او ويده کړې يې وه. نجلۍ همدا چې سترگې پټې کړې، خوب وړې وه.
ورو يې وويل: آه! تر اوسه ژوندۍ يم.
- خود ژوندۍ يې او نن دې پنځلس کاله پوره شول.

- ستا په یاد دي؟
- خود مې په یاد دي. د کومې مور به هېر وي، چې یوازېنۍ ماشوم یې څه وخت نړۍ ته راغلی؟ هغه وخت ۱۹۷۵ کال، د جون ۱۵مه، د ماسپښین یوه نیمه بجه وه گرانې سوفي. دا زما د ژوند تر ټولو خوشاله شېبه وه.
- واده یې چې دا خوب نه دی؟
- تر دې نو کوم بل به خوب شته چې څوک راویښ شي او تر مخ یې ډوډی، خواږه، نوشابه او د کلیزې ډالۍ ووینې.
د ډالۍ پتنوس یې پر مېز کېښود او له کوټې ووته. کله چې بېرته راغله، یو بل د ډوډی، خوږو او نوشابې پتنوس یې په لاس کې و. هغه یې تر تخت لاندې کېښود.
د کلیزې د سهار دود همدا وو: د ډالیو خلاصول، د مور احساساتي منډې.
سږ کال د سوفي د مور ډالۍ د ټېنس لرگي وو. سوفي تر اوسه د ټېنس لوبه نه وه کړې، خو کورته نږدې یې په آزاده فضا کې څو د ټېنس د لوبې میدانونه وو.
پلار یې یو کوچنی تلویزیون ورته را لېږلی و، چې د لنډو څپو راډیو یې هم درلوده. د ټلویزیون صفحه د پوستي کارټ په اندازه کوچنۍ وه.
سوفي ته یو شمېر نورې ډالۍ د زړو عمه گانو او کورني دوستانو لخوا راغلي وې. مور یې بې واره وویل: غواړې چې زه نن کار ته لاړه نه شم؟
- نه، د څه لپاره؟
- ته پرون ډېر خپه وې، که په همدې حال پاتې شې نو باید یوه ارواپوه نه ورشې.
- لازمه نه ده.
- دا د توپان له وجې و که د آلبرتو؟
- ته په خپله څنگه؟ تا خو هم ویل: لورې پر مورږ څه بلا راغلې؟
- زه ستا په فکر وم، چې د یوه مرموز سړي د لیدو لپاره په ټول ښار کې منډې وهې... کېدای شي زه ملامته وم.

- چې زه پـه اوزګـاره وختونـو کـې د فلسـفې درس وايـم؟ نـه، هېڅـوک ملامـت نه دي. خپـل کـار تـه ولاړه شـه. زمـوږ ښـوونځي تـر لسـو بجـو نـه پيلـېږي او نـن يوازې خپلې نومرې اخلو. نوره ورځ بېکاره يو.
- له نومرو دې خبره يې؟
- ضرور به تر مخکې ځل ښې وي.
د مور له تګ لا څو شېبې نه وې وتلې، چې ټيلفون ته زنګ راغی.
- مهرباني! سوفي آموندسن
- زه آلبرتو يم.
- آه!!
- پرون شپه قومندان هر هغه څه وکړ چې په وس يې پوره و.
- مقصد دې څه دی؟
- توپان، تالنده او برېښنا سوفي.
- نه پوهېږم چې څه فکر وکړم.
- دا د هـر رښـتيني فيلسـوف لـوی فضـيلت دی. دا چـې تـا پـه دومـره لـږ وخـت کې دومره ډېر څه زده کړي، زه پر خان وياړم.
- زه ډارېږم چې هېڅ څه به واقعي نه وي.
- دې تــه وايــي ډار يــا وجــودي زړه نــاکراري او معمــولاً دا د نــوې ځــان پېژندنې په مرحله کې يوه لاره ده.
- ګومان کوم ښه به وي چې د څه مودې لپاره خپل درس وځنډوو.
- څه شوي؟ يعنې په باغ کې مو ځېنګښه پيدا شوې؟
سوفي ته خندا ورغله، آلبرتو ادامه ورکړه:
- پـه نظـر مـې بايـد دوام ورکـړو. رښـتيا، کليـزه دې مبـارک شـه. بايـد د اوړي تـر لومړۍ شپې خپل درسونه پای ته ورسوو. دا زموږ وروستی مهلت دی.
- د څه شي مهلت؟
- ښـه، ځـای دې آرامــه دی؟ ځکــه د دې مطلــب واضــح کــول لــږ وخــت غواړي، پوهېږې؟

- هو، آرامه ناسته يم.
- دکارت دې ياد دی؟
- فکر کوم، نو، شته يم؟
- زموږ د کړنو د شک ستونزه دا ده، چې پر هماغه لومړي گام په ختو کې بند پاتې شوو. موږ ان دومره نه پوهيږو چې آيا فکر کوو که نه. ښايي ثابته شي، چې موږ تر يوه فکر هاخوا ډېر څه نه يو او دا له فکر کولو سره ډېر توپير لري.
داسې نښې نښانې شته دي چې پر بنسټ يې گومان کولای شو، چې د هيلدې پلار موږ په ليله سن کې لکه يو ډول نانځکې، د خپلې لور د کليزې لپاره پيدا کړي يو، پوهيږې؟
- هو...
- خو دا گومان په خان کې يو ډول تناقض لري. که موږ موهوم او خيالي يو، نو د (گومان کولو) حق نه لرو او دا ټيلفوني خبرې مو هم سر تر پايه يو خيال دی.
- موږ د خپل خان لږ اختيار هم نه لرو، زموږ خبرې او کړنې قومندان برابروي؟ نو ښه به نه وي، چې همدا اوس ټيلفون کېږدو؟
- نه، دا به ډېره ساده گي وي.
- نو توضيح راکړئ.
- ستا په نظر، کله چې خلک خوب ويني، تر مخکې به يې ټول شيان په خوب کې جوړ کړي وي؟ هو، ښايي د هيلدې پلار مخکې له مخکې زموږ له کړنو خبر وي. کېدای شي د قومندان په هکله له هر څه پوهېدو څخه تېښته داسې وي لکه له خپل سيوري چې تښتو. خو زه يوه نقشه لرم معلومه نه ده، څه چې پېښيږي قومندان له وړاندې هغه ټاکلي او مشخص کړي وي. شايد تر وروستي شېبې- يعنې د پيدايښت تر شېبې- پرېکړه نه کوي او په دې شيبه کې موږ کولای شو چې د بل خل لپاره نوښت وکړو او خپلې خبرې او کړنې په خپله تنظيم کړو. البته دا نوښت، د قومندان د

درنو توپخونو په پرتله خامخا یوه ډېره کمزورې وسوسه، هوا او هوس دی.

په ډېر اټکل چې موږ د بهرنیو پېښو لکه د سپي خېټې کول، د کیلې پر پوستکي لیکل شوی پیغام او تالنده او برېښنا پر وړاندې بې دفاع یو؛ خو موږ سخت سري یو، که څه هم دا سخت سري مو ډېره لږ ده، بیا یې هم څوک هیڅ نه شو ګڼلی.

- داسې کوم څه څنګه امکان لري؟

- قومندان زموږ د کوچنۍ نړۍ په ټولو شیانو پوهېږي، خو دا په دې معنا نه ده، چې دی پر هر څه مطلق قادر دی. په هر حال، موږ باید داسې ژوند وکړو لکه دی چې هیڅ نه وي.

- ګومان کوم اوس پوهېږم چې څه ویل غواړې.

- موږ باید هڅه وکړو چې په خپل کار کې نوښت وکړو، داسې کار چې قومندان یې کشف نه شي کړی.

- خو که موږ موجود نه یو، نو څنګه دا ډول کار کولی شو؟

- چا ویل چې موږ موجود نه یو؟ موضوع دا نه ده چې آیا موږ موجود یو کنه، بلکې دا ده چې موږ څه او څوک یو؟ ان که ثابته شي چې موږ د قومندان د هوا او هوس او د دوګوني شخصیت د وسوسې برخه یو، بیا هم دی زموږ د وجود برخه له موږ نه شي اخیستی.

- او یا زموږ آزاده اراده او اختیار؟

- زه پر دې موضوع کار کوم سوفي.

- خو شاید د ګیلډې پلار پوه شي چې تاسو پر دې موضوع کار کوئ.

- حتماً، خو په دې نه پوهېږي چې زما وروستی نقشه څه ده. زه په لټه کې یم چې د ارشمیدسي ټکي په څېر یو ټکي پیدا کړم.

- ارشمیدسي ټکی؟

- ارشمیدس یوناني پوه و، چې ویل یې: (که ماته داسې یو کلک ځای راکړل شي، چې پرې ودرېږم، نو ځمکه به له ځایه وخوځوم). موږ هم

بايد د قومندان لـه نړۍ څخه د تيښتې لپاره همداسې يـو کلـک ځـاى ځان
ته پيدا کړو.

- چې دا آسانه کار نه دى.

- پـه هـر حـال، څـو چې د فلسـفې دا دوره درسـونه پـاى تـه نـه وي رسېدلي، نه
شـو پوهېـدى او څـو چې درس ادامـه لـري قومنـدان بـه زمـوږ ګرېـوان نيـولى
وي. پـه دې کـې شـک نشـته، هغـه پرېکـړه کـړې چـې زه سـتا لارښـود وم او تـا
لـه بيلابيلـو پېړيـو راتېـره کـړم او څېلـې پېـړۍ تـه دې را ورسـوم. همدارنګـه لږ
وخـت نـور پـاتې چـې هغـه د منځنـي آسـيا د کـومې سيمې پـه الوتکـه کې
کېني. نو څکه تر څو ورځو نورو زيات فرصت نه لرو.

تر هغـه چې قومنـدان تـر بـرکلي رسـېږي، کـه مـوږ ونـه شـواى کـړى، چـې د ده
تـر رسـېدو مخکـې ځـان د هغـه د سـخت تخيـل لـه منګولـو خـلاص کـړو، نو
پوه شه چې زموږ فاتحه ويل شوې ده.

- په دې خبرو دې ما ډاروې.

- لومړى بـه درتـه د فرانسـې د روښـانتيا پـړاو لاسـته راوړنـې ووايـم، وروسـته بـه د
کانـت د فلسـفي مطالـب وڅېړو. تـر هغـه چـې ځـان د رومانتيسـيزم غورځنګ
ته ورسـوو. هېګـل بـه هـم زمـوږ پـه انځورونـه کـې لويـه ونـډه ولـري او د هېګـل
پـه بحـث کـې ناچـاره يـو چـې د هېګـل لـه فلسـفې سره د ګرکـه ګـور تونـد
غبرګون تـه هـم اشـاره وکـړو او پـه لنـډه توګـه بـه د مـارکس، ډاروين، او فرويډ
پـه هکلـه هـم خبـرې کـوو. کـه مـو وکـولاى شـو پـه پـاى کـې بـه څـو خبرې د
سارتر د وجودپالنې فلسفې پـه اړه هـم درتـه وکـړم. نـو هغـه وخـت بـه زمـا نقشـه
پلې کېدو ته چمتو وي.

- دا ټول د يوې اونۍ لپاره ډېر زيات کار دى.

- د همـدې لپـاره خـو بايـد ژر لاس پـه کـار شـو. همـدا اوس بايـد زمـا کـره
راشې.

- زه بايـد ښوونځي تـه لاړه شـم. پـه ټـولګي کـې يـو کـوچنى جشـن لـرو او بيا
څېلې نومرې اخلو.

- پرېږده يې. که موږ وهم او خيال يو، نو د مېلمستيا د شربت خوږوالی او خوند هم يو خيال دی.
- خو د ښوونځي نومرې مې...
- سوفي، دو حالته موجود دي. يا موږ د دې حيرانوونکي نړۍ د سلګونو او سلګونو ميلياردو کهکشانو تر منځ په يوه کوچنۍ سياره کې اوسېږو او يا دا چې موږ يوازې د يوه قومندان د ذهن الکترومقناطيسي-خوځښت يو او ته دې د نومرو په فکر کې يې. وشرمېږه نجلۍ!
- وبښئ.
- چې داسې ده نو ښه به دا وي چې لومړی ښوونځي ته لاړه شې او بيا ماته راشې. که د ښوونځي په وروستۍ ورځ دې غيرحاضري وکړې نو دا به پر هيلډې هم اغېز ولري. هيلډه ان د خپلې کليزې په ورځ هم ښوونځي ته ځي. هغه نجلۍ پرښته ده.
- چې له ښوونځي خلاصه شم، مخامخ تاسو ته درځم.
- د قومندان په جونګړه کې به يو بل وينو.
- د قومندان جونګړه؟
... د ټيلفون د ټق غږ.
هيلډې د پلار بسته پر زنګونو کېښوده، پلار يې د هغې وجدان آرامه نه پرېښود- هيلډې د ښوونځي په وروستۍ ورځ غيرحاضري کړې وه- پلار يې څه بلا دی.
څه شېبه په فکر کې شوه: آلبرتو په سر کې څه نقشه لري. څنګه به وي که په غلا آخره پاڼه ولولې؟ نه، دا درغلي ده. ښه به دا وي چې بېړه وکړي او تر آخره يې ولولي.
خو هيلډې دا منله چې په ځينو مواردو کې آلبرتو رښتيا وايي او هغه برخه دا وه، پلار يې ښه پوهېده چې په پای کې پر سوفي او آلبرتو څه راځي. خو د ليکلو پر وخت له هغه څه چې پېښېږي، خبر نه و. ښايي د بيړې له وجې يې ځينې شيان له قلم نه پاتې شي او تر څو مودو وروسته ورته

متوجې نه شي او دلته نو سوفي او آلبرتو تر یوې اندازې د عمل آزادي لري.
یو ځل بیا یې عقیده بدله شوه. باوري شوه، چې سوفي او آلبرتو په رښتیا شته دي، له ځانه سره یې فکر وکړ. ولاړې اوبه ډېرې ژورې دي.
دا فکر یې د څه لپاره ذهن ته راغی؟
پرته له شکه چې څه موده یې په ذهن کې و.
په ښوونځي کې د ټولو پام سوفي ته و، ځکه کلیزه یې وه. ټولګیوال یې د اوړي رخصتیو، نومرو او د ښوونځي وروستي ورځې شربتونو ته خوشاله وو.
ښوونکي ټولو ته د ښو رخصتیو هیله وکړه او ټولګی یې رخصت کړ.
سوفي بې واره د کور پر لور په منډو شوه، یووانا غوښتل مخه یې ونیسي-خو سوفي مخ راواړوه او په لوړ غږ یې وویل، چې کار لري باید بېړه وکړي.
د کور په پوستي صندوق کې دوه کارتونه پراته وو. له لبنانه راغلي وو، چې دواړه د کلیزې د مبارکۍ په اړه وو: د پنځلس کلنۍ کلیزه دې مبارک شه. یو (هیلډې مولرکناګ ته، د سوفي په لاس...) او بل یې په خپله سوفي ته و.
پر دواړو کارتونو (د ملګرو ملتونو د ګارد مُهر- ۱۵ جون) و.
سوفي لومړی خپل لیک ولوست:
*ګرانې سوفي آموندسن! نن تاته هم یو کارت استوم، کلیزه دې مبارک شه. سوفي! د هغو ټولو کارونو لپاره ډېره مننه چې د هیلډې لپاره دې کړي دي.*
*له ښو ېېرزوینو سره*
*قوماندان آلبرت کناګ*
بالاخره د هیلډې پلار سوفي ته هم څه لیکلي وو، سوفي نه پوهېده چې له ځانه څه غبرګون وښیي.

گرانې هیلدې! زه نه پوهیږم چې په لیله سن کې به کومه ورځ او څو بجې وي، خو لکه ومې چې ویل، چندان توپیر نه کوي. څکه تا نبه پېژنم، پوهیږم چې له دومره لرې لارې نه تر وروستي مبارکۍ ویلو پورې به ډېر نه وي ناوخته شوی. خو د شپې ناوخته مه ویده کېږه. آلبرتو به ډېر ژر د فرانسې د روښانتیا پراو په هکله درته خبرې وکړي او اووه ټکي به درته تشریح کړي. هغه ټکي دا دي:

۱- د څواک له سرچینو سره مخالفت
۲- عقلپالنه
۳- د روښانتیا غورځنګ
۴- فرهنگي خوشبیني
۵- طبیعت ته بېرته ستنېدل
۶- طبعي دین
۷- بشري حقونه

دا نو معلومه ده چې قومندان دا ټکي په نظر کې لري.

سوفي کورته ننوته او د شلو پوره نومرو پارچه یې د پخلنځي پر مېز کېښوده. بیا له پیچلې لارې رابهر شوه او په ځنګله کې یې منډې کړې. لږ وخت لا نه و تېر، چې بیا یې په واړه سیند کې پارو واهه او په کوچنۍ کیبنتۍ کې بل لوري ته روانه شوه. آلبرتو د جونګړې تر مخ پر زینه ناست و، نجلۍ ته یې بلنه ورکړه چې تر څنګ یې کښني. له کوچني سیند څخه نازک نمجن ورېم پورته کېده، خو هوا بده نه وه. توپان تر اوسه هم هوا آرامه نه وه پرې ایښې.

آلبرتو وویل: ښه به وي چې خپل درس پیل کړو. وروسته تر هیوم، بل لوی فیلسوف آلماني ایمانویل کانت و، خو فرانسې هم په اتلسمه پېړۍ کې مهم مفکرین درلودل.

ویلی شو چې، په اروپا کې د فلسفې د ثقل مرکز- د اتلسمې پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې انګلستان، د پېړۍ په منځ کې فرانسه او د پېړۍ په پای کې آلمان و.
- په بله وینا، له لویدیځ څخه ختیځ ته یو ډول مکاني بدلون و.
- بلکل، اجازه راکړه، چې په فرانسه کې د روښانتیا پړاو د ځینو فیلسوفانو د ګډو افکارو اصلي کرښې درته بیان کړم.
په دې فیلسوفانو کې نامتو ځېرې مونتسکیو، ولتېر او روسو دي، خو ډېر نور کسان هم وو.
زه به دا اووه ټکي درته ووایم.
- مننه، خو زه پر دې اوو مطالبو له مخکې خبره یم.
سوفي د هیلدې د پلار کارت آلبرتو ته ورکړ. آلبرتو سوړ اسویلی وایست.(ولې بې ځایه ځانته زحمت ورکوې... پر دې بنسټ لومړی مهمه کلمه، د څواک له سرچینو سره مخالفت دی.
د روښانتیا پړاو ډېریو فرانسوي فیلسوفانو له انګلستان لیدنه وکړه. دا هېواد له ډېرو اړخونو د دوی د هېواد په پرتله آزادفکره و او د هغه هېواد طبعي علومو- په ځانګړې توګه نیوټن او د هغه نړیوال فزیک- ته حیران شول.
د برېتانیې فلسفې- چې لاک او د هغه سیاسي فلسفې ته ځانګړې وه- هم دوی ته الهام وباښه. دوی چې کله فرانسې ته بېرته راستانه شول، د پخواني ځواک له سرچینو سره یې ډېر زیات مخالفت وکړ. د دوی به په نظر، تولو هغو واقعیتونو ته باید د شک په سترګه وکتل شي، چې له پخوانیو مورږ ته په میراث پاتې دي. مقصد یې دا و، چې هر څوک باید د خپلو موجودو پوښتنو ځواب په خپله پیدا کړي. په دې لاره کې د کانت دود او لار هم ډېر الهام بښونکې وه.
- ځکه هغه داسې څوک و، چې هر څه یې له بنسټه پیل کړل.

- بلکل، (د څواک لـه سرچينـو سره د مخالفـت بنسـټ)، پـه اتلسـمه پيړۍ کـې په فرانسـه کـې څـو څـو ځلـه د انګلسـتان پـه پرتلـه څـواکمن و. چـې تـر ټولـو زيات د کليسا، پادشاه او اشرافو څواک ته متوجې وو.

- او بيا د فرانسې انقلاب راغی.

- هـو، پـه ۱۷۸۹ کـې. خـو انقـلابي افکـار تـر دې د مخـه پـر پښـو ولاړ وو. بـل مهم مطلب (عقلپالنه) ده.

- زه فکر کوم چې هيوم د عقلپالنې فاتحه ولوسته.

- هيـوم پـه خپلـه تـر ۱۷۷۶ز پـورې ژونـدی و. دا يعنـې شـل کالـه وروسـته تـر مونتسـکيو او يـوازې دوه کالـه لـه ولـتر او روسـو مخکـې. چـې دواړه پـه ۱۷۷۸ز کـې مـړه شـول. خـو درې واړه انګلسـتان تـه ولاړل او د لاک لـه فلسفې سره يې آشنايي پيدا کړه.

خو لاک پر خپلـه تجربـه پالنـه ډېر ولاړ نـه و. د بېلګـې پـه توګـه پـر دې بـاوري و، چـې پـر خـدای ايـمان د انسـان د عقـل اخلاقـي او ذاتي برخـه ده، دا فکـر د فرانسې د روښانتيا پړاو پايه او بنسټ هم و.

- تاسو دا هم ووېل چې فرانسويان تل تر انګليسانو ډېر عقل پال وو.

- هـو او د دې اخـتلاف ريښـه منځنـيو پېړيـو تـه رسـېږي. هغـه وخـت تـه چـې انګرېـزان د (سـليم عقـل) لافـې وهـې، هلتـه فرانسـويان معمـولاً (بـداهت - Evident) تـه پاملرنـه لـري. د دې انګليسي- اصـطلاح معنـا (هغـه څـه چـې ټـول پـرې پـوهېږي) ده او د فرانسـوی اصـطلاح مفهـوم (هغـه څـه چـې بـديهي دي- د انسان د عقل لپاره بديهي)

- صحيح.

- د روښانتيا پـړاو ډېر فيلسـوفان د پخـواني پړاو د انسـان پـالو پـه څېر- لـه هغـې ډلـې سـقراط او رواقيـون- د انسـان پـر عقـل نـه بدلېـدونکی ايـمان درلـود. د فرانسـې روښـانتيا د همـدې څـانګړنې لـه املـه کلـه د عقـل پـړاو پـه نامـه هـم يادېږي. نويو طبعي علومو ښودلې چې طبيعت د عقل تابع دی.

د روښـانتيا پـړاو فيلسـوفانو اوس دا خپلـه دنـده گڼلـه، چـې د بشرـ د لايـزال عقـل پـر بنسـټ د اخلاقـو، ديـن او عمـلي حكمـت لپـاره يـو لنـډيز ومومي؛ چې دا د روښانتيا غورځنگ د رامنځته كېدو لامل شو.

- يعنې درېيم ټكى.

- دا دى اوس د خلكـو روښـانه وخـت را رسـېدلى، پـر دې بنسـټ بايـد يـوه ښـه ټولنـه رامنځتـه كـړو. خلـک پـر دې بـاور وو، چـې فقـر او ستم د نـاپوهى او خرافـاتو حاصـل دى، لـه دې كبلـه د ماشـومانو او نـورو ټولـو وگـړو ښـوونې او روزنې تـه ډېـره پاملرنـه وشـوه. دا تصـادفي نـه ده چـې علـم، ښوونه او روزنـه پـه روښانتيا پړاو كې رامنځته شوي.

- نـو ښـوونځي پـه منځنيـو پېړيـو كـې رامنځتـه شـول او ښـوونه او روزنـه د روښانتيا په پړاو كې.

- سـم دې وويـل. د روښـانتيا پـړاو تـر ټولـو لـوى او تلپـاتې اثـر دايـرة المعـارف دى. موخـه مـې هغـه دايـرة المعـارف دى، چـې لـه ۱۷۵۱ تـر ۱۷۷۲ پـورې خپور شو. ټولو لويـو فيلسـوفانو او اديبـانو هغـه تـه مقـالې وليكـې. ويـل يـې: پـه دايـرة المعـارف كـې (د سـتن لـه جوړولـو نيـولې د تـوپ او توپـک تـر جوړولو) هر څه په كې شته دي.

سوفي وويل: بل ټكى فرهنگي خوشبيني ده.

- تر هغې چې زه خبرې كوم، دا لعنتي كارت لېرې كېږده.

- وېښې.

- د روښـانتيا پـړاو فيلسـوفانو انگېـرل، همـدا چـې علـم او پـوهې وده وكـړه، نـو بشرـ بـه لـوى پرمختـگ وكـړي او ډېـر وخـت لا نـه و تېـر، چـې نـاپوهى او جهالـت خپـل ځـاى (روښـانگرى) انسـانيت تـه پرېښـود- دې فكـر تـر يـوه دوه اونـى مخكـې هـم پـه اروپـا كـې رواج درلـود؛ خـو نـن ورځ مـوږ دومره ډاډه نـه يـو، چـې تـول پرمختگونـه مطلـوب وي. خـو د روښـانتيا پـړاو فيلسـوفانو لـه هماغه زمانې راهيسې پر تمدن نيوكې كولې.

- كه د هغوى خبرو ته موږ غوږ نيولى واى ښه به و.

طبیعت ته بیا ستنبدل د ټولو پر خولو وو. خو د روښانتیا پړاو فیلسوفانو ته د (طبیعت) مفهوم تقریباً له عقل سره معادل و. څکه د بشر عقل تر دین یا تمدن نه زیات، د طبیعت ډالۍ ده. هغه وخت داسې ویل کېدل چې په اصطلاح کلیوال او ددښتو خلک تر اروپایانو ډېر خوښ او سالم دي او د دوی په گومان علت یې دا و چې هغوی (متمدن) شوي نه وو. روسو د (طبیعت ته بېرته ستنېدل) شعار وړاندیز کړ. ده به ویل طبیعت نېک دی او بشر هم طبعاً چې نېک دی او دا تمدن دی چې دوی خرابوي.

روسو همدارنگه باور درلود چې ماشوم باید د امکان تر حده په خپلې طبعي (ساده گۍ) کې وساتل شي. دا به تېروتنه نه وي که ووایو، چې د ماشومتوب ذاتي فکر ته ارزښت ورکول د روښانتیا له پړاو نه را پیل شو. تر هغه زماني ماشومتوب یوازې د بلوغ دورې ته د چمتو کېدو مرحله شمېرل کېده. خو د روښانتیا د فیلسوفانو په وینا، موږ ټول انسانان یو او حتی په ماشومتوب کې موږ خپل عمر پر دې خاورینه ځمکه تېر کړی، ژوند مو کړی او اوسېدلي یو.

-چې دا سمه خبره ده.

-دوی به ویل چې دین هم باید طبعي شي.

-له طبعي دین څخه یې دقیقاً مقصد څه و؟

-مقصد یې دا و، چې دین باید له طبعي عقل سره پرتله شي. ډېریو کسانو په طبعي اصطلاح د دین لپاره مبارزه کوله او دا د مخکینې فهرست شپږم ټکی دی. په دې وخت کې د ماده پالو شمېر ډېر زیات و. دوی پر خدای باور نه درلود او په ښکاره یې د خدای نه منلو چیغې وهلې. خو د روښانتیا پړاو ډېریو فیلسوفانو ویل: بې له خدایه د نړۍ تصور، له عقله لرې دی. نړۍ داسې عقلاني او منطقي نظم لري، چې دا ډول تصور نه شو کولای؛ د بېلگې په توگه، نیوټن هم همدا عقیده لرله. د روح فنا کېدل هم منطقي گڼل کېدل. د روښانتیا پړاو عالمانو، لکه کانت، د روح تلپاتې والی د عقیدې پر ځای تر ډېره د عقل موضوع گڼله.

- دا ډېر عجيب دی. زما په نظر روح د انسان د عقيدې ښه بېلګه ده، نه د هغه څه چې انسان يې مسلم ګڼي.
- دا د دې لپاره چې ته په اتلسمه پېړۍ کې نه يې اوسېدلې. د روښانتيا پړاو فيلسوفانو ويل، د کليسايي تاريخ په اوږدو کې نامعقول احکام يا ښوونې، پر ساده مسيحي ښوونو ورتپل شوې او دوی غوښتل چې مذهب له دې قيده آزاد کړي.
- صحيح.
- په پايله کې ډېرو پر طبعي خدای پېژندنې باور پيدا کړ.
- چې څه ده؟
- طبعي خدای پېژندنه دا ده چې پروردګار پېړۍ، پېړۍ وړاندې نړۍ پيدا کړې، خو له هغه راهيسې يې بيا ځان نه دی ښکاره کړی. نو پر دې اساس خدای (متعالي وجود) دی، چې يوازې د طبيعت او طبعي قوانينو له لارې- نه له بل هيڅ کومې فوق طبعي لارې- انسان ته ځان څرګندوي.
د ارسطو په ليکنو کې هم له دې ته ورته (فلسفي خدای) سره مخ کېږو. د ارسطو له نظره خدای (لومړی محرک) دی.
- اوس يو بل ټکی پاتې دی، يعنې بشري حقونه.
- او دا ټکی تر ټولو مهم دی. ويلی شو چې د فرانسې روښانتيا تر انګليسي- فلسفې ډېره ګټوره او عملي وه.
- مقصد مو دا دی چې فرانسويانو د خپلې فلسفې پر اساس ژوند وکړ؟
- هو، تر ډېره حده. د روښانتيا پړاو فرانسوي فيلسوفانو په ټولنه کې د انسان د موقف په هکله پر نظري عقايدو ښه ونه کړه. دوی د هغه څه لپاره چې (طبعي حقونه) يې ورته ويل، په جګړه پاڅېدل. دا جګړه په لومړي سر کې د - آزادو رسنيو لپاره- سانسور پر ضد د مبارزې په ډول وه. خو بايد په ديني، اخلاقي او سياسي چارو کې هم د يوه کس د فکر او بيان آزادي تضمين شوې وای. تر څنګ يې دوی د مريتوب د له منځه وړلو هڅې

وکړي او لـه خطاکـارانو او زورواکـو سره وجنګېـدل، چـې لـه نـورو سره انساني چلند وکړي.

-زه د دوی له ډېرو خبرو سره موافقه یم.

-(له تعرض څخـه د وګړو خونـديتوب) اصـل د بشري حقونو او ښـاریانو پـه اعلامیه کې، چـې د فرانسـې مـلي غونـډې پـه ۱۷۸۹ کـې تصـویب کـړ، خپـل اوج تـه رسـېدلی و. د بشـري حقونـو دا اعلامیـه پـه ۱۸۱۴ز کـې پـه نـاروې کـې زموږ د خپل اساسي قانون بنسټ شو.

-خو د دې حقونو لپاره باید ډېر خلک جنګېدلي وای.

-له بده مرغه، هـو. د روښـانتیا فیلسـوفانو غوښـتل ثابتـه کـړي، هـر څـوک چـې نړۍ تـه راځـي د حقونـو درلـودونکي دي. د دوی موخـه لـه طبعـي حقونـو څخـه همـدا وه. مـوږ تـر اوسـه د هغـو طبعـي حقونـو پـه اړه غږېـږو، چـې د هېواد لـه قوانینـو سره پـه ټکـر کـې دي او پرلـه پسـې لـه هغـو کسـانو-یـا ان لـه ټولـو هېوادونـو-سره مـخ کېږو چـې د دغـه ګـډوډۍ، بنـده ګـۍ، ظلـم او سـتم پر ضد، خانته (طبعي حق) غواړي.

-د ښځو حقونه څنګه؟

-پـه ۱۷۸۷ز کـې د فرانسـې انقـلاب ټولـو ښـاریانو تـه یـو شـمېر حقونـه وټاکـل، خـو لـه ښـاریانو یـې مقصـد یـوازې سـړي وو، نـو د فرانسـې انقـلاب مـوږ تـه د ښځو او سړیو د برابرۍ لومړۍ بېلګه راکړه.

-او نور یې وخت را رسېدلی و.

-د ۱۷۸۷ز کـال پـه لومړیـو کـې د روښـانتیا پـراو یـوې فیلسـوفې، کندرسـه د ښـځو د حقونـو پـه اړه یـوه رسـاله خپـره کـړه. ویـې ویـل: ښـځې هـم د سـړیو غونـډې څانتـه طبعـي حقونـه لـري. د ۱۷۸۹ز کـال پـه انقـلاب کـې- چـې د پخواني فیـوډالي نظـام پـر ضـد و- ښـځې بـې حـده فعـالې وې. د بېلګـې پـه توګه ښځې پـه لاریونونـو کـې تـر ټولـو مخکښـې وې، دوی پادشاه مجبور کړ چې له خپلـې مـانۍ ورسـای تـه وتښـتي. پـه پـاریس کـې د ښـځو ډلـې جـوړې شـوې، دوی پـه سـیاسي چـارو کـې د ښـځو او سـړیو د برابـرو حقونـو غوښـتلو

سرېېره د ودونو په قوانينو او د ښځو په ټولنيزو احوالو او اوضاع کې هم د بدلون غوښتونکي وې.
- آيا دا حقونه يې تر لاسه کړل؟
- نه، د ځينو نورو مواردو غوندې د ښځو له حقونو څخه دفاع هم د مبارزې په لومړيو کې ومنل شوه، خو همدا چې نوی نظام رامنځته شو پخواني نرواکي بېرته پر ټولنې مسلطه شوه.
- د تل په څېر.
- يو له هغو کسانو چې د فرانسې په انقلاب کې يې تر نورو ډېر د ښځو د حقونو لپاره مبارزه وکړه **اليمپ دوګوژ** وه. دې په ۱۷۹۱ز کې- يعنې دوه کاله وروسته تر انقلابه- د ښځو د حقونو په هکله يوه اعلاميه خپره کړه. (د ښاريانو د حقونو په اعلاميه) کې د ښځو د طبعي حقونو په هکله هېڅ ماده نه وه. اليمپ دوګوژ ښځو او سړيو ته د برابرو حقونو غوښتونکې شوه.
- پايله يې څه وه؟
- په ۱۷۹۳ز کې يې سر ورپرې کړ او د ښځو په طرفداري هر ډول سياسي فعاليت تحريم شو.
- څومره شرم.
- په نولسمه پېړۍ کې د ښځو او سړيو د حقونو برابري، نه يوازې په فرانسه بلکې په ټوله اروپا کې په رښتيا پر پښو ودرېده. دا مبارزه ورو ورو ثمر ښونکې شوه. تر ۱۹۱۳ز کال پورې په ناورې کې ښځو د رايې ورکولو حق نه درلود او د نړۍ په ډېريو ټولنو کې ښځې لا تر اوسه هم د خپلو حقونو لپاره مبارزې پر مخ وړي.
- دا ښځې ما خپله طرفداره شمېرلی شي.
آلبرتو غلی کېناست او کوچني سيند ته يې وکتل، يو دوه دقيقې وروسته يې وويل:

دا د روښانتیا پېراو په هکله هغه لږ معلومات وو، چې غوښتل مې درته يې

ووایم.

-ولې لږ؟

-زه داسې احساسوم لکه موږ چې ډېر فرصت نه لرو.

کله يې چې دا خبره وکړه د واړه سیند اوبه ناڅاپه په ایښېدو شوې، د اوبو

له منځه لوی او وېرووونکی ډېو راووت.

سوفي چغه کړه: د سیند شیطان

نور ډېو خو ځلې ځان وړاندې او وروسته کړ، بیا بېرته د اوبو تل ته ننوت

او اوبه بېرته آرامه شوې.

آلبرتو مخ واړوه او ویې ویل: راځه چې کورته د ننه شو.

دوی جونګړې ته ننوتل.

سوفي ودرېده، د بارکلي او برکلي دوو انځورونو ته یې وکتل. په ګوته يې

د برکلي انځور ته اشاره وکړه او ویې ویل: ګومان کوم هیلده به په دې

انځور دننه کوم چېرې اوسي. د دواړو انځورونو تر منځ قاب شوی

ګلدوزي دسمال ځوړند و، چې پرې لیکلي وو.

آزادي، برابري، ورورولي.

سوفي آلبرتو ته مخ کړ او ویې ویل: دا تاسو هلته راځړولی؟

آلبرتو په غمجنو سترګو سر وخوځاوه. په همدې وخت کې سوفي د

بخارۍ تر څنګ یو کوچنی پاکټ پیدا کړ، پر پاکټ لیکل شوي و: د

هیلدې او سوفي لپاره.

سوفي ژر پوه شوه، چې استوونکی يې څوک دی، خو دا نوي څه وو،

چې سوفي يې هم لږ لږ په حساب کې راوسته. پاکټ يې خلاص کړ او په

لوړ غږ يې ولوست.

*ګرانو! د سوفي د فلسفي ښوونکي باید دا هم ویلي وای، چې د فرانسې د*

*روښانتیا پېراو له دې ارخه هم ډېر ارزښت درلود، چې دا پېراو د ملګرو*

*ملتونو د اصولو او ارمانونو لپاره بنسټ شو. د آزادۍ، برابرۍ او ورورولۍ*

*شمار دوه سوه کاله پخوا د فرانسې خلک سره یو موټي کړي وو. نن ورځ باید همدا شان کلمې ټوله نړۍ سره یو ځای کړي. تر بل هر وخت زیات اوسمهال دا ډېر ارزښت لري، چې بشر-یوه لویه کورنۍ شي. راتلونکې زموږ د ماشومانو او د ماشومانو د ماشومانو ده. دوی ته به له موږ نه څه ډول یوه نړۍ په میراث پاتې شي؟*

د هیلډې مور له ښکته راغږ کړل: تر لسو دقیقو تلویزیوني فلم پیلېږي او پیتزا مې هم په داش کې ایښې ده چې ګرمه شي. هیلډه هم نور له ډېرو لوستلو ستړې شوې وه، د سهار له شپږو یې چې سترګې خلاصې کړې تر اوسه په لوستو بوخته وه؛ نو پرېکړه یې وکړه، چې پاتې شپه له مور تېره کړي او خپله کلیزه ونمانځي. خو لومړی باید په قاموس کې یو څه ولټوي.

ګوژ... نه. دوګوژ؟ په دې هکله څه وو. الیمپ دوګوژ؟ بیا هم څه نه وو. د هغې ښځې په هکله یوه کلمه هم نه وه، چې د خپلو باورونو لپاره یې سر ووهل شو... دا ډېره د شرم خبره نه ده؟

آیا پلار خو به یې دا ښځه له خانه نه وي راوستې؟ هیلډې په منډه ښکته شوه او لوی دایرة المعارف یې را واخیست. مور ته یې، چې حیران یې ورته کتل، وویل: باید یو شی په کې وګورم.

د دایرة المعارف لوی کورنی ټوک یې واخیست او بېرته خپلې کوټې ته په منډه لاړه. ګوژ... اهه دا دی!

*ګوژ، ماري الیمپ (۱۷۹۳-۱۷۴۸)، فرانسوی لیکواله، د ټولنیزو مسایلو په اړه یې څو متعددې رسالې او نمایشنامې خپرې کړې، چې د فرانسې د انقلاب په دوران کې یې مهم رول درلود. له هغو معدود کسانو وه چې د انقلاب پر وخت یې د ښځو د بشري حقونو لپاره مبارزه وکړه. په ۱۷۹۱ز کې یې (د ښځو د حقونو اعلامیه) خپره کړه. له شپاړسم لویي څخه د دفاع او له روبسپیر سره د مخالفت لپاره په ۱۷۹۱ز کې یې سر ورپرې شو.*

## کانت

**په ستورو ډک اسمان چې مو پر سر دی او اخلاقي موازین چې مو په زړه کې دي**

نږدې نیمه شپه وه چې قومندان آلبرت کناګ کور ته زنګ وواهه. چې د هیلډې د کلیزې مبارکي ووایي. د هیلډې مور ټیلیفون ته ځواب ورکړ.

- هلو؟
- زه یم، پلار.
- کم عقل یې؟ د شپې نږدې دولس بجې دي.
- ما یوازې غوښتل د کلیزې مبارکي ووایم.
- دا خو دې ټوله ورځ وویل.
- خو ما ویل، ترهغه چې ورځ نه وي تېره شوې، زنګ نه وهم.
- د څه لپاره؟
- لکه چې زما ډالۍ دې نه ده تر لاسه کړې؟
- نه، راورسېده. ډېره مننه.
- زه ناکراره یم، ووایه، ستا نظر په کې څه دی؟
- ډالۍ عالي ده، نن مې ډوډۍ پر خوله نه ده اېښې، ډېره حیراوونکې ده.
- ښه، دا راته ووایه چې چېرته رسېدلې یې؟
- نوې د قومندان جونګړې ته دننه شوې، تا له اوبو ډېر را ایستلی.
- د روښانتیا پړاو.
- او الیمپ دوګوژ.
- نو ما ډېره تېروتنه هم نه وه کړې،
- تېروتنه؟ له کوم لحاظه؟
- زه ګومان کوم چې یوه بله د کلیزې مبارکي هم پر لاره ده، خو دا یوه به موزیکاله وي.
- نو ښه به شي چې مخکې تر خوبه لږ نور هم ولولم.
- تر اوسه بې په لوستو نه یې مړه شوې؟

- ما نن دومره څه زده کړل، چې ټول عمر مې نه وو زده کړي. هېڅ مې باور نه کېږي چې يوازې څلورويشت ساعته مخکې سوفي له ښوونځي نه کورته راغله او لومړی پاکټ يې پيدا کړ.

- عجب، خومره ژر دې لوستی.

- خو زړه مې يې په حال سوځي.

- د مور په حال؟

- نه، د سوفي په حال.

- ولې؟

- بېچاره نجلۍ، بيخي حيرانه شوې.

- مګر هغه خو ...

- غواړې ووايې، چې هغه ما پيدا کړې؟

- هو، همداسې څه.

- خو زه فکر کوم لکه سوفي او آلبرتو چې په رښتيا موجودې وي.

- هر وخت چې درغلم، په هکله يې درسره خبرې کوم.

- سمه ده.

- ورځ په خير.

- څه؟

- يعنې شپه په خير.

- شپه په خير.

هيلده نيم ساعت وروسته د خوب تخت ته ولاړه، خو هوا دومره روښانه وه، چې بڼ او سيند ښه ليدل کېدل. د کال په دې وخت کې به هېڅکله ډېره تياره نه وه.

په خپل ذهن کې يې پر دې تصور لوبې کولې، چې اوس د ځنګله د کوچنې جونګړې پر دېوال يو انځور را ځوړند دی. له خانه سره يې وويل: انسان کولای شي، چې د عکس دننه خپله شاوخوا وګوري.

مخکې تـر دې چـې خـوب یـې یـوسي، څـو مخـه نـورې لیکنـې یـې هـم ولوستې.

سوفي د هیلـدې د پـلار لیـک پرانیستی د بخـاری تـر څنـګ کېښـود. آلبرتـو وویـل: د ملګـرو ملتونـو پـه هکلـه یـې خـبره بـې ارزښـته نـه ده. خـو نـه مـې خوښېږي چې زما په کار کې کار لري.

-زما په نظر باید دومره اندېښنه ونه کړې.

-پرېکړه مـې کـړې چـې تـر دې وروسـته ټولـو حیرانوونکـو پېښـو، لکـه د اوبـو ډېو او داسـې نـورو تـه، ځـای پـرې نـه ږدم. راځـه دلتـه د کړکـۍ ترڅنـګ کېنـو، چې د کانت داستان درته ووایم.

د دوو مېزونو او په منځ کې یې پر کـوچني مېـز بانـدې عینکـې، د سـوفي نظـر ځانته واړاوه، همدارنګه یې پام شو چې د عینکو ښیښې سرې دي.

د لمر ضد عینکې به وي...

نجلـۍ وویـل: تقریبـاً د ماسپښـین دوه بجـې دي، زه بایـد مخکـې تـر پنځـو پـه کور کې وم. مور به مې ضرور د کلیزې لپاره څه تیاری لري.

-یعنې درې ساعته وخت لرو.

-پیل به یې کړو.

-ایمانویـل کانـت پـه ۱۷۲۴ز کـې د ختـیځ پـروس پـه کونیګسـبرګ ښـار کـې نړۍ تـه راغـی. پـلار یـې د سراجـۍ اسـتاد و. کانـت پـه اتیـا کلنـۍ کـې مـړ شـو، ده ټـول عمـر پـه همـدې ښـار کـې تېـر کـړ. کـورنۍ یـې ډېـره دینـداره وه. د کانـت خپلـه عقیـده د ده د فلسـفې د رامنځتـه کېـدو مهمـه وسـیله وه. کانـت هـم د بـارکلي پـه څېـر بـاوري و، چـې د مسـیحي ایـمان بنسټ بایـد وسـاتل شي.

-هیله کوم، بیا د بارکلي نوم راته مه اخلئ.

-د هغـو فیلسوفانو تـر منځ چـې تـر اوسـه مـو پـرې بحـث کـړی، کانـت لـومړی کس و، چې په پوهنتون کې یې فلسفه تدریسوله. د فلسفې استاد و.

-استاد؟

- دوه ډوله فيلسوفان لرو. يو هغوی چې د خپلو فلسفي پوښتنو لپاره په خپله شخصاً په خوب پسې ګرځي او بل د فلسفې د تاريخ کارپوهان دي، خو له ځانه کومه فلسفه نه لري.
- او کانت له دويمې ډلې و.
- کانت له دواړو ډلو و. که هغه يوازې د نورو فيلسوفانو د مفکورو متخصص او پوه وای، نو هيڅکله به يې د فلسفې په تاريخ کې دا ډول ځای نه وای خپل کړی او دا ډېره مهمه ده، چې ووايو، کانت د پخوانی فلسفې د دود په هکله ډېره پوهه درلوده. هم د دکارت او سپينوزا له عقلپالنې سره آشنا و او هم د لاک او بارکلي له تجربې پالنې سره.
- ما خو وويل کنه، د دې کس نوم بيا مه اخلئ.
- او څنګه چې پوهېږې، عقلپالو ويل، د انسان د معرفت اساس ټول په ذهن کې دی. تجربه پالو ويل، د نړۍ پېژندنه زموږ د حواسو زېږنده ده. همدارنګه هيوم يادونه وکړه چې پر حسي-ادراک پوهېدل ځينې ښکاره محدوديتونه لري.
- او کانت کومه لاره ونيوه؟
- د کانت په نظر دواړه ليدلوري تر يوې اندازې سم او تر يوې اندازې ناسم وو.
کومې مسئلې چې د دوی ذهنونه ځانته را اړولي وو، دا وه چې د نړۍ لپاره څه کولای شو؟ د فلسفې دې طرحې د کانت له زماني راهيسې د ټولو فيلسوفانو هوښ او حواس يووړل. دوی دوه ځيزونه وړانديز کړل:
نړۍ دقيقاً هغه ده، چې موږ يې پر خپلو حواسو درک کوو او يا نړۍ هغه ډول ده لکه څنګه چې زموږ عقل ته رسېږي.
- او کانت څه ويل؟
- کانت ويل د نړۍ په درک کې هم حس ونډه لري او هم عقل. خو د ده په نظر عقلپالو د عقل په کارونه کې او تجربه پالو د حسي- تجربې په کارونه کې له غلو کار اخيستی.

- که مثال ونه وايې نو دا به راته تش الفاظ وي او بس.
- د بحث په پیل کې کانت د هیوم او تجربه پالو خوا نیسي-او وايي (د نړۍ پېژندنه ټوله زموږ له محسوساتو حاصلیږي) خو- دلته کانت د عقلپالو خواته ځي- زموږ په عقل کې ځینې داسې ټاکونکي عوامل موجود دي، چې موږ پرې نړۍ درک کولای شو. په بله وینا، د انسان ځینې ذهني احوال، زموږ د نړۍ په درک کولو کې اغېز لري.
- دا مثال و؟
- راځه چې یو کوچنی آزمایښت ترسره کړو. هغه عینکې د مېز له سره راواخله. مننه کوم. اوس یې په سترګو کړه.
سوفي عینکې پر سترګو کړې، د شاوخوا ټول شیان سره وو. ضعیف رنګونه نور هم پیکه شول او تېز رنګونه ارغواني.
- څه شی وینې؟
- هماغه شیان چې مې مخکې لیدل، خو په دې توپیر سره چې ټول شیان سره شوي دي.
- دا د دې لپاره چې عینکې د هستی په اړه ستا حسي- درک محدودوي. هر څه چې وینې ستا د شاوخوا نړۍ یوه برخه ده، خو ستا لیدلوری په هغو عینکو پورې اړه لري، چې تا په سترګو کړې؛ نو ته نه شې کولای، چې ووایې نړۍ سره ده، که څه هم ستا حسي درک همدا ډول دی.
- نه، طبعاً چې نه.
- که اوس لاړه شې او په ځنګله کې یا د خپل کور تر مخ قدم ووهې، نو په لاره کې به ټول شیان هماغسې وي لکه څنګه چې مخکې وو، خو اوس ټول سره رنګ شوي.
- تر هغه چې مې دا عینکې پر سترګو دي، هو.
- سوفي، کله چې کانت وویل، د انسان ځینې ذهني حالات، زموږ د نړۍ په درک کولو کې اغېز لري. دقیقاً مقصد یې همدا و.
- څه ډول حالات؟

- کوم څه چې موږ وينو د حسي- درک په لومړي پړاو کې د زمان او مکان پديدې دي. کانت (زمان) او (مکان) زموږ د شهود، دوه صورته ويلل او تينګار يې وکړ چې دا دوه صورته زموږ په ذهن کې له تجربې وړاندې کيږي.

په بل عبارت، مخکې تر دې چې يو څه تجربه کړو، پوهيږو چې هغه به په زمان او مکان کې حسي- درک کړو. ځکه د عقل عينکې له سترګو نه شو لرې کولای.

- يعنې ده فکر کاوه، چې د ځيزونو درک د انسان په ذاتي زمان او مکان کې دی؟

- په يوه مفهوم هو. کوم ځيزونه چې موږ وينو، څه تړاو لري له دې سره چې موږ په هندوستان کې لوی شوي يو که په ګرونيلند کې؛ خو په هر حال، هر څه چې يو، بيا هم موږ نړۍ په يو لړ زماني او مکاني پېښو سره تجربه کوو او دا هغه څه دي چې مخکې له مخکې يې ويلای شو.

- دا بيخي نوی نظر و.

- د انسان ذهن (نرم موم) نه دی، چې يوازې بهرني محسوسات جذب کړي، بلکې په خپله ذهن هم له نړۍ څخه زموږ د درک پر څرنګوالي اغېز لري. ذهن يو ګيلاس اوبو سره ورته بللی شو، هماغه ډول چې اوبه- که وغواړو يا نه- د ګيلاس بڼه خپلوي، زموږ حسي-ادراک هم له شهودي صورتونو سره تطبيق کېدای شي.

- ګومان کوم په مقصد مو پوهيږم.

- کانت ويل، يوازې ذهن نه دی چې ځان له ځيزونو سره ورته کوي، ځيزونه هم له ذهن سره مطابقت پيدا کوي. کانت دې ته - د انسان پېژندنې په مسئله کې- کوپرنيکي انقلاب وايه. مطلب يې دا و، کوپرنيک ادعا وکړه، چې ځمکه تر لمر څرخي نه چې برعکس لمر تر ځمکې را وڅرخي؛ يو انقلاب يې رامنځته کړ. د کانت فکر هم د هغه په څېر لوی د او له نورو پخوانيو مفکورو سره يې توپير درلود.

- اوس پوه شوم چې ولې یې ویل، هم عقلپال او هم تجربه پال تر یوې اندازې سم دي. عقل پالو د تجربې ارزښت تقریباً له یاده ایستلی و او تجربه پالو د نړۍ په لیدلوري کې د ذهن اغېز ته د هېڅ په سترګه وکتل.
- د کانت په باور، ان د علیت قانون - چې هیوم معتقد و انسان یې نه شي تجربه کولی- په ذهن پورې اړه لري.
- هیله کوم دا راته واضح کړئ.
- په یاد دې دي، چې هیوم ادعا لرله، د عادتونو ځواک موږ مجبوروي چې د هرې طبعي پېښې علت او معلول ولټوو. د هیوم په وینا، موږ د حس په وسیله نه شو معلومولی چې د بیلیارد د سپین توپ د حرکت علت تور توپ دی. نو له دې امله موږ دا نه شو ثابتولی، چې د بیلیارد تور توپ تل سپین توپ په حرکت راولي.
- هو، دا مې په یاد دي.
- خو څه چې هیوم وایي، د ثابتولو وړ نه دي؛ کانت یې د انسان د عقل له ځانګړنو څخه یوه ځانګړنه بولي. د علیت قانون له دې امله ابدي او مطلق دی څکه هر څه چې پېښېږي د انسان عقل په کې د علت او معلول اړیکه ویني.
- ما فکر کاوه، چې د علیت قانون به په فزیکي نړۍ پورې اړه لري او زموږ په ذهن به کار نه لري.
- خو د کانت د فلسفې پر بنسټ دا زموږ ذاتي قانون دی. کانت له هیوم سره همنظره دی، موږ په قطعي توګه نه شو پوهېدلی، چې نړۍ (په خپل نفس کې) څنګه ده. موږ یوازې دومره پوهېدای شو، چې نړۍ (زما لپاره)- یا د بل هر چا لپاره- څه ډول ده.
فلسفې ته د کانت تر ټولو لوی خدمت دا و، چې د واټن یوه کرښه یې وایسته، د دې کرښې پر اساس ځیزونه چې څنګه موږ ته ښکاري او ځیزونه چې څنګه په خپل ذات کې دي، سره بېلوي.
- زما آلماني دومره ښه نه ده زده.

- کانټ ويل د (شی په خپل نفس کې) او (شی زما په نظر) تر منځ مهم توپير موجود دی. د (شيان په خپل نفس کې) په اړه موږ هېڅکله پرېکنده پېژندنه نه شو لرلای. موږ يوازې د څيزونو په (بڼه) پوهېدلای شو. له بلې خوا مخکې تر هر ډول عملي تجربې، له څيزونو څخه د انسان د ذهن د درک په هکله يو څه ويلی شو.
- څنګه؟
- سهار مخکې تر دې، چې له کوره بهر ووځې، نه پوهېږې چې نن به څه وينې يا څه به تجربه کوې، خو په دومره پوهېږې، چې کوم څه وينې او تجربه کوې، ستا په حسي- درک کې د زمان او مکان يوه پېښه ده. همدارنګه ډاډه اوسه چې د علت او معلول قانون هم په دې کې ونډه لرلای شي، ځکه دا قانون زموږ په ضمير او خبرتيا کې برخه لري.
- يعنې له دې پرته بل څه هم کېدای شوای؟
- هو. کېدای شوای، چې زموږ حسي- دستګاه بل ډول وای او کېدای شوای چې له زمان څخه زموږ احساس يو ډول او له مکان څخه زموږ احساس بل ډول وای. ان داسې هم کېدای شوای چې پرله پسې د هرې پېښې په علت پسې نه ګرځېدی.
- مطلب مو څه دی؟
- داسې فکر وکړه، لکه يوه پيشو چې د ناستې کوټې پر غولي پرته وي، يو توپ کوټې ته دننه راشي، پيشو به څه وکړي؟
- ما دا کار څو ځلې امتحان کړی، پيشو به توپ پسې منډې وهي.
- ډېر ښه، اوس داسې تصور کړه لکه ته چې په کوټه کې ناسته يې او ناڅاپه يو توپ له بهره کوټې ته دننه را ګزار شي، ته به هم په توپ پسې منډه کړې؟
- لومړی ځم او ګورم چې توپ له کومه ځايه راغلی.
- هو، ځکه ته انسان يې او انسان ناچاره دی، چې د هرې پېښې په علت پسې وګرځي. د عليت قانون د انسان د وجود يوه برخه ده.

-داسې کانټ وویل.
-هېرە دې وشوله چې د طبیعت قوانین موږ په حس نه شو درک کولای او نه ثابتولی شو. دې خبرې کانټ اندېښمن کړ، کانټ ویل مطلق اعتبار نه شي ثابتولی شي، ځکه په حقیقت کې خبره د انساني معرفت له قوانینو ده.
-ماشوم ځنګه؟ هغه به هم لومړی دا ګوري چې توپ له کومه ځایه راغلی؟
-نه! خو کانټ یادونه وکړه، تر هغه چې د ماشوم عقل ځینې (حسي-فزیکي) تمرین نه وي کړي، بشپړه وده نه شي کولای. خالي ذهن په بولیزه توګه بې معنا خبره ده.
-او هم عجیبه غریبه.
-نه. لنډیز به یې وواېو، دوه عنصره د نړۍ په پېژندنه کې له انسان سره مرسته کوي. یو یې احوال، تر هغه یې چې د حواسو له لارې درک نه کړو، نه شو پرې پوهېدای. دې ته د (پېژندنې ماده) وایو. بل یې د انسان خپل داخلي احوال دي- لکه د پېښو حسي- درک پر وړاندې د نه بدلېدونکي علیت تابع قانون چې په زمان او مکان کې پېښېږي. دې ته د پېژندنې صورت وایو.
آلبرتو او سوفي څه موده غلي کېناستل او له کړکۍ یې بهر ته کتل، ناڅاپه د سوفي سترګې د واړه سیند ورهاخوا د ونو تر منځ په کوچنۍ نجلۍ ولګېدې.
سوفي وویل: هغې ته ګوره، دا نو څوک ده؟
-زه نه یم خبر.
نجلۍ څو شېبې ښکارېده، وروسته ورکه شوه، خو سوفي ولیده چې سره خولۍ یې پر سر وه.
-موږ باید په هېڅ وجه چاته اجازه ورنه کړو، چې حواس مو ګډوډ کړي.
-نو مهرباني!

- د کانت په باور، په هغو شيانو چې مور پوهېدلی شو، ځانته يو حد لري، يا ښايي داسې يې ويل، چې د ذهن (عينکې) دا حدود ټاکي.
- څنګه؟
- په ياد به دې وي، چې له کانت نه مخکې فيلسوفانو په رښتيا د مهمو موضوعاتو په اړه بحث کاوه. د بېلګې په توګه: انسان نه فنا کېدونکې روح لري؟ خدای موجود دی؟ طبيعت له کوچنيو ذرو څخه جوړ دی؟او دا چې نړۍ د کايناتو پای ده که کاينات پای نه لري؟
- هو!
- کانت باوري و، چې دې ډول موضوعاتو ته پرېکنده تعريف نه شو موندلی. البته دا ډول بحثونه يې مردود نه شمېرل. خو برعکس، که دا ډول مسايل يې يوې خواته پرې ايښي وای، نو فيلسوف به نه ګڼل کېده.
- نو بلاخره څه يې وکړل؟
- صبر ولره. کانت په دې نظر و، چې عقل د دومره مهمو فلسفي موضوعاتو په اړه د انسان د پوهې له مخې کار کوي. په همدې حال، زمونږ په خپل طبيعت کې هم داسې بنستيز شوق او شور شته چې دا ډول پوښتنې مطرح کولی شو. خو د بېلګې په توګه کله، چې مونږ پوښتنه کوو، نړۍ پای لرونکې موجود ده که ناپايه، نو د داسې کليت په لټه کې کېږو، چې مونږ پخپله د هغه ناڅيزه برخه يو. په همدې دليل هېڅکله نه شو کولای، چې له دې کليت څخه په بشپړه توګه ځان خلاص کړو.
- ولې نه.
- ځکه سرې عينکې مو پر سترګو دي. مخکې مو وويل، چې د کانت په نظر دوه عنصره له مونږ سره د نړۍ په پېژندلو مرسته کوي.
- حسي ادراک او عقل.
- هو. (د پېژندنې ماده) د حواسو له لارې مونږ ته را رسېږي، خو دا ماده بايد د عقل له موازينو سره همغږې وي. د بېلګې په توګه، د عقل له موازينو يو دا دی، چې د هرې پېښې علت مومي.

- مثلا ولې توپ د کوټې پر غولي ولګید؟
- مثلاً کله چې له ځانه پوښتو، نړۍ له کومه شوې - او د بیلابیلو ځوابونو په هکله خبرې اترې کوو - په یوه مفهوم عقل د (تعلیق) په حالت کې وي؛ ځکه ماده نه لري، چې په کار یې واچوي، کومه تجربه نه لري چې ترې ګټه واخلي، موږ دا لویه هستي - چې په خپله یې یوه ناچیزه برخه یو - نه ده تجربه کړې.
- یعنې موږ د هغه توپ کوچنی ذره یو چې پر ځمکه لګېږي. له همدې امله موږ نه شو پوهېدای چې دا توپ له کومه ځایه راغلی.
- مګر د عقل ځانګړنه همدا ده، چې تل پوښتي، توپ له کومه ځایه راغی. په همدې دلیل له پوښتنو نه پاتې کېږي او خپل ټول توان پر کار اچوي څو د ډېرو ژورو پوښتنو ځواب پیدا کړي. ځکه عقل د دغو موخو په پلټولو برلاسی نه دی.
- زه دا حالت ښه پېژندلی شم، ډېره مننه.
- د دې ډول مسایلو په هکله، مثلاً د هستي ماهیت، کانت داسې ځرګندونه وکړه چې تل به دوه متضاد لیدلوري موجود وي، دا لیدلوري تر یوې اندازې زموږ د عقل په تشخیص، زغم یا نه زغم پورې اړه لري.
- هیله کوم، مثال.
- که داسې ووایې، چې نړۍ هرومرو له یوه زمانه را پیل شوې یا که ووایې دا ډول چې ده پیل یې داسې نه دی، نو له دې دواړو خبرو یوه یې بې مانا نه ده. عقل نه شي کولای د دې دواړو تر منځ یوه یې وټاکي، خو موږ دا نظر ورکولی شو، چې نړۍ له پخوا راهیسې تل موجوده ده؛ خو هغه څه چې هېڅکله یې پیل نه دی درلودلای، کولی شي چې تل موجود وي؟
په دې صورت کې ناچاره یو چې خلاف نظر وړاندې کړو.
- موږ وایو، نړۍ باید په یوه وخت کې را پیل شوې وي - او بې شکه چې نړۍ له هېڅه راپیل شوې - خو که وغواړو، چې له یو حالت څخه د بل

حالت بدلولو په اړه خبرې وکړو، نو امکان لري چې يو شی له هېڅ نه را پيدا شي سوفي؟
- نه دواړه امکانه پېچلي دي او يو تر بل کم نه دي خو بيا هم بايد يو يې سم او بل يې ناسم وي.
- شايد په ياد دې وي، چې دموکريتوس او ماده پالو ويل، د طبيعت هر څه له وړو ذرو څخه جوړ شوي، ځينې نور، لکه دکارت، په دې عقيده وو، مادي هستي بايد تل د دې وړتيا ولري چې په وړو او خورا وړو برخو ووېشل شي. اوس ته ووايه، کوم يوه يې سم ويل؟
- دواړو. هېڅ يوه.
- او بيا ډېريو فيلسوفانو خپلواکي او اختيار مهم انساني ارزښتونه وبلل، له بلې خوا مو وليدل چې ځينې فيلسوفان لکه رواقيان، همدارنګه سپينوزا ويل، ټول ځيزونه د طبيعي قوانينو معلول دي. د کانت په وينا دا هغه بل مورد و چې د بشر عقل په کې د پرېکنده پرېکړې توان نه لري.
- دواړه نظرونه څومره چې معقول دي، هغومره نامعقول هم دي.
- او په پايله کې هر څوک چې د عقل په ملتيا د خداى وجود په اثبات رسوي، پاتې راغلي. په دې برخه کې عقل پالو، لکه کانت، هڅه وکړه، ثابته کړي چې بايد يو خداى موجود وي او کنه نو د (متعال وجود) فکر به زموږ ذهن ته لاره نه موندله. ځينې نور لکه ارسطو او توماس آکويناس په دې نظر وو، چې بايد يو خداى موجود وي، که څه هم ټول ځيزونه اوليه علت لري.
- کانت څه ويل؟
- کانت د خداى د موجوديت دا دوه دليلونه رد کړل. ويې ويل عقل او تجربه هېڅ يو د خداى د وجود د دعوا لپاره ټينګ اساس نه شي کېداى. عقل کولاى شي چې د خداى د وجود مدعي او يا د خداى له وجود څخه منکر شي.

- مګر تاسو په لومړي سر کې وویل چې کانت غوښتل د مسیحي ایمان بنسټ وساتي.

- هو، هغه نوی دیني اړخ را پرانیست. ده وویل، چېرته چې عقل او تجربه نیمګړې شي نو د نیمګړتیا دا تشه په ایمان ډکولی شو.

- نو مسیحیت به دا ډول وژغوره؟

- که اجازه دې، باید دې ته هم پام وي، چې کانت پروتستانت و. د پروتستانت د ډلې مهمه ځانګړنه دا وه، چې د دین د اصلاح په زمانه کې به پر ایمان ډېر ټینګار درلود. له بلې خوا کاتولیکې کلیسا، د منځنیو پېړیو له پیل راوروسته، تر ډېره عقل د ایمان ستنه بلله.

- خو کانت پر دې بسنه ونه کړه، چې یوازې ووایي، دا مسایل باید د هر چا خپل ایمان ته پرېښودل شي. د هغه په عقیده پر اخلاقو واجب دی، چې د خدای پر وجود او د انسان د روح په بقا او اختیار فرض کېږدي.

- نو کانت هم هماغه کوي، چې دکارت وکړل. لومړی پر هر د درک وړ ځیز باندې نیوکه کوي او بیا وروسته د خدای مسله په قاچاقي ډول له شاتنۍ دروازې څخه را دننه کوي.

- خو د کانت پر خلاف، ده ټینګار درلود، چې ایمان دې ځای ته راوستی شي نه عقل. کانت د روح پر بقا ایمان، د خدای پر وجود ایمان او د انسان پر وجود ایمان عملي انګېرنه بللې.

- یعنې څه؟

- انګېرنه یعنې د هغه څه فرض کول چې نه اثباتېږي، د کانت مطلب له (عملي انګېرنو) څخه هغه ځیزونه دي، چې باید د (کردار) لپاره- یعنې د انسان اخلاق- فرض شي. ویل یې: (د خدای د وجود فرضول یوه اخلاقي اړتیا ده).

ناڅاپه چا دروازه وټکوله، سوفي پاڅېده خو آلبرتو له خپل ځایه ونه خوځېد. نجلی وویل:

- نه به نه وي، چې وګورم څوک دي؟

آلبرتـو اوږې پورتــه واچــولې او زړه نــا زړه پاڅېــد. دروازه يـې خلاصــه کړه، يـوه نجلـی د دروازې تـر شـا ولاړه وه، د اوږي سـپين کـالي يـې پـر ځـان وو او سره بند داره خولی يې پر سر وه.

دا هماغــه نجلــی وه، چــې د واړه ســیند ورهــاخوا یــې لیــدلې وه، د خــوړو ټوکوری يې په يوه لاس کې نيولې وه.

سوفي وويل: سلام، ته څوک يې؟

- لکه چې نه مې وينې، زه سره خولی والا يم.

سوفي آلبرتو ته وکتل، آلبرتو سر وخوځاوه او ويې ويل:

- وا دې نه وريدل چې څه يې وويل؟

نجلـی وويـل: زه د خپلـې انـا پـه کـور پسـې گـرځم، بـوډۍ ناروغـه ده، هغـې تـه خواړه وروړم.

آلبرتو وويل: دلتـه نشـته، نـور مـوږ پرېـږده. او لاس يـې داسـې وښـوراوه لکـه لـه ځانه چې مچ شړي.

سرې خـولی والا وويـل: يـو ليـک هـم راسره دی چـې بايـد تـر مقصـده يـې ورسوم.

کوچنی ليک يې را وايست، سوفي ته يې ورکړ او بېرته روانه شوه.

سوفي پسې چغه کړه: گوره چې لېوه ته دې پام وي.

آلبرتـو بېرتـه د ناسـتي کـوټې تـه تللـی و. سـوفي وويـل: تـه يـې فکـر وکـړه، دا سره خولی والا وه.

- هغـې تـه کـه هـر څـومره د لېـوه پـه هکلـه ووايـې کومـه گټـه نـه لـري، ښـه پـوهيږې چـې د خپلـې انـا کورتـه ورځـي او هلتـه يـې لېـوه خـوري. تـه بـه هېڅکله زده نه کړې چې دا پېښه تر ابده تکرارېږي.

- مگـر تـر اوسـه دې کـوم چېـرې اورېـدلي وو، چـې سره خـولی والا مخکـې تر دې چې د خپلې انا کورته ورسېږي، د بل چا دروازه هم ټکوي؟

- نو سوفي، دا خو د پېښې په بدلولو کې کار نه لري.

سوفي هغه لیک ته- چې نجلۍ یې په لاس کې ورکړی و- وکتل، پرې لیکلي وو... هیلدې ته!

د لیک پاکټ بې پرانیست، په لوړ غږ یې ولوست:

ګرانې هیلدې!

*که د انسان مغز دومره ساده وی، چې موږ په آسانه پرې پوهېدلی شوای، نو تر اوسه به داسې احمق وای چې هېڅ به مو ځان تري نه شوی خلاصولی.*

*پلار دې در ځار شه!*

آلبرتو سر وخوځاوه: رښتیا وایي، ګومان کوم کانت هم به دې اړه څه ویلي. موږ دا تمه نه شو ساتلی چې پوه شو څه یو. شاید وتوانېږو چې پوه شو ګل یا حشره څه ده، خو پر خپل ځان هېڅکله نه شو پوهېدای. او دا د کایناتو تر ټولو سخته پوهېدنه ده.

سوفي څو ځلې د لیک مرموز یادښت، چې هیلدې ته لیکل شوی و، ولوست، بلاخره د آلبرتو غږ پورته شو:

-موږ باید اجازه ورنه کړو، چې د اوبو دېو او ځینې نور شیان لکه (سنو وایټ) زموږ د کار مخه ونیسي- مخکې تر دې چې د نن درس پای ته ورسوو، غواړم د کانت د اخلاقیاتو په اړه څو کلمې درته ووایم.

-لطفاً بېړه وکړئ، وروسته باید کور ته لاړه شم.

-پر دې د هیوم شک چې عقل او حواس موږ ته څه ویلی شي، کانت مجبور کړ چې د ژوندانه په ډېرو مهمو مسایلو کې له سره فکر وکړي. تر ټولو مهم د اخلاقو په اړه.

-هیوم ویلي و، موږ هېڅکله نه شو ثابتولی، چې څه پر حق او څه ناحق دي. د (دي) کلمې پر ځای د (باید) کلمه نه شو کارولی، کنه؟

-د هیوم په نظر نه عقل او نه تجربه، بلکې زموږ احساسات دي چې حق له ناحق څخه بېلوي. چې دا د کانت لپاره قوي بنسټ نه و.

-هو، اټکلولی یې شم.

- کانټ ټول فکر کاوه، د حق او ناحق توپیرول د عقل کار دی، نه د احساس. دلته د عقلپالو په طرف و چې ویل یې: د انسان ذاتي عقل د حق او ناحق د تشخیص توان لري. ټول پوهېږو چې څه سم او څه ناسم دي، د دې لپاره نه چې موږ دا زده کړي، بلکې د دې لپاره چې دا توان زموږ په ذهن کې موجود دی.
د کانټ په وینا موږ ټول (عملي عقل) لرو، یعنې هغه شعور چې موږ ته توان راکوي چې حق له ناحق څخه توپیر کړو.
- او دا ذاتي ده؟
- له حق څخه د ناحق توپیرول، د نورو صفتونو غوندې د ذاتي عقل ځانګړنه ده. د بېلګې په توګه دا چې موږ ټول هوښیار موجود یو او هر څه د اړیکې وړ ګڼو، په همدې دلیل موږ ټول د ټولیزو اخلاقو د موازینو تابع یو. دا اخلاقي موازین د مطلقو فزیکي قوانینو اعتبار لري، دا چې هر څه یو علت لري او اووه جمع پنځه، دوولس کېږي، دا د انسان د شعور لپاره بنسټ دی او اخلاقي موازین هم زموږ د اخلاقو لپاره بنسټ شمېرل کېږي.
- او دا اخلاقي موازین څه وایي؟
- اخلاقي موازین (صوري) دي، ځکه پر تجربې مقدم دي، یعنې په هېڅ کوم ځانګړي اخلاقي څېز پورې نه دي تړلي. د ټولو خلکو، ټولو ټولنو او ټولو زمانو لپاره د کارونې وړ وي. داسې نه ورته وایي، چې که په دې یا هغه ځای کې راګېر شوې، داسې یا هسې وکړه؛ بلکې ورته وایي چې په ټولو ځایونو کې څنګه چلند ولرې.
- خو کوم اخلاقي قوانین چې په ما کې دي، که ماته ونه شي ویلای، چې په پلاني ځای کې څنګه چلند وکړم نو څه په درد خوري؟
- کانټ اخلاقي موازین د مطلق امر په توګه مطرح کړل. مقصد یې دا و، چې اخلاقي موازین (مطلق) دي. یعنې په ټولو مواردو کې د کارونې وړ دي او همدارنګه (امر) کوي، یعنې په مطلق خواک سره فرمان ورکوي.

ـ صحيح.

ـ کانت دا مطلق امر په څو ډوله څرګند کړ. لومړی وايي: (داسې عمل وکړه چې دستورالعمل دې د ټوليز قانون په توګه رابرسېره شي). نو پر دې اساس، زه چې هر کار کوم بايد داده وم، چې غواړم نور کسان به هم په دې موقيعت کې همدا کار کوي.

ـ بلکل او يوازې په همدې حالت کې به مو د خپلو داخلي اخلاقي موازينو پر بنسټ عمل کړی وي. کانت (مطلق امر) په لاندې توګه بيان کړ:

تل داسې عمل وکړه چې - څه د ځان لپاره يا د نورو لپاره- نه يوازې د وسيلې بلکې د يوې موخې په توګه له ټول بشريت سره هغه ډول چلند وکړې.

ـ نو له نورو بايد د ځان د ګټې لپاره کار وا نه خلو.

ـ نه، ځکه هر څوک په خپل نفس کې يوه څوک دی او په دې کې نه يوازې نور بلکې په خپله ته هم شاملېږې. له خپل ځانه هم، بايد يوازې د وسيلې په توګه د ناوړه کارونو د کولو لپاره ګټه وانه خلو.

ـ ماته دې هغه متل را ياد کړ، څه چې ځان ته نه خوښوې، نورو ته....

ـ هو، هغه هم يو ډول (صوري) دستورالعمل دی، چې اصولاً ټول اخلاقي امکانات رانغاړي. ويلای شو چې د (سپېڅلی کتاب) اساسي اصول هماغه څه وايي، څه چې د کانت کلي اخلاقي موازين وايي.

ـ مګر دا يوازې يوه ادعا ده، کنه؟ ښايي هيوم پر حقه و چې ويل يې: د عقل په وسيله نه شو ثابتولی چې څه سم او څه ناسم دي.

ـ کانت اخلاقي موازين د کلي عليت او مطلق قانون په اندازه ګڼل. د عليت قانون هم د عقل په مرسته نه شو ثابتولی، خو بيا هم مطلق او نه بدلېدونکي دی، هيڅ څوک له هغه منکر نه دي.

ـ په حقيقت کې خبره د وجدان ده، ځکه هر څوک وجدان لري، کنه؟

- هو، د کانت مقصد له اخلاقي موازينو څخه د انسان وجدان دی. مونږ نه شو ثابتولی چې زموږ وجدان موږ ته څه وايي، خو پوهېږو چې وايو.

- ځينې وخت له نورو سره زما د ملګرتيا او مهربانۍ وجه ممکن دا وي، چې پوهېږم راته ګټه رسوي، يا دا چې نورو ته ګران شم.

- خو که له نورو سره مرسته کوې، يوازې د دې لپاره چې ورته ګران شې دا کار دې اخلاقي موازينو ته د درناوي لپاره نه دی کړی. ممکن عمل دې د اخلاقي موازينو پر اساس وي - او دا په خپل وار ډېر ښه دی- خو اخلاقي عمل هغه دی چې پر خپل نفس حاکم وو. يوازې هغه وخت چې يو کار مو د اخلاقي دندنې لپاره ترسره کړی، اخلاقي عمل مو کړی وي. د کانت اخلاقي اصولو ته په همدې دليل کله د دندنې پېژندنې اخلاقيات وايي.

- د بېلګې په توګه زه ځان اړ ګڼم چې د سره صليب يا له کليسا سره د مرستې صندوق ته پيسې راټولې کړم.

- هو او مهمه دا ده چې ته دا کار د دې لپاره کوې چې پوهېږې سم دی. ان که کومې پيسې چې دې راټولې کړې پر سړک درنه ورکې شي، که څه دا پيسې دومره نه وي چې ټول وږي ماړه کړي، بيا تا خپله اخلاقي دنده تر سره کړې. د خپل ښه نيت له مخې دې عمل کړی دی او د کانت په عقيده، ښه نيت د اخلاقي عمل سموالی ټاکي، نه د عمل پايلې. په همدې سبب د کانت اخلاقي اصولو ته د نېک نيتۍ اخلاق هم وايي.

- هغه ته ولې دا ټول دومره اهميت لري چې بايد پوه شي څه وخت د انسان چلند د اخلاقي موازينو له مخې دی؟ تر ټولو مهم شی خو خلکو ته رښتينې مرسته ده کنه؟

- بلکل ده او له شک پرته، کانت له هغه سره مخالفت نه لري، خو زموږ عمل به هغه وخت په رښتيا له ازادۍ او اختياره وي، چې په زړه کې پوه شو هغه کار اخلاقي موازينو ته په درناوي کوو.

-او یو عمل یوازې هغه وخت پر خپل اختیار تر سره کولی شو چې د قانون او میزان تابع وي؟ دا لږ عجیبه نه ده؟
-د کانت په عقیده دا نه وه عجیبه. ښایي په یاد دې وي، چې کانت په (فرض) او (انګیرنې) لاس پورې کړ، خو وایي، چې انسان آزاده اراده لري. دا مهم ټکی دی، ځکه کانت یې تر څنګ ویل، چې ټول شیان د علیت د قانون تابع دي نو موږ څنګه کولای شو، چې د ارادې آزادي ولرو؟
-له ما یې پوښتې؟
-په دې برخه کې کانت د دکارت په څېر ویل، انسان (دوه ګوني موجود) دی. بشر- د دوو برخو، ساه او جسم، لرونکی موجود ګڼي. وایي موږ د مادي موجوداتو په توګه د نه بدلېدونکي علیت قانون تابع یو، موږ د خپلو حسي-ادراکاتو پرېکړه په خپله نه کوو. حسي-درک د یوې اړتیا پر بنسټ موږ ته لاره مومي او که وغواړو یا نه خپل اغېز راباندې پرېږدي، خو موږ یوازې مادي موجودات نه یو، بلکې عقل لرونکی مخلوق یو.
-موږ د مادي وجود په توګه تل په طبعي نړۍ پورې تړلي یو، پر همدې بنسټ نو د عقلي اړیکو لارویان یو. یعنې له ځانه اختیار نه لرو. خو د عقلي موجود په توګه د حسي-اغېزو خپلواکه ونډه په -في نفسه توکو کې. یا هغه څه ته چې کانت (داس دینګ آن زیش) وایي- لرو. له (عملي عقل) څخه ګټه اخیسته، چې د اخلاقي ټاکنو وړتیا لري، آزاده اراده ده، نو له اخلاقي موازینو سره همغږي، له هغې قاعدې او میزان سره همغږي ده چې موږ په خپله وضع کړې.
-هو! له یوه نظره دا سمه ده، ځکه دا زه یم. یا زما دننه کوم څه دي، چې راته وایي د نورو په حق کې ناوړه چلند مه کوه.
-نو کله چې هغه ته غوږ نیسې او ناوړه چلند نه کوې -ان که دا ستا په زیان وي- نو تا آزادانه چلند کړی.

- په هر حال، که هر څه مو چې زړه وغواړي هماغه وکړو، بیا به هم دېر آزاد یا خپلواک نه وو.
- انسان د هر ډول او هررنگه څیزونو غلام کېدای شي، انسان ان کولی شي، د خپلو غوښتنو غلام شي. استقلال او خپلواکي دوه داسې نعمتونه دي چې موږ له هوا او هوسه خلاصولی شي.
- حیوانات څه؟ دوی هم یوازې له خپلو اړتیاوو او غوښتو پیروي کوي، دوی له ځانه د اخلاقي موازینو لپاره اراده نه لري، لري یې؟
- نه، د انسان او حیوان فرق همدا دی.
- هو پر دې اوس ښه پوهېږم.
- او په پای کې شاید ویلی شو، کانت بریالی شو چې د عقل او تجربې په کشمکش کې د فلسفې له دې ډول جنجاله د وتلو لاره پیدا کړي. په دې توگه د فلسفې دوره له کانت سره پای ته رسېږي، دی په ۱۸۰۴ز یعنې د رومانتیسیزم فرهنگي پړاو په اوج کې مړ شو.
د ده له مشهورو ویناوو څخه یوه یې د مزار پر تیږه په کونیگسبرگ کې توږل شوې: دوه څیزونه زما ذهن حیرانوي او هر څومره یې، چې په هکله دېر فکر وکړم حیراني مې ډېرېږي. یو له ستورو ډک آسمان چې زموږ پر سر دی او بل اخلاقي موازین چې زموږ په زړه کې دي.
آلبرتو په خپلې څوکۍ کې تکیه وکړه او ویې ویل: همدا وو او بس. فکر کوم د کانت د فلسفې مهم ټکي مې درته بیان کړل.
- په هر حال، ساعت پاو باندې څلور دي.
- خو یو بل مطلب هم پاتې دی، لطفاً یوه دقیقه صبر وکړه.
- مخکې تر دې چې ښوونکی درس پای ته ورسوي، زه هېڅکله ټولگی نه پرېږدم.
- په یاد مې نه دي، ومو ویل چې کانت باوري و، که موږ یوازې د خپلو حواسو بنده وو نو له ځانه کومه اراده نه لرو.
- هو، دا ډول څه مو وویل.

- خو که له کلي عقل څخه متابعت وکړو نو آزاد او خپلواک یو. دا مې هم وویل؟
- هو ومو ویل، نو په تکرارولو کې یې څه مقصد لرې؟
آلبرتو د سوفي خواته ور تیت شو، د هغې سترګو ته یې وکتل، ورو یې په غوږ کې وویل:
- هر څه چې وینې باور پرې مه کوه سوفي.
- یعنې څه؟
- لورې سر دې واړوه او ځای مه پرېږده.
- زه خو بیخي ګنګسه شوم، پر مطلب دې هېڅ پوه نه شوم.
- خلک ډېر وخت وایي، څو مو چې یو څه په خپلو سترګو نه وي لیدلي باور پرې مه کوئ، خو څه چې دې په سترګو هم لیدل باور پرې مه کوه.
- مخکې مو هم دې ته ورته څه ویلي.
- هو، د د پارمنیدس په اړه.
- خو زه مو تر اوسه هم په مطلب نه یم پوهېدلې.
- د بېلګې په توګه، موږ بهر پر زینه ناست وو، سره خولي والا راغله، ویل یې (د انا په کور پسې مې ګرځم.) څومره خندوونکې ده. دا ټولې د قومندان لوبې دي. سوفي دا هم د کیلې د پوستکي د منځ پیغام او یا احمقانه توپان ته ورته یوه لوبه ده.
- تاسو همداسې فکر کوئ؟
- مخکې مې وویل، زه یوه نقشه لرم، که موږ تل له خپله عقله کار واخلو نو قومندان پر موږ لوبې نه شي کولی. ځکه موږ له هر اړخه خپلواک یو. هر قومندان کولی شي، چې موږ د ځینو څیزونو حس کولو ته اړ کړي. هر کار چې ووایي، هغه یې کولای شي. که هغه اسمان تک تور کړي، که تر مخ مې فیل والوزي، زه به یوازې وخاندم. ځکه هر څه چې وکړي بیا هم پنځه پرې باندې اووه دوولس کېږي. دا هغه واقعیت دی چې د ده له ټولو لوبو څخه خوندي دی. سمه فلسفه د پېریانو د داستان مقابل ټکی دی.

سوفي خو شیبې کېناسته، د هغه خبرو ته غوږ نیولی و.
آلبرتو وویل: اوس نو لاړه شه. د رومانتیسیزم درس ته دې بیا خبروم.
همدارنګه باید د هېګل او کرکه ګور په هکله هم خبرې وکړو، خو
قومندان بوه اونۍ وروسته د کیویک هوایي ډګر ته رسېږي.
سوفي، موږ باید مخکې تر دې خان د هغه د مبتذلو تصوراتو له منګولو
خلاص کړو. ته باید پوه شې چې زه زما او ستا لپاره پر ډېرې جالبې نقشې
کار کوم.
- نو زه لاړم.
- صبر، تر ټولو مهم څه خو مې هېر شول.
- څه شی؟
- د کلیزې سندره سوفي. نن د هیلډې پنځلس کاله پوره شول.
- زما هم همداسې.
- هو ستا هم همداسې، نو یو ځای به یې ووایو.
دواړه پر پښو ودرېدل او ویې ویل:
کلیزه، کلیزه، کلیزه دې مبارک شه!
ساعت څلور نیمې بجې وې، سوفي په منډه منډه د اوبو غاړې ته لاړه او د
واړه سیند بل لوري ته یې پارو وواهه. کوچنۍ کیښتۍ یې له اوبو را وایسته
او په بېړه په ځنګله کې روانه شوه، کله چې لږ وړاندې لاړه، ناڅاپه یې په
ځنګله کې خوځېدونکی شی ولیدل، له ځانه سره یې وویل:
- دا به سرې خولۍ والا وي، تر اوسه د خپلې نیا په کور پسې ګرځي.
خو د ونو تر منځ شی، ډېر کوچنی ښکارېده. چې ور نږدې شوه، نانځکې
ته ورته شی یې ولیدل، رنګ یې خړ و او سور ګنجی یې پر ځان و. خرس
ته ورته نانځکه وه او پر خپل ځای ولاړ وه.
سوفي پر دې حیرانه نه شوه چې کوم چا خپله خرس ته ورته نانځکه ولې
په ځنګله کې پرېښې وه، بلکې دې ځانداره نانځکې ته سخته په فکر
شوه.

سوفي وویل: سلام!

ژانخکي وویل: زه (یو خرس) یم. نن هوا ډېره ښه ده، خو له بده مرغه ما خپله لاره په ځنګله کې ورکه کړې، ګومان کوم تاسو مې ضرور مخکې نه یئ لیدلي.

سوفي وویل: شاید مخکې له دې زه دلته نه یم راغلې او ښایي ته هم له خپل کور نه کابو سل جریبه لرې وې.

- نه، قضیه مه پېچلې کوه. سمه ده چې زه کوچنی خرسک یم، خو ډېر هوښیار نه یم.

- صفت مې دې اورېدلی.

- د سې نه چې ته آلیس وې، کریستوفر رابین ستا حکایت مور ته ویلی. شاید هغه مور له تا سره آشنا کړو. تا نوشابه وڅښه او وڅښه او بېرته لویه شوې. باید تل دې پام وي، چې هر څه په لاس درتلل، و یې نه څښې. ما یو ځل دومره خوړلي وو، چې د سوېې له سوري بهر نه شوای راوتی.

- زه آلیس نه یم.

- څه فرق کوي چې مور څوک یو؟ مهم دا دی چې مور شته یو. دا هغه څه دي چې بوم یې وایي. هغه ډېر پوه او ځیرک دی.

په یوه عادي او لمرینه ورځ یې ناڅاپه وویل، څلور باندې اووه، دوولس کېږي، مور ډېر د حماقت احساس وکړ، ځکه د اعدادو جمع او تفریق ډېر ګران دی. د هوا وړاندوینه ډېره آسانه ده.

- زما نوم سوفي دی.

- له پېژندلو دې خوشاله شوم سوفي. مخکې مې وویل، ګومان کوم ته دې سیمې ته نوې راغلې یې، خو کوچنی خرسک نور باید ولاړ شي او کوچنی خوک پیدا کړي، نن مور باید د سوېې او دوستانو یوې لویې مېلمستیا ته لاړ شو.

لاس یې په هوا کې وخوځاوه او خدای پاماني یې وکړه. سوفي ولیدل چې د کاغذ ټوټه رانښکته شوې او په بل لاس کې یې ده.

ويې پوښتل: دا په لاس کې دې څه دي؟
خرسک لاس پورته کړ او کاغذ يې ور وښود. ويې ويل: د همدې له لاس مې خپله لاره ورکه کړه.
- د همدې کاغذ له لاسه؟
- دا يوازې د کاغذ ټوټه نه ده. د هېنداري- دننه- هيلډې ته ليک دی.
- آه! ماته يې راکړه.
- ته د هېنداري دننه نجلی يې؟
- نه، خو...
- ليک يې بايد تل خپل څښتن ته ورکړل شي. دا خبره همدا پرون کريستوفر رابين را زده کړه.
- مگر زه هيلډه پېژنم.
- فرق نه کوي، ان که کوم څوک ډېر ښه وپېژنې هم، هېڅکله بايد د بل ليک و نه لولې.
- مقصد مې دا و، چې زه يې هيلډې ته رسولی شم.
- دا ښه خبره ده. مهرباني مېرمن سوفي. که له دې ليک نه بېغمه شم شايد کوچنی خوک ژر پيدا کړای شم. ته هم د دې لپاره چې په هېنداره کې د ننه هيلډه پيدا کړای شې، لومړی بايد لويه هېنداره ولرې خو په دې شاوخوا کې دا کار دومره آسانه نه دی.
کوچني خرسک دا خبرې وکړې او رانښکته شوی کاغذ يې سوفي ته ورکړ. وروسته يې په وړو پښو په ځنگله کې روان شو. له نظر چې پنا شو، سوفي ليک پرانيست او په ويلو يې پيل وکړ.
*- گرانې هيلډې!*
*د تاسف ځای دی چې آلبرټو په خپلو خبرو کې سوفي ته ونه ويل چې کانټ د يوې (نړيوالې ټولنې) د تاسيس تبليغ هم کاوه. د (تلپاتې سولې) تر نامه لاندې يې په خپله رساله کې چې په ۱۷۹۵ کې وليکه وويل: ټول*

هېوادونه باید په یوه ټولنه کې سره متحد شي، تر څو د ملتونو تر منځ ګډ ژوند تامین شي.

د ده د رسالې له خپرولو کابو ۱۲۵ کاله وروسته، د (نړیوالې ټولنې) بنسټ تر لومړي نړیوالې جګړې وروسته کېښودل شو. بیا یې تر دویمې نړیوالې جګړې وروسته (د ملګرو ملتونو سازمان) ځای ونیو. نو په دې توګه ویلی شو، چې کانت د ملګرو ملتونو د رامنځته کولو د فکر پلار و.

د کانت خبره دا ده، د انسان (عملي عقل) حکم کوي چې ملتونه له خپل طبعي وحشت څخه راووځي او د سولې د ساتنې تړون وکړي. که څه هم د نړیوالې ټولنې رامنځته کولو لاره ستونزمنه ده، بیا هم زموږ دنده ده، چې د نړیوالې تلپاتې سولې لپاره کار وکړو. کانت ته د دا ډول ټولنې تاسیسول، یوه لویه موخه وه، نبایي د فلسفې نهایي موخه هم همدا ده.

زه اوس په لبنان کې یم.

پلار دې ځار شه!

سوفي یادښت په خپل جیب کې کېښود او د کور پر لور روانه شوه. دا هغه پېښه وه چې آلبرتو یې سوفي ته خبرداری ورکړی و. خو نجلۍ نه شوای کولی، کوچنی خرسک همداسې پرېږدي، چې تر ابده په ځنګله کې د هېنداري د ننه په هیلدې پسې قوماندانانه وګرځي. کولی یې شوای؟

# رومانتیسیزم

## ... د لارې راز دننه وړي...

د پلار درنه ډالۍ د هیلدې له لمنې وښویېده او له هغه ځایه د کوټې پر غولي ولوېده. کوټه روښانه وه، ساعت ته یې وکتل، د شپې درې بجې وې.

تر څادر لاندې یې ځان راټول کړ، سترګې یې پټې کړې، خوب ورغی، په فکر کې وه: پلار یې ولې په کتاب کې د سور خولۍ او پوه خرسک یادونه کړې...

د بلې ورځې تر یوولسو ویده وه، پر هیلدې جسمي فشار دا ښودله، چې تېوله شپه یې خومره له شر او شوره ډک خوبونه لیدلي، خو هېڅ یې په یاد نه وو، چې څه خوب یې لیده، نه به وایې لکه بلکل چې په کومه بله هستۍ کې وي.

ښکته لاړه او ځانته یې د سهار چای تیار کړ. مور یې د کار سرمه یې کالي اغوستي وو، څو د وړو کښېنتیو تم ځای پاک کړي او وړې ماشیني کیښتۍ منظمې کړي.

تر دې وخته یې وړې کیښتۍ اوبو ته نه وې ښکته کړې، خو له لبنانه د پلار د راتګ لپاره یې باید جوړې کړې وای.

- غواړې چې له ما سره ولاړه شې او مرسته راسره وکړې؟

- لومړی باید لږ نوره هم ویده شم، وروسته بیا شاید ماسپښین له چای او ډوډۍ سره درشم.

- کوم ماسپښین؟

هیلدې د سهار چای وڅښه، بېرته پورته خپلې کوټې ته لاړه، خپل تخت یې ټول کړ، آرامه کښاسته او د پلار بسته یې پر خپلو دواړو زنګنو کېښوده.

سوفي له پيچلې لارې کورته ننوته، په بڼ کې - چې يو وخت يې د عدن بڼ باله- ودرېده. د تېرې شپې له توپان وروسته په بڼ کې څانگې او پاڼې خورې شوې وې. سوفي احساس کاوه لکه د توپان پېښېدل، څانگو را لوېدل او د سور خولۍ او پوه خرسک ليدل چې له يو بل سره اړيکه لري.

کورته ننوته، مور يې نوې له کاره راغلې وه، د شربتو بوتل يې په يخچال کې اېښودل، پر مېز چاکلېټي کيک اېښی و چې ډېر خوندور ښکارېده.

سوفي وپوښتل:

- کوم څوک راځي؟

مېړه شوي يې وو چې نن يې کليزه ده.

- په يوه حساب، ستا کليزه په راتلونکې شنبې ده، خو ما فکر وکړ چې نن هم بايد يو کوچنی جشن ونيسو.

- څنگه؟

- يووانا او د هغې مور او پلار مې راغوښتي، چې زموږ کره راشي.

- ښه دې کړي.

مېلمانه مخکې تر اووه نيمو را ورسېدل، د کور فضا لږ رسمي غوندې وه، د سوفي مور په تگ راتگ کې د يووانا مور او پلار ډېر لږ ليدل.

څه وخت چې تېر شو، دواړې نجونې پاس د سوفي کوټې ته ولاړې، چې د کليزې بلنليک وليکي. دا چې کليزې ته آلبرتو هم راتلونکی و، نو سوفي غوښتل چې خپل دوستان (فلسفي مېلمستيا) ته راوبولي. يووانا هم کوم اعتراض نه درلود، څکه دا د سوفي غوښتنه وه او له بلې خوا په دې ورځو کې موضوع لرونکې مېلمستياوې مود شوې وې.

دواړو نجونو بلنليک وليکه، د ليک انشاء دوه ساعته وخت ونيو، اوس دواړو خپله خندا نه شوای نيولی.

*گرانه/گرانې ( ) ....!*

له تاسو څخه په ډېر درنښت هيله کېږي چې شنبه ورځ، د جون ۲۳مه (د اوړي لومړۍ شپه)، د شپې په اووه نيمو بجو زموږ فلسفي مېلمستيا ته تشريف راوړئ. هيله ده چې په هغه شپه د ژوند راز حل کړی شو.

له تاسو غواړو چې له ځان سره ګرم ګنجيان ولرئ او د فلسفي معماوو د حل لپاره هم ځيني مفکورې له ځانه سره راوړئ.

له بده مرغه نه شو کولی، چې اورلوبه (آتشبازي) وکړو، ځکه ځنګل د اورلګېدنې له خطر سره مخ کېږي؛ خو ټول آزاد ياست چې د خپل خيال اور بې پروا بل کړئ.

په رابلل شوو مېلمنو کې به يو حقيقي فيلسوف هم موجود وي، نو له همدې امله زموږ مېلمستيا بلکل ځانګړې ده، د ورځپانو خبريالانو ته د راتګ اجازه نشته.

په درناوي

يووانا اينګه بربګستن (د تشکيلاتو کميټه)

سوفي آموندسن (کوربه)

نجونې ښکته خپل پلار او مور ته ورغلې؛ مشرانو له يو بل سره په آرامه يو څه خبرې کړې وې. سوفي د خطاطی په قلم ليکل شوی بلنليک خپلې مور ته ورکړ.

- له دې راته اتلس کاپي راوړه...

دا لومړی ځل نه و چې سوفي د کاپي لپاره خپلې مور ته پانې ورکړې وې، مخکې به يې هم مور ته د کاپي لپاره پانې ورکولې.

د سوفي مور بلنليک ولوست او د يووانا پلار ته يې ورکړ.

- که دا ولولئ نو پوه به شئ چې زما مقصد څه دی؟ مغز يې تکان خوړلی.

د يووانا پلار وويل: مګر ډېر جالب او حيرانوونکی ښکاري. کاغذ يې خپلې مېرمنې ته ورکړ: زه څه نه وايم، په خپله هم غواړم په دې مېلمستيا کې ګډون وکړم.

مېرمن يې هم بلنليک ولوست او ويې ويل: آه! خومره ښکلی. سوفي مور هم راتللی شو؟
سوفي چې د دوی غوښتنه نه شوای رد کولی، خپلې مور ته وويل: مورې! تو شل کاپۍ ترې واخله.
بووانا وويل: تاسو لېوني یاست.
په هغه شپه سوفي مخکې تر دې چې ويده شي، ډېره موده کړکۍ ته مخامخ ودرېده او بهرته يې کتل. وریاد يې شول، چې يو ځل يې له همدې کړکۍ څخه، پرهيپ هېګل په تياره کې ليدلی و. له هغه شپې يوه مياشت تېرېده. اوس هم د شپې ناوخته وه، خو د اوړي نن شپه روښانه وه.
د سې شنبې تر سهاره له آلبرتو کوم خبر رانغی. د سې شنبې په ورځ د سوفي مور نوې کار ته تللې وه چې ټيلفون ته زنګ راغی.
-سوفي آموندسن، مهرباني.
-او آلبرتو کناکس، تاسو مهرباني.
-ما هم له ځانه سره ويل چې تاسو به وی.
-وبښې چې ژر مې زنګ ونه واهه. زما او ستا پر نقشه سخت بوخت وم. زه يوازې هغه وخت آرامه ساه ايستلی شم او خپل کار پرته له مزاحمته کولی شم، چې د قومندان ټول پام تاته وي.
-عجيبه ده.
-فرصت غنيمت شمېرم او ځان پټوم. که د نړۍ تر ټولو ښه سيستم هم وي، خو چې د بل کس تر نظر لاندې وي نو ضرور به نېمګړتيا پيدا کوي... ربښتيا کارټ دې را ورسېد.
-مقصد مو بلنليک دی؟
-جرئت لرې چې ما در وبولې؟
-ولې نه؟
-په دا ډول مېلمستياوو کې هر څه پيښېدلی شي.
-ان شاءالله چې راځې به، کنه؟

- خود درخم. خو يو بل څه هم دي، هېر شوي خو به دې نه وي، چې د هيلډې پلار هم په هماغه ورځ له لبنانه راځي؟

- نه. که رښتيا ووايم په ياد مې نه وو.

- دا يوازې تصادف نه شي کېداى، چې هغه به تا پرېږدي چې برکلي ته د هغه د راتګ په ورځ ته فلسفي مبلمستيا ورکړې.

- مخکې مې وويل، زما دې موضوع ته پام نه و.

- داډه يم چې دا د هغه کار دى. په هر حال، په هکله يې وروسته غږېږو. نن سهار د قومندان جونګړې ته راتلی شې؟

- بنه، د ماسپښين په دوو بجو درځم، سمه ده؟

- بلکل.

سوفي چې جونګړې ته ورسېده، آلبرتو کناکس يېا د زينې پر پله ناست و، ويې ويل: کېنه!

او بيا يې واره يې درس پيل کړ.

- مخکې مو د رنسانس، باروک پړاو او روښانتيا پړاو په هکله خبرې وکړې؛ نن د رومانتيسيزم په هکله خبرې کوو، چې د اروپا وروستی لوی فرهنګي دوران هم ورته ويلاى شو. لورې! ورو ورو د خپل اوږد داستان پاى ته نږدې کېږو.

- رومانتيسيزم څومره وخت ونيو؟

- د اتلسمې پېړۍ په وروستيو کې پيل شو او د نولسمې پېړۍ تر نيمايي يې دوام درلود، خو له ١٨٥٠ز وروسته داسې کوم يوازينی او پوره پړاو نشته چې د شعر، فلسفې، هنر، علم او موسيقۍ پړاو په ځان کې ولري.

- رومانتيسيزم همداسې يو پړاو و؟

- ويل کېږي چې د اروپا لپاره د ژوند وروستۍ ګډه لاره رومانتيسيزم و. دا په آلمان کې پيل شو، چې د روښانتيا پړاو پر ورانده‌ې ګوابنې و او تل يې پر عقل تاکيد کاوه، ته به وايې لکه وروسته د کانت له وچو مفکورو څخه چې د آلمان نوي نسل بيا د سکون سا اخيستې وي.

-دوی د کانت د فلسفې پر ځای څه شی راوړل؟

-نوي شعارونه اوس احساس، تخیل، تجربه او هیله وو. د روښانتیا پړاو ځینو مفکرینو - تر ټولو ډېر روسو- د احساس ارزښت ته پاملرنه وکړه، خو دا په هغه وخت کې پر عقلپالنې نیوکه وه. د هغه زماني دا حرکت اوسمهال د آلمان ټولیز فرهنګ دی.

-نو د کانت شهرت دومره دوام ونه کړ.

-که رښتیا ووایم، هم یې وکړ او هم یې ونه کړ. ډېرو رومانتیکانو ځانونه د کانت ځایناستي وګڼل، ځکه کانت ثابته کړې وه. چې زموږ (د ځیزونو، د خپل نفس) پېژندنه محدوده ده، له بلې خوا کانت د (زه) په پوهه کې د ونډې پر ارزښت یا پېژندنې تاکید کړی و. فرد بلکل خپلواک و، چې ژوند په خپله خوښه تعبیر او تفسیر کړي.

رومانتیکانو دا امر تقریباً د (ځان پالنې) په بڼه وکاراوه، چې ورو ورو د هنري نبوغ د ستاینې سبب شو.

-دا نابغه ګان ډېر وو؟

-یو یې بېتوون و. د بېتوون موسیقي د ده د احساساتو او هیلو بیانوونکې وه. بېتوون- د باروک د استادانو پر خلاف لکه باخ او هندل چې تر ډېره یې په دقیقو قالبونو کې موسیقي غږوله او د خدای په ستاینه کې یې سندرې جوړولې- آزاد هنرمند و.

-زه یوازې د هغه (سونات سپوږمۍ) او (پنځم سمفوني) پېژنم.

-او پوهېږې به چې (سونات سپوږمۍ) څومره رومانتیک دی. همدارنګه بېهوون په پنځم سمفوني کې خپل احساسات په څه حیرانوونکې ډول بیان کړي.

-تاسو ویلي وو چې د رنسانس انسانپال، وګړپال هم وو.

-هو، رنسانس او رومانتیسیزم ډېر ورته والی سره درلود. د بېلګې په توګه، د انسان په پېژندنه کې د هنر ارزښت. کانت په دې برخه کې د پام وړ ونډه درلوده.

کانټ په خپله ښکلاپېژندنه کې څېړنه وکړه، د مثال په توګه کله چې پر انسان د هنري اثر د ښکلا له امله اغېزمن کېږي، نو څه پېښېږي. د ښکلا پېژندنې په موخه هر کله چې موږ د يوه هنري اثر پر وړاندې له ځانه بې خوده کېږو، نو په اصل کې د (شی في نفسه) تجربې ته نږدې کېږو.

- نو هنرمند داسې څه وړاندې کولای شي چې فيلسوف يې له بيانولو عاجز دی؟

- دا د رومانتيکانو نظر و.

د کانټ په وينا هنرمند د خپلې پېژندنې څواک آزادانه په کار اچوي. آلماني شاعر، شېلر، د کانټ دا فکر تر دې هم مخکې وغځاوه. ويل بې، د هنرمند کار د يوې لوبې په څېر دی او انسان يوازې هغه وخت لوبې کولی شي چې آزاد وي. ځکه د لوبو قواعد په خپله جوړوي. رومانتيکانو عقيده لرله چې يوازې هنر کولای شي موږ خپلو ناويلو ته نږدې کړي. څينې تر دې هم وړاندې ولاړل او هنرمند يې له خدای سره پرتله کړ.

- ځکه څنګه چې خدای نړۍ پيدا کړې، هنرمند هم واقعيتونه رامنځته کوي.

- دوی ويل، هنرمند داسې تصور لري، چې په کې يوه نړۍ رامنځته کوي او خپل هنر د لېږد پر وخت کولی شي د خيال او واقعيت تر منځ سرحد له منځه يوسي.

- د دې پړاو يو ځوان او نابغه شاعر نووالیس وويل:

نړۍ لومړی د يوه خيال په څېر رامنځته شوه او خيال په واقعيت بدل شو.

نووالیس يو رومان وليکه، چې (هاينريش فون اوفترديـنګن) نومېده. دا رومان په منځنيو پېړيو کې روان و. کله چې دی په ۱۸۰۱ز کې مړ شو، نو دا کتاب ناتمامه و، خو بيا هم ډېر مهم اثر و.

د يوه ځوان داستان دی، چې يوه ورځ د (آبي رنګه ګل) خوب ويني او له هغه وروسته هر ځای پسې ګرځي. کولريج، رومانتيک انګليسي- شاعر هم دا ډول فکر په بله بڼه بيان کړ او داسې څه يې وويل:

فرض کړه، ویده شوې یې او خوب وینې چې جنت ته تللې یې؛ داسې فکر وکړه لکه له هغه ځایه چې یو غوړېدلی او ښکلی ګل راشکوې او فرض کړه، له خوبه را ویښېږې او وینې چې ګل دې په لاس کې دی. وای! هغه وخت نو څه کوې؟

- څومره ښکلی.

- د دا ډول لسرې او نه لاسته راوړونکې شي هیله او حسرت د رومانتیکانو ځانګړنه وه. دوی د تېرو پړاوونو، لکه منځنیو پېړیو، آرمان کاوه، چې وروسته د روښانتیا پړاو له غندنې اوس یې بېرته له سره ارزښت سنجول کېږي.

همدارنګه دوی د تېرو فرهنګونو لکه ځمکې او عرفان هیله درلوده، ځکه دې فرهنګونو دوی د شپې، ماښامونو، پخوانیو ورانیو او د طبیعت ماورا ته رسول. د دوی ذهن تر ډېره پر هغو شیانو بوخت و چې مو ړ ورته د ژوند تیاره، پټ ځیزونه او عرفان وایو.

- ډېر جالب دوران ښکاري. دا رومانتیکان څوک وو؟

- په تولیزه توګه رومانتیسیزم ښاري پدیده وه. د اروپا په ډېریو برخو-تر تولو زیات په آلمان کې د فرهنګي پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې- ډېر وځلېد. تر ډېره د پوهنتونو محصلین د رومانتیکانو ښه بېلګه وه. که څه هم دوی تل خپل درسونه دومره جدي نه نیول.

له ژوند سره د دوی چلند بلکل د منځنی طبقې پر خلاف و، د بېلګې په توګه پولیس یا د خپل کور څښتین ته به یې بې فرهنګه او یا په مستقیمه ورته دښمن وایه.

- که داسې وي نو ما به هېڅکله جرئت نه وای کړی، چې خپله کوټه دوی ته په اجاره ورکړم.

- د رومانتیکانو لومړی نسل کابو ۱۸۰۰ ځوانان وو. په حقیقت کې د رومانتیکانو خوځښت ته د ځوانانو لومړی پاځون ویلی شو. دوی د یو کال وروسته هیپانو ته ورته وو.

- هو، يو وخت يې ويل چې، آرامتيا، بې کاري ځان تر هر څه لوړ او نابغه بلل د رومانتسيزم د پلويانو تر ټولو ستره ځانګړنه وه. د هر رومانتيک کس دنده وه، چې ژوند تجربه کړي او يا په خيال انځورونې له هغه وتښتي. ورځني کارونه دې بې تجربه خلک کوي.
- بايرون رومانتيک شاعر و، کنه؟
- هو، بايرون او شيلي دواړه رومانتيک شاعران وو. په اصطلاح د شيطان ښوونځي و. پر دې سربېره بايرون په رومانتيکي پړاو کې د بت رامنځته کوونکی و. بايروني اتل- له خپل روح پردی و، مزاج پاربدلی او دمدمي و- څه په ژوند او څه په هنر کې و.
په خپله بايرون به هم کله احساساتي کېده، دا چې څېره يې ښکلې وه نو ډېرې مُدلې ښځې يې شاوخوا ته ګرځېدې. څينې خلک د بايرون د شعرونو عشقي پېښې د ده شخصي-ژوند ته منسوبوي. ده ډېرې جنسي- اړيکې درلودې. خو حقيقي مينه ترې- لکه د نووالیس آبي رنګه ګل- لېرې تښتېده او هېڅکله يې لاس ته رانه وړه. نووالیس څوارلس کلنه کوژدنه درلوده؛ خو نجلۍ تر خپلې پنځلس کلنۍ کليزې څلور ورځې وروسته مړه شوه او نووالیس د خپل لنډ عمر تر پايه هغې ته وفادار پاتې شو.
- تاسو وويل تر پنځلس کلنۍ څلور ورځې وروسته مړه شوه؟
- هو.
- زما هم نن له پنځلس کلنۍ څلور ورځې تېرې دي.
- پوهېږم.
- نوم يې څه و؟
- نوم يې سوفي و.
- څه؟
- هو، ستا هم نومې وه.
- دومره مې مه وېروئ، يعنې دا ټول تصادف دی؟

- نه پوهېږم سوفي. خو يوازې دومره پوهېږم چې د هغې نوم هم سوفي و.
- ښه بيا څه وشول؟
- په خپله نووالیس هم په نهه ويشت کلنۍ مړ شو، چې د (خوانيمرگو) له ډلې و. ډېرې رومانتيکان معمولاً په ځوانۍ کې د (نرۍ رنځ) ناروغۍ له امله مړه شول او ډېرو نورو ځانوژنه وکړه.
- اووه!!
- هغوی چې ژوندي پاتې شول او عمرونه يې زيات شول، نو په دېرش کلنۍ شاوخوا کې يې رومانتيکي لاره پرېښوده. ځينو د منځنۍ طبقې لاره او کړنې خپلې کړې او ځينې نور بيا محافظه کار شول.
- نو له دښمن سره يو ځای شول.
- شايد! مگر زموږ خبرې د رومانتيکانو په مينه وې. د ناکامې مينې موضوع په ۱۷۷۴ز کې گوته په خپل رومان (د ځوان ولتېر دردونه) کې وړاندې کړه. ځوان ولتېر د هغې ښځې وصل ته نه شي رسېدای چې مينه ورسره لري. نو ځان په تومانچه وژني او رومان پای ته رسېږي.
- نو ضرور وه چې پر ځان يې دومره سختي راولي؟
- د دې رومان تر خپرېدا وروسته د ځان وژنو کچه زياته شوه او د څه مودې لپاره دا کتاب په ډنمارک او ناروې کې بند شو، نو رومانتيک کېدل هم له خطر لېرې نه و. د دوی احساسات په ډېر چټکې راپارېدل.
- کله چې د رومانتيک خبره کوئ، نو زما فکر ته د تياره او وېروونکي ځنگله، توپاني طبيعت... وريځ او سپوږمۍ تابلوگانې راځي.
- هو، د رومانتيسيزم يوه ځانگړنه د طبيعت او طبعي اسرارو بيانول وو. مخکې مې ويل، دا په کليوالو سيمو کې نه شو رامنځته کېدای. په ياد به دې، وي چې روسو (طبيعت ته ستنېدل) شعار ورکاوه. رومانتيکانو هم دا شعار هر چېرته دود کړ. په لومړۍ درجه کې رومانتيسيزم د روښانتيا پراو د ميخانيکي نړۍ پر وړاندې غبرگون و؛ دوی ويل رومانتيسيزم د پخواني ډېر د کيهان هوښياري رنسانس تضمينوونکی دی.

- لطفاً دا راته توضيح کړئ.

- يعنې طبيعت يې د يوه (کل) په توګه ومانه. د رومانتيکانو ريښه نه يوازې سپينوزا بلکې پلوتينوس او د رنسانس دورې فيلسوفانو لکه ياکوب بومه او جوروانو برونو ته رسيږي. د دغو فيلسوفانو ګډه وجه په طبيعت کې د ملکوتي (زه) تجربه کول وو.

- نو د وحدت الوجود پلويان وو؟

- کانت او هيوم دواړو د نفس او (بعد لرونکې) هستي تر منځ روښانه کرښه ايستلې وه. کانت هم د پېژندونکي (زه) او (في نفسه) طبيعت تر منځ توپير وکړ. اوس ويل کېدل چې طبيعت يو لوی (زه) دی. رومانتيکانو ځينې اصطلاحات لکه (د نړۍ روح) يا (د نړۍ سا) يې هم وکارول.

- سمه ده.

- د رومانتيکو فيلسوفانو په سر کې شيلنګ و، چې له ۱۷۷۵ز څخه تر ۱۸۵۴ز پورې ژوندی و. ده روح او ماده يو ځای کړې. د ده په عقيده ټول طبيعت- د انسان او مادي هستي روح- د يوه مطلق يا نړيوالې روح ښکارندوی دی.

- بيخي د سپينوزا په څېر.

- شيلنګ وويل: طبيعت يو مرئي روح دی او روح هم نامرئي طبيعت دی. ځکه (جوړونکې روح) د طبيعت په هر ځای کې احساسيږي. همدارنګه يې وويل چې ماده د (ويده هوښ) په څېر ده.

- دا بايد لږ ډېر راته واضح کړئ.

- شيلنګ په طبيعت کې يو ډول نړيواله روح ليده او دا نړيواله روح يې د انسان په ذهن کې هم ليده. په واقعيت کې د طبعي او معنوي معنا د شيلنګ په نظر د يوه شي بيان و.

- البته، ولې نه؟

- نو نړيواله روح هم په طبيعت کې او هم په خپل ضمير لټولی شو او په دې توګه نوواليس وکړای شوای چې ووايي. (د لارې راز مورږ دننه بيايي).

په بله وينا انسان توله نړۍ په ځان کې لري او د نړۍ اسرارو ته د لاسرسي لپاره کافي ده، چې هغه په خپل باطن کې ولټوو.

-څومره ښکلی فکر.

-د ډېرو رومانتيکانو په نظر فلسفه، د طبيعت مطالعه او شعر په يو بل پورې تړلي وو. کله چې په يوه گوښه کې يوازې کېني او الهام اخلې، شعر ليکې يا د بوټو او ډبرو جوړښت څېړې، نو په واقعيت کې دا د يوې سکې دوه مخونه دي؛ ځکه طبيعت يو بې ځايه جوړښت نه دی بلکې يوه نړيواله ژوندۍ روح ده.

-لږ پاتې ده، چې زه هم رومانتيکه شم.

-د ناروې يو طبيعتپوه، هنريک ستفنس، له دې امله چې په آلمان کې اوسېده، ورگلاند ورته (د ناروې له لاسه تللې پاڼه) ويله. په ۱۸۰۱ز کې کپنهاک ته ولاړ او د رومانتيسيزم د غورځنگ په اړه يې خبرې وکړې، ويې ويل: موږ رومانتيکان په ستړي ځان او بې پايه هڅو غواړو، چې له خامې ووځو او لايتناهي ته ځانونه ورسوو. موږ خپل باطن ته لاړو او لويه نړۍ مو رامنځته کړه.

-دوی دا ټول څنگه را په يادول؟

-کوم کار نه لري لورې.

-نو ادامه ورکړئ.

-شيلنگ هم له خاورو او ډبرو نيولې د انسان تر ذهنه په طبيعت کې يو تحول شمېري. زموږ پام په پيچلو بڼو د ژوندانه د بې ځانه طبيعت تدريجي تېرېدو ته اړوي. په ټوليزه توگه د رومانتيکانو ځانگړی ليدلوری دا و چې طبيعت يې يوه ژوندۍ دستگاه گڼله. په بله وينا هغه واحد شی چې تل خپل ذاتي توان ته وده ورکوي. طبيعت د گل په څېر دی، چې غوړېږي او خپلې پاڼې پرانيزي او يا د هغه شاعر په څېر دی چې له خپلو شعرونو پرده پورته کوي.

-ارسطو نه درياديږي؟

 فلسفه تـر ډېره د ارسـطويي او

- رايـادېږي، ډېـر زيـات. د رومانتيکـانو طبعـي چـارو تـه پـه ارگـانيکي (ضـد افلاطـوني؟) نښـو درلـودونکې ده. ارسـطو طبعي

نظر له ميخانيکي ماده پالنې کتل.

- هو، ما هم همدا فکر کوو.

- د تـاريخ پـه خانگـه کـې هـم دا ډول فکـر کارېـده. يـو لـه هغـو کسـانو چـې رومانتيکـانو تـه يـې ډېـر زيـات ارزښـت ورکـاوه، تـاريخي فيلسـوف يوهـان گوتفريد فون هردر و، چې له ۱۷۴۴ز تر ۱۸۰۳ز يې ژوند وکړ.

- د هغـه پـه بـاور د تـاريخ جوړښـت تـداوم، تکامـل او غايـت دی. ويلـی شـو، چـې د تـاريخ پـه هکلـه د هـردر نظـر پلټـونکي و، ځکـه تـاريخ يـې يـو ډول چـارې گڼلـې؛ خـو د روښـانتيا فيلسـوفانو د تـاريخ پـه هکلـه تـر ډېـره درېـدلي او ساکن نظـر درلـود. د دوی پـه نظـر يـوازې يـو نړيـوال عقـل موجـود دی چـې پـه بېلابېلو پړاوونو کې رامنځته شوی.

هردر پـه ډاگـه کـړه، چـې هـر تـاريخي پـړاو خپـل ارزښـت لـري او هـر قـوم خپـل خـانگړی خـوی يـا روح لـري؛ مهمـه موضـوع د نـورو لـه فرهنگونـو سره همغږي ده.

- نـو دا چـې د خلکـو د ښـه پېژنـدلو لپـاره بايـد خـان لـه هغـوی سره يـو وگڼـو، هماغـه ډول د نـورو فرهنگونـو د پېژنـدنې لپـاره هـم بايـد خـان لـه هغـوی سره يو وشمېرو.

- پـه دې ورځـو کـې دا پـه بـديهياتو کـې راځـي. خـو د رومانتيکـانو پـه زمانـه کـې دا نـوی فکـر و. رومانتيسـيزم د مـلي هويـت احساسـات پيـاوړي کـړل، نـو دا تصـادفي نـه ده، چـې پـه ۱۸۱۴ز کـې د مـلي اسـتقلال لپـاره د نـاروې د خلکو مبارزه پياوړې شوه.

- سمه ده.

- رومانتيسـيزم پـه ډېـرو برخـو کـې د نويـو اړخونـو مونـدلو پـه لټـه کـې و. لـه همدې امله معمولاً دوی دوه شکله له يو بله بېلوي:

بيو بيې نړيـوال رومانتيسـيزم بلـل كـېږي او د رومانتيكـانو مقصـد و چـې زړونـه بېې پـر طبيعـت، نړيـوالې روح او هـنري نـبوغ تـړلي وو. د رومانتيسـيزم دا بڼـه پـه لـومړي سر كـې تقريبـاً ۱۸۰۰مـو كلونـو شـاوخوا كـې- پـه ځـانگړې توگـه د آلمان په ينا ښار كې- ډېر دوده شوه.

-او بل؟

-بـل بـې د مـلي رومانتيسـيزم پـه نـوم يـادېږي. چـې لـږ وخـت وروسـته -پـه ځانگړې توگـه پـه هايـدلبرگ ښـار كـې- پـر پښـو ودرېـد. ملي رومانتيكـان تـر ډېره د وگـړو تـاريخ، وگـړو ژبـې او د وگـړو فرهنـگ تـه لېوال وو؛ او لـه وگـړو بـې موخـه هغـه ژونـدي موجـودات وو چـې د تـاريخ او طبيعـت پـه څېـر لـه ذاتي وړتيا برخمن وو.

-د مشـهورې وينـا پـر بنسـټ: ووايـه چـې چېرتـه ژونـد كـوې، څـو ووايـو چـې څوک يې؟

-د رومانتيســيزم د دغــو دوو بڼــو تــر ټولــو ډېـره مهمــه او گـډه وجـه همـدا د ارگـانيزم يـا (ژونـدي موجوداتـو) اسـاسي مفهـوم و. د رومانتيكـانو پـه نظـر بـوټي او قـوم دواړه ژونـدي ژوي دي؛ يـو شـاعرانه اثـر ژونـدی موجـود دی، ژبه ژوندۍ ده، ان ټوله فزيكي نړۍ يو ژوندی موجود گڼل كېږي.

پـه دې توگـه د مـلي رومانتيسـيزم او نړيـوال رومانتيسـيزم تـر مـنځ كـوم مشـخص تـوپير پـاتې نـه شـو. نړيوالـه روح هـم پـه وگـړو او هـم د وگـړو پـه فرهنـگ كـې موجود و، همدارنگه هم په طبيعت او هم په هنر كې.

- صحيح.

-هـردر د بېلابيلـو هېوادونـو د مـلي ترانـو راټولـول پيـل كـړل، چـې پـه دې لار كـې ډېـر مخـكښ و او خپلـې ټـولگې تـه يـې (د خلكـو غـږ) نـوم وركـړ. ده ان ولسي-كيسـو تـه هـم (د خلكـو مـورنۍ ژبـه) وويلـه. پـه هايـدلبرگ كـې د گـرم ورونو د ولسي ترانو او ښاپيريو داستانو پر راټولولو پيل وكړ.

سوفي، (د گرم ښاپيريو كيسې) نوم به دې اورېدلی وي؟

- هـو، سـپینه واورینـه او اووه چاغـان، رمپـل اسـتیلتزکین، چونګښـه شـهزاده، هنسل او ګرتل...

- او ډېر نور داسـتانونه. مـوږ پـه نـاروې کـې اسبیورنس او مـوء درلـودل، چې د هېـواد پـه ټولـو سـیمو وګرځېـدل او د خلکـو خپلـې کیسـې بـې راټـولې کـړې. لکـه ناڅاپـه چـې یـوه پـه زړه پـورې، خونـدوره او تـازه مېـوه پیـدا کـړي او پـه راټولولو بې بوخته شي؛ په دې کـار کـې بېړه پـه کـار ده، ځکـه کـه مېـوه راټوله نه شي نو نږدې به وي چې له ونې راولوېږي.

ولسي- ترانـې راټـولې شـوې او نـاروېژي ژبـه تـر علمـي څېړنـې لانـدې ونیـول شـوه. د بـت پرسـتۍ د زمـانې اسـطورې او پخـوانی افسـانې لـه سره کشـف شوې.

سـندرو جوړوونکـو د اروپـا پـه هـر ګـوټ کـې هڅـه وکـړه، چـې د محـلي موسـیقۍ او هـنري موسـیقۍ تـر مـنځ واټـن کـم کـړي. پـه همـدې موخـه یـې ولسي نغمې په خپلو سندرو کې ځای پر ځای کړې.

- هنري موسیقي څه ده؟

- هـنري موسـیقي هغـه موزیـک دی چـې یـو څـوک- مـثلاً بتهـوون- یـې جـوړوي. محـلي سـندرې یـو ځـانګړی کـس نـه جـوړوي، لـه خلکـو راپاڅېـدلې. د همـدې لپـاره د بېلابېلـو محـلي ترانـو پـر دقیـق تـاریخ نـه پـوهېږو. د ولسي کیسو او هنري کیسو توپیر هم همدا دی.

- نو هنري کیسې...

- هـنري کیسـې یـو لیکـوال- د بېلګـې پـه توګـه کریسـتان اندرسـن- لیکـي. رومانتیکـانو د ښـاپېریو بېلابېـل داسـتانونه پـه ډېـر شـوق وپالـل. د ادبیـاتو د دې ځانګې یو آلماني استاد اِی، تي، اې هوفمان و.

- د هوفمان افساني مشهورې دي.

- هماغـه ډول چـې د بـاروک پـه زمانـه کـې (تیـاتر) د هـنر مطلـق شـکل ګڼـل کېـده، د رومانتیکـانو لپـاره هـم کیسـې او افسـانې مطلـق ادبي آرمـان و. د دې ځانګې شاعر ته پراخ ډګر ورپېښبود، څو خپله واکمني اعلان کړي.

- او د خيال په نړۍ کې د خدای نقش ولوبوي.
- بلکل، له دې لحاظه نو مناسبه به وي چې خلاصه يې کړو.
- مهرباني.
- رومانتيستي فلسفه (نړيواله روح) د (زه يا منيت؟) يو ډول شمېره. چې په خيال ډوله حالت کې تول ځيزونه په نړۍ کې رامنځته کوي. فېخته فيلسوف ويل: طبيعت له يو ډول عالي او ناهوښيار تخيل څخه راپيدا شوی.
شيلنگ بې پردې وويل، نړۍ (په خدای) کې ده. د هغه په عقيده خدای د خپل خلقت په يوه برخه خبر دی، خو د طبيعت نور اړخونه بيا د خدای د ناپېژندل شويو برخو ښکارندوی دي، ځکه خدای هم يوه تياره خوا لري.
- جالب او وېروونکی فکر دی، ماته بارکلي رايادوي.
- د هنرمند او اثر تر منځ اړيکه يې هم بلکل همداسې ليدله.
د ښاپېريو کيسې ليکوال آزاد پرېږدي څو خپل نړۍ رامنځته کوونکی خيال لاډېر په کار واچوي. خو دا پنځونه هم بلکل ارادي نه وي، يعنې ليکوال احساسولی شي، چې داستان په يوه دروني قدرت ليکې او کېدای شي چې په خپله ليکوال هم د ليکلو پر وخت عملاً ځان لکه په خوب کې چې وي، وويني.
- جدي وايې؟
- هو، خو ناڅاپه له خوبه راپاڅي او په خپله په حکايت کې ننوځي او طنز ډوله خبرې خپلو لوستونکو ته وايي او لوستونکی ته هم په ياد ورځي چې دا پېښې يوازې کيسه ده.
- صحيح.
- او ليکوال برلاسی کېږي چې خپل لوستونکي ته ورياد کړي چې دا زه يم چې د خيال نړۍ په واک کې لرم. د خيال پردازۍ د پرې کولو دې ډول ته (رومانتيک طنز) وايي؛ د بېلگې په توگه هنريک ايبسن د خپل پير

ګینت نمایشنامې یوه شخصیت ته اجازه ورکوي چې وویل: انسان نه شي کولی چې د پنځمې پردې تر منځ ومري.

- په حقیقت کې دا ډېره خندوونکې خبره ده. په اصل کې لیکوال مور ته وایي چې یارو له یوه خیالي شخصیته ایسته بل څه نه دی.

- او د هغه خبره دومره باطله ښکاري چې پرته له خنده نوې برخه پیلولی شو.

- مطلب مو له دې خبرې څه و؟

- آه!! هېڅ سوفي. مګر ومو ویل چې د نووالیس د کوژدنې نوم هم د تا په څېر سوفي و او کله چې د پنځلسو کلونو او څلورو ورځو شو نو مړه شوه.

- تاسو پوهېږئ، په دې خبرو ما وېروئ.

آلبرتو په بې احساسه څېره کېناست او په څیر یې سوفي ته وکتل، بیا یې وویل:

- ته باید ونه وېرېږې چې د نووالیس کوژدنې په سرنوشت اخته نه شې.

- ولې به نه وېرېږم؟

- ځکه تر اوسه څو نور څپرکي پاتې دي.

- څه وایئ!؟

- دا وایم چې هر څوک د آلبرتو او سوفي داستان لولي طبعاً پوهېږي، چې تر اوسه باید د داستان ډېرې نورې پاڼې هم ولولي. موږ اوس نوي د رومانتیسیزم څپرکي ته رسېدلي یو.

- تاسو ما ګنګسوئ.

- په اصل کې قومندان هڅه کوي چې هیلده ګنګسه کړي، دا ډېره بده ده، کنه؟

نوې برخه...!

آلبرتو خپله خبره نه وه خلاصه کړې چې یو هلک په منډه منډه له ځنګله راووت. خولی یې پر سره وه او یو تیلي څراغ یې په لاس کې و. سوفي د آلبرتو مټ ونیو.

نجلۍ وپوښتل: دا نو څوک دی؟

هلک په خپله ځواب ورکړ: زما نوم علاءالدين دی، زه د لبنان له ډېر لرې ځايه راغلی يم.

آلبرتو هغه ته وکتل: او په لاس کې دې څه دي؟

هلک پر څراغ لاس ومومښه، له څراغه د دود په څېر لخوړه راووته او په يوه سړي بدله شوه. ږيره يې د آلبرتو په څېر وه او آبي رنګه قره قلي خولۍ يې پر سر وه. د څراغ پر سر همداسې په هوا کې ولاړ و او ويې ويل:

هيلدې! غږ مې اورې؟ ګومان کوم نور به د کليزې مبارکۍ ويلو ته ناوخته شوې وي. ما غوښتل ووايم چې برکلي او زموږ د هېواد سهيلي سيمې دلته په لبنان کې مانه د ښاپېريو د هېواد په څېر ښکاري. زه به يو څو ورځې وروسته هغه ځای درباندې ووينم.

دا خبرې يې وکړې او بېرته په يوه لوخړه بدل شو او په څراغ کې ننووت. هلک خولۍ پر سر څراغ په کوت کې وينو، په ځنګله کې ننوت او ورک شو.

سوفي وويل: د نه منلو وړ ده.

-د حيرانېدو څه نه وو ګرانې.

-د څراغ سړي بيخي د هيلدې د پلار په څېر خبرې کولې.

-ځکه د هيلدې د پلار روح وه.

-مګر...

-زه، ته او زموږ شاوخوا ټول شيان د قومندان په ذهن کې اوسو. دا ډېر وخت کېږي چې د شنبې شپې، راهيسې د قومندان په شاوخوا کې د ملګرو ملتونو ټول سرتېري ويده دي. په خپله قومندان هم-که څه هم وينښ دی- خو لږ پاتې ده چې ويده شي. خو هر ډول چې کېږي مجبور دی، د هيلدې د پنځلس کلنې د کليزې ډالۍ کتاب پای ته ورسوي او د

همدې لپاره باید کار وکړي، سوفي. له همدې امله هغه خوارکی آرام نه لري.

- زه هېڅ نه شم پوهېدی.

- نوې برخه.

سوفي او آلبرتو غلي کېناستل او سیند ته یې کتل. آلبرتو خوبولی و-لږ شېبه وروسته سوفي جرأت وکړ چې د هغه اوږه وښوروي.

- خوب دې لیده؟

- هو. دا ځل یې مستقیماً مداخله وکړه. دا څو وروستي جملې یې کلمه په کلمه وویلې. شرم نه لري! خو نور یې ځان نه شي کنټرولولی او موږ یې خلاص شوي.

اوس نو موږ پوهېږو چې په یوه کتاب کې اوسېږو؛ هغه کتاب چې د هیلدې پلار یې خپلې لور ته په کلیزه کې ډالۍ کوي. وادې وربدل چې څه مې وویل؟ خو دا خبرې ما ونه کړې.

- که ستاسو خبرې رښتیا وي نو زه له دې کتابه تښتم او خپله لاره نیسم.

- دا هماغه نقشه ده چې ما ایستلې. خو مخکې تر اقدامه باید هڅه وکړو چې له هیلدې سره خبرې وکړو.

هیلده زموږ ټولې خبرې لولي، که له دې ځایه وتښتو، له هغې سره اړیکې نیول به ډېر ګران شي؛ دا فرصت باید غنیمت وشمېرو.

- هغې ته څه ووایو؟

- فکر کوم قومندان- سره له دې چې د ټایپ د ماشین تکمې ژر ژر په خپلو ګوتو وهي- لږ پاتې چې خوب یې یوسي.

- څومره وحشتناکه فکر.

- په دې شېبه کې ممکن داسې څه ولیکي چې وروسته پرې پښېمانه شي او هغه سپین رنګ پاک هم نه لري. دا زما د نقشې تر ټولو مهمه برخه ده، خدای دې وکړي چې کوم څوک هغه ته سپین رنګ پاک ونه رسوي.

- زه خو به هېڅکله د لیک پاکولو کومه وسیله ورنه کړم.

-زه همدا اوس له دې ځایه له همدې چوپ نجلۍ غواړم چې د خپل پلار پر ضد پاڅون وکړي. پلار یې نه شرمېږي چې د خپلې لور د سات تېرولو لپاره پر نورو لوبې کوي؟ که هغه دلته وای...

-دریغه

-د هغه روح دلته ده، د هغه روان دلته دی، خو په خپله په لبنان کې دی.

مور چې هر څه په خپله شاوخوا کې وینو د قومندان (زه) دي.

-خو قومندان له هغه څه هم ډېر دی، چې مور یې په خپله شاوخوا کې وینو.

-مور د هغه په روح کې سیوري یو او سوفي، سیوري ته آسانه نه ده چې د خپل څښتن پر ضد پاڅون وکړي.

-دا کار نقشه او تمهید غواړي؛ خو کولی شو چې هیلده تر خپل اغېز لاندې راولو. یوازې پرښتې د خدای پر ضد پاڅون کولی شي.

-مور له هیلدې غوښتلی شو چې کله پلار یې کورته راغی، نو حق یې په لاس ورکړي. کولی شي هغه ته ووایي (نامرده)، کولی شي د هغه کوچنۍ کیښتۍ خرابې کړي، که هېڅ نه کوي لږ تر لږه د هغه د کیښتۍ څراغ دې مات کړي.

آلبرتو سر وخوځاوه، بیا یې وویل: کولی شي له هغه هم وتښتي. دا کار هغې ته زموږ په پرتله آسانه دی. کولی شي د قومندان کور پرېږدي او بیا هېڅکله بېرته ورنه شي. د قومندان سزا - چې پر موږ لوبې کوي او موږ یې د خپل (نړۍ رامنځته کوونکي خیال) نانځکې جوړ کړي یو - همدا ده.

-ته یې تصور کړه، قومندان د هیلدې په لټه کې د نړۍ هر گوټ ته تللی شي، خو هیلده اوس اوبه شوې او پر ځمکه ننوتې ده. ځکه له دا ډول پلار سره ژوند کول نه شي زغملی؛ هغه پلار چې پر آلبرتو او سوفي لوبې کوي.

- هو. ښه دې وویل، پر موږ لوبې کوي. زما مقصد هم همدا و. موږ یې د خپلې لور د کلیزې د لوبې وسیله جوړ کړي یو؛ خو ښه به وي چې خپل کړو ته پام وکړي. سوفي! هیلده هم باید خپلو کړو ته پام وکړي.
- مطلب مو څه دی؟
- فکر دې په بشپړه توگه له ما سره دی؟
- هو، خو که کوم پېری له څراغه راونه وځي.
- ته دا په ذهن کې راوله، هره پېښه چې پر موږ راځي، لومړی په بل ذهن کې روزل کېږي. موږ په خپله هغه ذهن یو. له ځانه روح نه لرو، د بل څا روح یو. تر دې ځایه د نا آشنا فلسفې په پولو کې نه یو. بارکلي او شیلنگ هم زموږ هوا لري.
- او دا روح د هیلدې مولرکناگ د پلار دی. پلار په لبنان کې کېنې او د فلسفې په اړه یو کتاب د خپلې لور پنځلس کلنې کلیزې ته لیکي.
هیلده چې د جون په ۱۵ ورځ له خوبه پاځېږي، د خپل تخت تر څنگ کتاب پر مېز ویني؛ هغه وخت نو هلیده او بل هر څوک زموږ په اړه کیسه لوستی شي. د هیلدې پلار ویلي وو، چې نور هم کولی شي له دې والی گټه واخلي.
- هو په یاد مې دي.
- هغه څه چې همدا زه یې وایم، هیلده به یې لولي؛ البته وروسته تر دې چې په لبنان کې د هیلدې پلار تصویر کړي چې زه تاته وایم چې هغه په لبنان کې دی.
د سوفي سر گنگسېده، هڅه یې کوله چې د بارکلي او رومانتیکانو په اړه یې چې څه اورېدلي وو، را یاد کړي.
آلبرتو کناکس وویل: مگر دوی باید پر ځان ونه نازېږي، اصلاً باید پر موږ ونه خاندي؛ ځکه دا کار ممکن دوی ته یوه گټه په لاس ورکړي.
- د چا په لاس؟
- د هیلدې او پلار په لاس یې. اوس موږ د هغوی په هکله نه غږېږو؟

- ځکه ممکن دوی هم واقعي نه وي.
- څنګه ممکنه ده؟
- که بارکلي او رومانتیکانو ته ممکنه وه، نو دوی ته به ولې نه وي؟ قومندان به هم یو سیوری وي، هیلدې، په خپله د قومندان، همدارنګه زموږ په هکله کتاب کې؛ ځکه موږ هم د دوی د ژوند یوه برخه یو.
- دا خو به کار نور هم خراب شي. ځکه موږ د نورو د سیوري، سیوري کېږو.
- څنګه به ممکنه وي چې یو بل لیکوال په یو ځای کې (په ملګرو ملتونو پورې اړوند د قومندان آلبرت کناک) په اړه په کتاب لیکلو بوخت وي؛ هغه قومندان چې په خپله خپلې لور هیلدې ته کتاب لیکي؟ د قومندان کتاب د آلبرت کناکس په نوم د یوه سړي په هکله دی، چې ناڅاپه په ناقابو فلسفي خبرو پیل کوي او هغه سوفي آموندسن ته لېږي. [پټه: ۳ شمېره کور، کلوور کوڅه]
- څه خبرې؟
- زه یوازې وایم ممکنه ده. هغه لیکوال، زموږ له نظره، (یو خدای) دی. که څه هم چې موږ څه یو او څه وایو د هغه له وجې دي، موږ له دې پرته بل څه نه یو. موږ هېڅکله د ده په هکله په کوم شي نه شو پوهېدی، موږ په راز کې راګېر شوي یو.
آلبرتو او سوفي ډېرې شیبې غلي کېناستل. سوفي دا چوپتیا ماته کړه:
- که په رښتیا بل لیکوال شته چې په لبنان کې د هیلدې د پلار په هکله داستان لیکي، هماغه ډول چې د هیلدې پلار زموږ داستان لیکي...
- بیا؟
- نو شاید دا لیکوال هم پر ځان ونه نازېږي.
- مطلب دې څه دی؟
- دا چې کوم چا زه او هیلده د خپل مغز په ژورو کې پټې کړې یو؛ نو آیا ممکنه نه ده چې په خپله هم د بل چا د تخیل برخه وي؟

آلبرتو سر وښوراوه:

- البته چې ده سوفي، او که داسې وي نو دا هر څه د هغه له وجې دي، چې موږ د فلسفې په اړه خبرې وکړو او دا امکانات ولرو او غواړي ټينګار وکړي چې په خپله هم له يوه ناتوانه سيوري پرته بل څه نه دی او دا اوسنی کتاب، چې هيلده او سوفي په کې دي، په حقيقت کې يو ډول فلسفي درسپانه ده.

- درسپانه؟

- څکه زموږ ټولې خبرې اترې، ټولې ويناوې...

- ښه؟

- په حقيقت کې يوه اوږده مکالمه ده.

- زه داسې احساسوم چې ټول شيان په ذهن او ساه کې خلاصه کېږي، خوشاله يم چې تر اوسه هم د فيلسوفانو ټک او ټوک پر ځای پاتې دی. هغه فلسفه چې له طالس، امپروکلس او دموکريتوس سره پيل شوه، دلته نه شي درېدلی.

- خود به نه درېږي، او ما تر اوسه د هېګل په هکله څه نه دي درته ويلي؛ کله چې رومانتيکانو ټول شيان په نفس کې خلاصه کول نو هېګل لومړی فيلسوف و، چې هڅه يې وکړه فلسفه وژغوري.

- زه ډېره لېواله يم چې په هکله يې څه واورم.

- نو د دې لپاره چې نور سيوري او ارواوې زموږ مزاحمې نه شي، ښه به وي چې جونګړې ته دننه شو.

- هو، د بهر هوا هم سړېږي.

- راتلونکی څپرکی.

# هېګل

## څه چې عقلي دي، پاتې کېدونکي دي

دلیکنو بسته په زوره د کوټې پر غولي ولوېده. هیلده پر تخت پرته وه، سترګې یې چت ته نیولې وې، فکر یې پرېښانه و. پلار یې ذهن ډېر ور نارامه کړی و. آخر ولې؟

سوفي هڅه کړې وه، چې له هیلدې سره مخامخ خبرې وکړي، له هغې یې غوښتي وو، چې د پلار پر ضد یې پاڅون وکړي او په اصل کې توانېدلې وه، چې هیلده فکر کولو ته اړ کړي. د نقشې یوه برخه...

هیلده او آلبرټو د پلار له سره یو وېښته نه شي بې ځایه کولی، خو هیلده یې کولی شي. سوفي یې هم کولی شي- د هیلدې له لارې- پلار ته لاره ومومي.

هیلدې سوفي او آلبرټو په حقه ګڼل. خکه پلار یې د سیوري په لوبه کې زیاتی کړی، ان که سوفي او آلبرټو د پلار راپیدا کړي کسان هم وي، بیا هم باید په خپل حد کې اوسېدلی وای او خپل توان یې دومره نه وی ښودلی.

سوفي او آلبرټو خواران! دواړه د قومندان د تخیلاتو پر وړاندې داسې دي لکه د سینما پر پرده چې ولاړ وي او د ده په حکم عمل کوي.

کله چې کورته راشي، هیلده به یې خدمت وکړي؛ د ډېرې ښې نقشې اصلي کرښې یې په خپل ذهن کې جوړولې. پاڅېده، د کړکۍ تر څنګ ودرېده او خلیج ته یې کتل. ساعت څه کم دوه بجې وې. کړکۍ یې خلاصه کړه او د کښتیو خواته یې غږ کړ.

-موري!!

مور یې بهر راووته.

-زه تر یوه ساعته له ساندویچ سره هلته درځم، سمه ده؟

-سمه ده.

-باید د هېګل څپرکی ولولم.

آلبرتو او سوفي د کړکۍ تر څنګ مخامخ سیند ته پر څوکیو کېناستل
آلبرتو پیل وکړ:
ګیوریک ویلهلم فریدریش هېګل هم په نورو پسې د رومانتسیزم لاروی و. کله چې د جرمن روح په آلمان کې ورو ورو وده وکړه، په ده کې هم بدلون راغی. هېګل په ۱۷۷۰ز کې په اشتوتګارت کې وزیږېد او په اتلس کلنۍ کې یې په توبینګن کې خپلې لوړې زده کړې پیل کړې.
په ۱۷۹۹ز کې، یعنې کله چې د رومانتیسیزم غورځنګ د پرمختګ لو ودې په حال کې و، له شیلنګ سره یې یوځای په ینا ښار کې په کار پیل وکړ. په ینا کې تر څه مودې کار وروسته د استاد د اسستانت په توګه په هایدلبرګ پوهنتون کې استاد شو. دا ښار په المان کې د ملي رومانتیسیزم مرکز و. په ۱۸۱۸ز کې د وبا ناورغې له امله مړ شو. خو دا وخت د هېګل فلسفې تقریباً د آلمان په ټولو پوهنتونو کې پلویان درلودل.
- نو هرو مرو ډېرو مسایلو ته دننه شوی و.
- هو. هم په خپله او هم یې فلسفه. په حقیقت کې هېګل هغه ټولې نظریې چې په رومانتیکي پړاو کې رامنځته شوې وې، یو ځای کړې او پراختیا یې ورکړه. خو ډېریو رومانتیکانو ته یې - له هغې ډلې شلینګ ته - د انتقاد په سترګه وکتل.
- انتقاد یې څه و؟
- شلینګ د نورو رومانتیکانو په څېر ویل، د ژوند تر ټولو ژور مفهوم په هغه شي کې دی چې دوی ورته (جهاني روح) وایي. هېګل هم د جهاني روح اصطلاح وکاروله، خو په یوه بشپړه نوې مانا.
د هېګل مطلب له جهاني روح یا کلي عقل څخه د انسان د ټولو ظواهرو ټولګه ده؛ ځکه یوازې انسان دی چې روح لري. د تاریخ په اوږدو کې د نړیوالې روح د پرمختګ په هکله خبرې کوي.
په هر صورت باید هېر مو نه شي چې د هغه مطلب د انسانانو ژوند، د انسانانو فکر او د انسانانو فرهنګ دی.

. دا توضیح د تېر یوه اندازې د دې روح لـه ګنګوالي یو څه کموي. د هېګل جهاني روح نور په ډېرو او ونو کې د (ویده هوښ) یو ډول نه دی.

. او په یاد دې دي، چې کانت (شی فی نفسه) په نوم خبره کوله. کانت دا نظریه رد کړه، چې بشر ـ د طبیعت لـه داخلي رازونو روښانه پېژندنه مونـدلی شي؛ خو دا یې منله چې یو نایابه حقیقت موجود دی.

هېګل وایي حقیقت ذهني دی او پـه دې توګـه د انسان عقل هـر ډول مـافوق یـا مـاورا حقیقت ردوي. د هېګل پـه وینـا، (هـر معرفت، انساني معرفت دی).

- یعنې فیلسوفان یې بیرته له آسمانه ځمکې ته را ښکته کړل؟

- هو، شاید همداسې ویلی شو. پـه هـر صـورت، د هېګل فلسفه دومره پراخه او څـو اړخیزه ده، چـې د اوسني مقصـد لپاره ناچاره یو، چې ځان د هغـه د فلسفې په ځینو مطالبو محدود کړو. په حقیقت کې دا خبره په شک کې ده که ووایو، چې هېګل له ځانه کومه بېله فلسفه درلوده.

هغه څه تـه چـې د هېګل فلسفه ویل کېږي، تـر ډېره د تـاریخ پـه پرمختـګ باندې د پوهېدلو یـوه تګلاره ده. د هېګل فلسفه مـوږ تـه د ژونـد د ماهیت پـه هکله څه نه را زده کوي؛ خو دا راښیي چې څنګه ارزښتمن فکر وکړو.

- دا ډېر مهم دی.

- تر هېګل مخکې ټول فلسفي نظامونه پـه خپلو کـې یـوه ګـډه کرښـه لـري او هغـه ګـډه کرښـه دا ده چـې ټولـو هڅـه کولـه د نـړۍ پېژنـدلو لپـاره انسـان تـه تلپاتې ظـوابط وړانـدې کـړي. دا پـر دکـارت، سپینوزا، هیـوم او کانـت بانـدې صـدق کـوي. دوی هـر یـو پـه خپـل وار سره د بشر ـ د پېژنـدنې پـه لټـه کـې وو. خو دوی ټولو د انسان لپاره د نړۍ پېژندنه، بې زمانه عامل ګاڼه.

- نو د فیلسوف کار همدا نه دی؟

- هېګل ویل، دا د کـار لاره نـه ده. د هغـه پـه بـاور، د بشر ـ د پـوهې بنسټ نسل پـه نسل بـدلېږي. لـه همـدې املـه (تلپـاتې حقـایق) او بـې زمانـه عقـل نشـته. یوازېنی ثابت ټکی چې فلسفه پرې تکیه کولی شي، تاریخ دی.

- ښښنه غواړم، مګر دا راته واضح کړئ. تاریخ په خپله تل بدلیږي، نو څنګه یو ثابت ټکی کېدای شي؟

- سیند هم تل د بدلون په حال دی، خو دا په دې مانا نه ده، چې په هکله یې خبرې نه شې کولی. او دا هم نه شو ویلی چې سیند په پلانی ځای کې د نورو ځایونو په پرتله حقیقي دی.

- نه! ځکه سیند په خپل اوږدو کې سیند دی.

- د هېګل په نظر تاریخ هم د روان سیند په څېر دی. ګردابونه او ابشارونه د سیند هغه مرحلې دي چې د سیند په هره برخه کې هر کوچنی حرکت ټاکي. خو کېدای شي دا حرکتونه د هغو تیږو او ډبرو له وجې وي، چې سیند زموږ په مخکې ورباندې تېرېږي.

- فکر کوم، پوه شوم.

- او د فکر تاریخ - یا عقل - د همدې سیند په څېر دی. هغه فکر چې د تېرو دودونو په بهیر کې موږ ته راسېدلی - همدارنګه د روانې مادي زماني شرایط - زموږ د تفکر ډول ټاکي. له همدې امله هېڅکله نه شو ویلی چې دا یا هغه نظریه تل سمه ده؛ خو هره نظریه له یوه ځانګړي لیدلوري سمه بلل کېدای شي.

- دا هغې بېلګې ته نه ده ورته چې ووایو هر څېز - تر یوې اندازې - هم سم دي، هم ناسم؟

- خو ځینې څیزونه د هغوی د تاریخي محتوی له مخې کېدای شي یا سم وي یا ناسم. د بېلګې په توګه، که ته په اوسنی زمانه کې د مریتوب تبلیغ وکړې، اوریدونکی که ډېر مهربانه شي نو تاته به احمقه ووایي؛ خو ۲۵۰۰ کاله پخوا تاته چا احمقه نه شوای ویلی، که څه هم هغه وخت د مریتوب پر ضد خبرې کېدې. او یا د سیمې یوه بله بېلګه درته وایم:

سل کاله پخوا زموږ د ځنګلونو لویې برخې سوځول کېدې او په هغه کې کښت کېده. هېچا به دا کار ناوړه نه ګاڼه. خو په اوسنی زمانه کې دا ډېر

ناوړه عمل دی. اوسمهال د دا ډول کړنو په هکله بالکل متفاوت او غوره لیدلوری موجود دی.

-اوس پوه شوم.

-هېګل د فلسفي تاملاتو په برخه کې عقل پلټونکی او یو ډول چاره ګڼله. د هغه له نظره حقیقت همدا چاره ده، څکه پرته له تاریخي چارې کوم بل معیار نه لرو چې موږ ته ووایي کوم څېز حقیقي یا غوره دی.

-هیله کوم، یو مثال ووایې.

-موږ نه شو کولی چې د لرغوني دورې، منځنیو پېړیو، رنسانس یا روښانتیا پړاو نظریې را واخلو او ووایو چې دا سمې دي یا ناسمې. په همدې ډول نه شو ویلی چې ووایو، د بېلګې په توګه، افلاطون تېروتی و او ارسطو په حقه وو. همدارنګه نه شو ویلی چې هیوم پر غلطه و، خو کانت او شلینګ سمه خبره کوله. دا د تاریخي تفکر لاره نه ده.

-نه، سم نه تر سترګو کېږي.

-په حقیقت کې هېڅ فیلسوف- یا هېڅ کومه نظریه- د هغه له تاریخي محتوا څخه نه شو بېلولی. خو دلته یو بل ټکي ته رسېږو، کله چې نوي څیزونه عقل ته ور زیاتېږي نو عقل پرمختللی دی. په بله وینا، د بشر-پوهه تل د ودې او پرمختګ په حال کې ده.

-یعنې د کانټ فلسفه -له ټولو ستونزو سره یې- د افلاطون تر فلسفې سمه وه؟

-هو. جهاني روح له افلاطون څخه تر کانت پورې وده کړې او پرمختللی ده: که ېرته د سیند بېلګې ته وګرځو، ویلی شو چې په سیند کې ډېرې اوبه دي. دا سیند تر زرو ډېر کلونو وشول چې روان دی. کانت باید دا ګومان ونه کړي چې د ده حقایق د کلکو تیږو په شان د سیند په غاړه پاتې کېږي. د کانت نظریې هم صیقل کېږي او راتلونکي نسلونه به د هغه پر عقل نقد کوي او دا ډول کړنه پېښه شوې ده.

-او د هغه سیند یادونه مو چې وکړه...

- هو ؟

- چېرته ځي ؟

- هېګل ادعا کوله، چې جهاني روح د خپلې لا ډېرې پېژندنې پر لور وړاندې ځي. لکه د سیند په څېر - چې هر څومره سمندر ته نږدې کېږي، پلنېږي. د هېګل په باور، تاریخ په حقیقت کې د جهاني روح ماجراده، چې په پرله پسې توګه د ځان په هکله پوهه تر لاسه کوي. نړۍ تل موجوده وه خو فرهنګ او د انسان ودې ورځ په ورځ نړیواله روح له خپل ذاتي ارزښته خبره کړې ده.

- هېګل دا داد له کومه کاوه؟

- دا یې - یو ډول وړاندوینه نه - بلکې تاریخي واقعیت شمېره. هر څوک چې تاریخ ولولي نو ویني چې تاریخ تل د لا ډېرې پوهې او ودې په لور ګام اخیستی. د هېګل په وینا، د تاریخ مطالعه ښیي چې بشر - مخ پر وړاندې تللی. له همدې کبله ویل کېږي چې تاریخ موخه لرونکی دی.

- نو وړاندې ځي او په دې کې شک نشته.

- هو. تاریخ د تامل او تفکر اوږد ځنځیر دی. هېګل یو لړ قواعدو ته اشاره وکړه چې د تامل او تفکر په دغه ځنځیر کې کارول کېږي. هر څوک چې د تاریخ په ژوره څېړنه لاس پورې کړي نو وبه مومي چې هر فکر معمولاً د نورو فکرونو پر اساس - له پخوا وړاندې شوي فکرونه - منځته راځي. خو همدا چې یو فکر وړاندې شو نو هغه بل فکر نقضوي، یعنې د دغو دوو فکرونو تر منځ تناقض پیښېږي او د دغو دوو تناقضو مسئلو، پرېکړه بیا دریم فکر کوي. هغه دریم فکر چې د دوو مخکېنیو فکرونو تر ټولو ښه ټکي په ځان کې لري. دې بهیر ته هېګل دیالکتیکي چاره وویله.

- یو مثال راته ویلی شې؟

- په یاد دې دي چې تر سقراط مخکې فیلسوفانو د لومړني جوهر، تغیر او بدلون په هکله بحث کاوه؟

-له خه مې په ياد دي.

-وروسته بيا الياييانو ادعا وکړه چې بدلون ناممکن دی، دوی د حواسو له لارې د خپل درک له بدلون سره سره له بل هر ډول بدلون څخه منکر وو.

-نو الياييانو يوه ادعا وړاندې کړې وه- هېگل دې ډول ليدلورې ته تز وايي.

-بيه؟

-خو کله چې دا شان افراطي ادعا وړاندېزېرې نو پر وړاندې يې بله ادعا د نقض لپاره سر پورته کوي. هېگل دې يوې ته نفي وايي. د الياييانو د فلسفي نفي، هراکليتوس و، چې ويې ويل ټول شيان په بدلون کې دي. په دې توګه د دوو فکري مکتبونو تر منځ بشپړ تناقض منځته راغی. خو امپدوکلس وايي د دې دواړو ادعاوو يوه برخه سمه او يوه يې ناسمه ده او شخړه هواروي.

-هو دا مې په ياد راځي.

-الياييانو سم ويل چې هېڅ شی په حقيقت کې بدلون نه کوي، خو کله چې يې وويل پر خپلو حواسو باور نه شو کولی نو پر خطا لار ولاړل. هراکليتوس هم چې ويل پر خپلو حواسو باور کولی شو، نو پر حق و؛ مگر دا يې تېروتنه وه، چې ويل يې ټول شيان بدلون مومي.

-څکه تر يوه زيات جوهر په کار و. د دوی ترکيب بدلون مومنده، نه په خپله جوهر.

-بالکل. د امپدوکلس نظريې ته - چې د دوو فکرونو تر منځ د واټن کرښه ده- هېگل نفي سلب ووايه.

-څه يې خونده اصطلاح.

-او د پېژندنې دريو ډولونو ته يې تز، انتي تز او سنتز وويل. هېگل ويلی شوای چې د بېلګې په توګه ووايي، د دکارت عقلپالنه تز او د هيوم تجربه پالنه د هغه انتي تز وه او د دغو دوو فکرونو تر منځ تضاد يا تناقض د کانت په سنتز کې هوار شو.

کانت په څېنو برخو کې له عقلګرو او په څېنو برخو کې له تجربه ګرو سره همکړه وکړه؛ خو مسئله له کانت سره پای نه مومي. د کانت سنتز اوس په خپله د بل تامل او تفکر - يا بل درې ګوني - څنځير د پيل ټکی کېږي. ځکه هر سنتز، يو بل نوی انتی تز نقض کوي.

- دا هر څه بې اندازې نظري دي.

- هو، بالکل نظري دي. خو هېګل، هغه په تاريخ کې د يوه قالب په توګه نه شمارو. پر دې باور و، چې تاريخ په خپله د دغې ديالکتيکي الګو ښکارندوی دی. له همدې امله يې ادعا وکړه، چې د عقل د ودې لپاره - يا د تاريخ له لارې د نړيوالې روح د پرمختګ لپاره يې مشخص قوانين موندلي دي.

- يا هم نړيواله روح.

- خو د هېګل ديالکتيکي کارونه يوازې په تاريخ کې نه ده. په هر بحث او خبرواترو کې - موږ په ديالکتيکي توګه فکر کوو. يعنې هڅه کوو، چې د بحث تېروتنې پيدا کړو. هېګل دې ته (منفي تفکر) وايي او پر دې باور دی چې موږ د تېروتنو تر تشخيص وروسته د هغه سم ټکي خوندي ساتو.

- يو مثال راکړئ.

- کله چې يو سوسياليست او يو محافظه کار سره کېني او ټولنيز مشکل حلوي نو ډېر ژر د دوی د متضادو فکرونو تر منځ شخړه پېښېږي، خو دا په دې مانا نه ده چې يو يې سل په سلو سم وايي او بل يې سل په سلو غلط. او کله چې بحث پای ته ورسېد غالباً د دواړو د استدلال تر ټولو ښه ټکي چاڼېږي.

- ان شاءالله.

- خو کله چې په دا شان بحثونو کې راګېر شو نو په اسانۍ پرېکړه نه شو کولی، چې کومه خوا تر ډېره عقلي ده. په بل تعبير تاريخ دا ټاکي چې څه سم دي او څه ناسم. څه چې عقلي دي، پاتې کېدونکي دي.

- هر څه چې پاتې شول، پر حق دي.
- او یا برعکس: هر څه چې پر حق وي، پاتې کېږي.
- یو بل کوچنی مثال هم راته ویلی شې؟
- یو سلو پنځوس کاله پخوا ډېریو خلکو د ښځو د حقونو لپاره مبارزه کوله. ډېر نور بیا ښځو ته د برابرو حقونو له ورکولو سره سخت مخالف و. اوسمهال چې کله د دواړو لورو استدلالونه لولو نو په ډېرې اسانۍ سره پوهېدی شو، چې کوم لوری په حقه و او عقیدې یې عقلي وې؛ خو دا باید هېر نه کړو چې زموږ نننۍ پوهه د تېر وخت له امله ده. یعنې ثابته شوې چې حق له هغو سره و، چې د حقونو د برابرۍ لپاره جنګېدل. په دې برخه کې زموږ د نیکونو ډېرې چاپ شوې خبرې چې اوس یې موږ لولو نو ښه نه راباندې لګېږي.
- هو. د هېګل نظر څه و؟
- د ښځو او سړیو د برابرۍ په هکله؟
- هو، زموږ خبرې په همدې هکله نه دي؟
- د هېګل یوه وینا غواړې واورې؟
- هو، ولې نه.
- هېګل وایي: د ښځې او نر تر منځ توپیر د حیوان او بوټي توپیر ته ورته دی. سړي د حیوان په څېر او ښځې د بوټو په څېر دي، ځکه د دوی وده پسته ده او علت یې دا دی چې تر ډېره پر احساس تکیه کوي. که ښځې د حکومت واکمنې شي، هېواد به ډېر ژر له خطر سره مخ شي، ځکه ښځې خپلې کړنې له تولنیزو او نړیوالو غوښتنو سره سمې نه تنظیموي، بلکې د عقیدوي غوښتنو له مخې چلند کوي. د ښځو زده کړې- کومې زده کړې؟- تر ډېره د ژوند په هکله دي، نه د پوهې په هکله. خو له بلې خوا د سړي مقام یوازې د تفکر په ډېروالي او د فني مسایلو په زده کړو تاکل کېږي.
- ډېره مننه، همدومره کافي ده. نور نه غواړم دا شان سپارښتنې واورم.

- خو دا يوه بېلګه ده چې څنګه د خلکو نظر د عقلي امر په هکله پرله پسې بدلون مومي او دا ښيي چې هېګل هم د خپلې زمانې زوی و او مونږ د خپلې يو. زمونږ ننني بديهي نظريات هم د وخت تولنه زده کړه له خاز سره نه لري.

- مثلاً زمونږ کوم نظر؟

- کوم مثال نه لرم.

- ولې يې نه لرې؟

- بايد دداسې شي مثال راوړم، چې اوس د بدلون په حال کې وي. د بېلګې په توګه ويلی شو، د موټر چلول احمقانه کار دی، ځکه هوا ککړوي. ډېر خلک له ډېر وخته دې پايلې ته رسېدلي، خو تاريخ ثابته کړې چې مونږ يې اوس بديهي ګڼو، د تاريخ په رڼا کې بې اعتباره کېږي.

- صحيح.

- يو بل شی هم ليدلی شو: د هېګل په زمانه کې چې کومو سړيو د ښځو د ړتلو لپاره ناروا خبرې وکړې، په حقيقت کې يې د ښځو او سړيو د حقونو د برابرۍ پرمختګ لاچټک کړ.

- څنګه؟

- نظريه يې وړاندې کړه، ځکه ښځو لېږ لېږ پاڅون کړی و. تول په دې باور دي، چې د عقيدې وړاندې کولو ته اړتيا نشته او هر څومره ډېر او ناوړه نظرونه چې دوی د ښځو د ړتلو لپاره ووايي، نو د دې نظر د نقض لپاره لاپياوړي نظرونه رامنځته کېږي.

- هو، البته.

- ويلی شو؛ د انسان صلاح په دې کې ده، چې مخالفان يې پياوړي وي. هر څومره چې دوی ډېر افراط وکړي، له لا قوي غبرګون سره مخ کېږي. لکه (هر څومره چې ژرندې ته ډېرې اوبه ورکړې، هغومره تېزه چلېږي).

- زما ژرنده خو شبېې مخکې تېزه وچلېده.

- د فلسفې یا منطق له نظره د دوو مفاهیمو تر منځ معمولاً یو ډول دیالکتیکي تناقض شته.
- مثلاً؟
- که زه د هستۍ د مفهوم په هکله خبرې وکړم نو د مقابل مفهوم یعنې نیستۍ مفهوم هم ذهن ته راولم. داسې نه شي کېدای، چې کله د خپل شتون په هکله فکر کوو نو ذهن ته مو خپل نشتون رانه شي. د هستۍ او نیستۍ تر منځ تناقض د (کېدل) له مفهوم سره لېرې کېږي، ځکه کوم شی، چې د کېدلو په حال کې دي، هم شته او هم نشته.
- په یاد مې دي.
- د هېګل عقل په دې برخه کې لټون کوي، دا چې هستي د اضدادو وړ ده، نو د هستۍ تعریف هم باید له تضاده ډک وي. یو بل مثال به درته ووایم: نېلسن بوهر (د ډنمارک هستوي فزیکپوه) یو داستان رانقلوي چې وايي، نیوټن د خپل کور پر دروازې یو نعل را ځوړند کړی و.
- د بخت او شګون لپاره.
- مګر دا خرافات دي، خو نیوټن که هر څه و، خرافاتي نه و. کوم چا پوښتنه تري کړې: په رښتیا په دا شان څیزونو باور لرې؟ نیوټن ویلي: اورېدلي مې دي چې بې اغېزې هم نه دي.
- عجیبه ده.
- دا تقریباً سره په ټکر کې خبر ده، خو د نیوټن ځواب بالکل دیالکتیکي دی. نېلسن بوهر - زمونږ د ناروېژي شاعر وینیه په څېر - چې په دوه اړخه بالني مشهور و، ویل: دوه ډوله حقیقت موجود دی. سطحي حقایق چې نقض یې طبعاً ناسم دی او ژور حقایق چې نقض یې د خپل ځان په څېر سم دی.
- دا نو څه ډول حقیقت دی؟
- که زه - د ښلګې په توګه - ووایم چې عمر ډېر لنډ دی...
- زه هم وایم چې درسره همنظرې یم.

او وايم عمر څومره اوږد دی.

- او بل ځل لاس اسمان ته پورته کوم او وايم عمر څومره اوږد دی.

- زه بيا هم ستا خبره پر ځای ګڼم. ځکه دا هم له يوه لوري سمه ده.

- اوس به يو مثال درکړم، يوه به شي چې ديالکتيکي تناقض ځنګه کولی شي په خپل سر عمل وکړي او ناڅاپي بدلون رامنځته کړي.

- هو، مهرباني!

- داسې وانګېره لکه يوه لور چې پرله پسې خپلې مور ته وايي، هو، مورې... ډېره ښه، مورې... هر ډول چې ستا خوښه وي مورې... سمه ده، همدا اوس مورې...

- هيڅ راباندې ښه نه لګېږي.

- د نجلۍ مور اخر د خپلې لور له داسې خبرو منلو نه په تنګېږي او چيغې وهي: دومره عاجزه وزه هم مه اوسه او نجلۍ ځواب ورکوي: په سترګو مورې.

- که زه يې پر ځای وی نو يو څپېړه مې تر غوږ لاندې ورکوله.

- کېدای شي. خو که نجلۍ ته ورشو او هغه ووايي: زه غواړم عاجزه وزه واوسم. نو څه به وکړې؟

- دې ځواب حيرانه کړم، خو بيا هم يوه څپېړه ورته ډالۍ کوم.

- نو خبره شخړې ته رسېږي. ديالکتيکي تناقض همداسې شوی و، چې بايد يوه پېښه رامنځته شوې وای.

- مثلاً تر غوږ لاندې څپېړه؟

- او دلته بايد د هېګل د فلسفې يو بله څانګړنه درته ووايم.

- غوږ يم.

- په ياد دې دي چې ومو ويل رومانتيکان فردګرا وو؟

- د لارې راز موږ دننه نړۍ ته بيايي...

- او دې فردپالنې خپل نفي - يا ضد - د هېګل په فلسفه کې وموند. هېګل پر هغه څه، چې ده (عيني) ځواک نوماوه، ټينګار وکړ. په دې ځواک کې هېګل په خانګړې توګه د کورنۍ، مدني ټولنې او دولت پر ارزښت تاکيد

وکړه. هېګل د فرد پر ورانـدې لږ پـه شـک کې و. ده بـاور درلـود چې فـرد د ټولنې اساسي غړی دی. عقل، یا نړیواله روح، تر ټولو ډېر د خلکو پر یو بل د متقابلې اغېزې په پایله کې ثابتېږي.

-لطفاً دا راته لږ واضح کړئ.

-عقل تر هر څه ډېر په ژبه را څرګندېږي. موږ د ژبې په نس کې نړۍ ته سترګې پرانیزو. زموږ ملي ژبه پرته زموږ له موجودیته هم خپل ژوند ته دوام ورکوي، خو موږ پرته له ژبې ژوند نه شو کولی. نو ژبه یو فرد جوړوي، نه فرد ژبه.

-سمه خبره ده.

-ماشوم نه یوازې ژبه بلکې د ژبې په تاریخي بهیر کې زېږي، هېڅوک له دې تاریخي بهیر سره ازاده اړیکه نه لري، نو چا چې په دولت کې ځای ونه موند، غیر تاریخي کس شمېرل کېږي. که دې په یاد وي، دې نظریه د آتن لویو فیلسوفانو ته هم اساسي ارزښت درلود.

دولت پرته له ښاریانو همدومره د نه تصور وړ دی لکه څومره چې ښاریان پرته له دولته.

-هو.

-هېګل دولت تر یوه ښاري زیات ګڼي. دولت د خپلو ښاریانو له مجموعې څخه هم غوره دی. په همدې اساس، د هېګل په وینا، انسان له ټولنې خپلې اړیکې نه شي پرې کولی. هر څوک چې خپلې ټولنې ته شا کړي او وغواړي چې خپله روح ومومي نو رشخند کېږي.

-زه تر ډېره موافقه نه یم، خو بیا هم ادامه ورکړئ.

-د هېګل په باور نړیواله روح ده چې ځان مومي نه فرد.

-نړیواله روح ځان مومي؟

-هېګل وایي، نړیواله روح په دریو پړاوونو کې بېرته ځان ته راګرځي، یعنې په دریو پړاوونو کې د ځان په هکله پوهېږي.

-چې عبارت دي له؟

- نړيواله روح لومړی په فرد کې ځان پېژني. هېګل دې پړاو ته ذهني وايي. وروسته په کورنۍ، مدني ټولنه او دولت کې لاهېر ځان پېژني، هېګل دې پړاو ته عيني وايي ځکه د خلک په متقابل چلند کې راڅرګندېږي. خو درېيم پړاو هم شته.
- او هغه کوم دی؟
- نړيواله روح د خپل تحقق تر ټولو غوره بڼه په مطلق پړاو کې ترلاسه کوي.
هنر، دين او فلسفه د دې مطلق روح برخه ده او په دې منځ کې فلسفه د معرفت تر ټولو لوړه بڼه ده؛ ځکه په فلسفه کې نړيواله روح پر تاريخ د خپلې اغېزې په هکله فکر کوي؛ نو نړيواله روح په فلسفه کې ځان پېژني. شايد ويلی شو، چې فلسفه د نړيوالې روح هنداره ده.
- دا هر څه دومره له رازه ډک دي، چې زه بايد څو شېبې کېنم او په هکله يې فکر وکړم؛ خو دا وروستۍ برخه مې يې خوښه شوه.
- کومه، فلسفه د نړيوالې روح هنداره ده؟
- هو، دا ښکلې وه. ستاسو په نظر دا زموږ له برنزي هنداري سره اړيکه لري؟
- اوس چې پوښتې، نو هو.
- مقصد مو څه دی؟
- ګومان کوم برنزي هنداره خپل خاص ارزښت لري، ځکه هر کله پيدا کېږي.
- تاسو حتماً پوهېږی چې څه ارزښت لري.
- نه، نه پوهېږم. ما يوازې دومره وويل که هيلدې او د هغه پلار ته به يې ارزښت نه درلوداى، نو دومره به يې په هکله نه غږېدی. اوس دا چې ارزښت يې څه دی، يوازې هيلده پوهېږي.
- رومانتيک طنز.
- څه پوښتنه، سوفي؟ زه يې ځواب نه شم ويلی.

- ولې؟
- ځکه دا شیان زموږ په واک کې نه دي. موږ د دې طنز بېنوا قربانیان یو.
که بو ماشوم پر کاغذي پاڼه انځور وکاږي، آیا ته ترې پوښتنې شې چې هغه نقاشي څه ده؟
- دومره مې وجود مه لړزوه.

# کرکه گور

## ... اروپا د ماتې په حال کې ده...

هیلدې ساعت ته وکتل، د مازیګر څلور بجې وې، د لیکنو بسته یې پر میز کېښوده او په منډه بشکته پخلنځي ته ولاړه. باید ژر یې ځان د کینټیو کارځي ته رسولی وی. باید مور یې ډېره سترګې په لاره نه وی پاتې. د برنزي (برنجي) هینداري تر مخ چې تېرېده، نو نظر یې ورباندې پرېووت.

داش یې ګرم کړ او په بېړه یې څو ساندویچه جوړ کړل. کوښښ یې کاوه، چې له پلار سره چالاکي وکړي. هیلده ورو ورو د سوفي او آلبرتو هملاسې کېده. نقشه یې له هغه وخت پیلېده چې پلار یې کپنهاګ ته رسېده.

له لوی پتنوس سره د کینټیو کارځي ته ولاړه. ویې ویل:

مهرباني! دا مو هم مازیګري خواړه.

د مور په لاس کې د سرېښ پاڼې وې، وېښتان یې له تندي لرې کړل. سر کې یې رېګ پروت و.

- نو ماښام به نوره ډوډی نه خورو؟

د اوبو تر څنګ کېناستې او په خوړو یې پیل وکړ.

څو شیبې وروسته هیلدې وپوښتل: پلار مې څه وخت راځي؟

- په شنبې. ما فکر کاوه ته به پوهېږې.

- په څو بجو؟ تا ویل په کپنهاګ کې خپله الوتکه بدلوي؟

- هو.

مور یې له ساندویچه کپ وکړ او ویې ویل:

پنځو بجو شاوخوا کې کپنهاګ ته رسېږي. د کرستین سن الوتکه په پنځلس کمو اتو حرکت کوي او احتمالاً په نهه نیمو بجو به د کیوېک په هوایي ډګر کې پر ځمکه کېښني.

- نو څو ساعته د کپنهاګ په هوایي ډګر کې پاتې کېږي...

- هو، ولې؟
- هیڅ. همداسې مې فکر کاوه.

هیلډه خو شیبې غلې وه، بیا یې بې باکه وویل: د **آنه** او **اوله** په اړه کوم خبر لرې؟

- کله کله زنګ وهي. کېدای شي د جولای په رخصتیو کې راشي.
- تر هغې مخکې خو نه راځي.
- نه، ګومان نه کوم.
- نو دا اوس په کپنهاګ کې دي؟
- هیلډې! دومره پوښتنې ولې کوې؟
- هیڅ. هسې مې پوښتنه وکړه.
- تر اوسه دې دوه ځلې د کپنهاګ نوم یاد کړ.
- رښتیا؟
- خبره دا وه چې د پلار الوتکه په کپنهاګ کې ښکته کېږي.
- د همدې لپاره به آنه او اوله رایادې شوې وي.

ډوډۍ یې چې وخوړه، هیلډې په بېړه خپل قاب او ګېلاس په پتنوس کې کېښودل.

- مورې، زه باید پاتې لیکنې ولولم.
- سمه ده.

په غږ کې یې لږ رټنه نه وه؟ دواړو ویلي وو، چې مخکې د پلار له راتګه، باید کېښتۍ جوړې او منظمې کړي.

- له پلار سره مې وعده کړې چې مخکې له راتګه یې کتاب پای ته رسوم.
- د سړي غوسه ورته راځي. هم په سفر کې دی، هم پر کور خپل حکمونه چلوي.

هیلډې تر ژبه لاندې وویل: ته څه خبره یې چې نورو ته بې څومره فرمان او دستور ورکړي او نه پوهېږې چې له دې کاره څومره خوند اخلي.

خپلې کوټې ته ولاړه. بیا یې لوستل پیل کړل.

سوفي ناڅاپه د دروازې غږ واورېد. آلبرتو سوفي ته وکتل.

- مزاحم نه غواړو.

دروازه لا په زوره وټکېده.

آلبرتـو وويـل: غـواړم د هغـه ډنمـارکي فيلسـوف پـه هکلـه درتـه ووايم چې د هېګل له فلسفې نه په تنګ و.

د دروازې غږ لا زور واخيست او ټوله دروازه په لړزه شوه.

آلبرتـو وويـل: شـک نشـته چـې قومنـدان دی، بيـا يـې کـوم څـوک را استولی، چې موږ پـه دام کـې واچـوي. هغـه تـه خـو سـخت کـار نـه دی، د اوبـو څښلو غوندې دی.

- او کـه دروازه خلاصـه نـه کـړو څـه بـه ووينـو چـې څـوک دي، نـو هغـه تـه سخته نه ده چې کور مو پر سر راونړوي.

- ربښتيا وايې. بايد دروازه خلاصه کړو.

دواړه دروازې تــه ورغلــل. دروازه دومــره پــه زوره وهــل کېــده، چـې سوفي ګومـان کـاوه، د دروازې تـر شـا بـه ضرور کـوم دېـو ولاړ وي. خـو وړه نجلۍ وه، اوږده بـور وېښـتان يـې وو، پـر ځـان يـې ابي رنګـه کـالي وو او د دروازې تـر مـخ پـر زينـه ولاړه وه. پـه دواړو لاسـونو کـې يـې بوتلونـه وو، يـو بې سور بل بې ابي.

سوفي وويل: سلام، ته څوک يې؟

نجلۍ درناوی وکړ او ويې ويل: زما نوم اليس دی.

آلبرتـو سر وغوځـاوه او ويـې ويـل: پوهېـدم. دا اليـس د عجـايبو پـه ملـک کې ده.

- خو دلته څه کوي؟

اليس وويـل: د عجـايبو ملـک هغـه هېـواد دی چـې حـد او پولـه نـه لري. يعنې د عجايبو هېواد هـم - تـر يـوه حـده د ملګـرو ملتونـو غونـدې- پـه هـر ځای کې دی. دا ملـک بايـد د ملګـرو ملتونـو افتخـاري غـړی شي او مـوږ بايـد پـه ټولو

کميسيونونو کې استازي ولرو. ځکه ملګري ملتونه هم د خلکو د اعجابيو پايله ده.
آلبرتو تر ژبه لاندې وبوګنېده: واای!!... ټول د قومندان له لاسه.
سوفي وپوښتل: ښه، ته دلته څه کوې؟
-ماته دنده راکړل شوې چې دا دوه فلسفي بوتلونه سوفي ته ورسوم.
بوتلونه يې سوفي ته ورکړل. په يوه کې سور رنګه او په بل کې ابي رنګه مايع وه. پر سره بوتل ليکل شوي وو، ما وڅښه او پر ابي بوتل ليکلي وو، ما هم وڅښه.
شېبه وروسته سپينه سوئه د جونګړې له مخې په منډه تېرېده، واسکټ يې پر خان و او ښکته پورته په دوو پښو پر لاره تله. د جونګړې مخ ته چې ورسېده، د واسکټ له جېبه يې ساعت راوايست او ويې ويل:
-واااې!! راباندې ناوخته شو.
بيا په منډو شوه. اليس هم وروسې په منډو ورغله، مخکې تر دې چې ځنګله ته ننوځي، بيا يې درناوی وکړ او ويې ويل: بيا شروع شو.
سوفي ورپسې چيغې کړې: دينا او ملکې ته مې سلام وايه.
آلبرتو او سوفي د جونګړې پر زينه همداسې ولاړ وو او بوتلونو ته يې کتل. سوفي پر هغو ليکل شوي توري ولوستل: (ما وڅښه او ما هم وڅښه) زه خو يې د څښلو جرأت نه لرم، شايد زهر وي.
آلبرتو يوازې خپلې اوږې پورته واچولې.
-دا قومندان استولي او هر څه چې له قومندانه ورسېږي، ذهني دي. نو مايع واقعي نه دي.
سوفي د سره بوتل سر خلاص کړ او په احتياط يې پر شونډو کېښود. عجيب خوږ خوند يې و، خو دا د پېښې پيل و. کله چې مايع تر ستوني ښکته شوه، شاوخوا يې ځينې پېښې وشوې. ته به وايې لکه سيند، ځنګل او جونګړه چې سره ګډ او يو شوي وي. لږ وخت نه و تېر، چې ټول شيان

د یوه کس په بڼه بدل شول او هغه کس دا په خپله وه. آلبرتو ته یې وکتل، هغه هم د سوفي د روح یوه برخه ښکارېده.

ویې ویل: عجیبه ده، ټول شیان هغسې دي، چې وو. خو ټول تر یوه شي زیات نه دي. احساس کوم لکه ټول څیزونه چې یو فکر وي.

آلبرتو سر وخوځاوه. خو د سوفي په نظر داسې راغلل لکه په خپله دا چې سر خوځوي.

آلبرتو وویل: دا وحدت الوجود یا د تصور اصالت دی. د رومانتیکانو نړیواله روح ده. د هغوی د تجربې پر اساس ټول شیان یو لوی (زه) و. همدارنګه هېګل دی چې فرد کم ګڼي او ټول څیزونه یې د یوازېنۍ نړۍ د عقل تجلا ګڼل.

- په نظر دې له دې بل بوتله هم وڅښم؟

- همداسې خو یې پرې لیکلي.

سوفي د آبي بوتل سر خلاص کړ او غوړپ یې تېر وکړ. دا مایع لږ څه تازه، تونده او تېزه وه. شاوخوا یې دوه څلې ناڅاپه ټول شیان بدل شول.

د سره بوتل اغېز ژر له منځه ولاړ او هر څه بېرته عادي شول. آلبرتو بیا آلبرتو شو، ونې بیا ځنګله ته راغلې او اوبه بېرته د سیند په بڼه واوښتې. خو دې حالت ډېر دوام ونه کړ او څیزونه بېرته ورو ورو له یو بله جلا شول. اوس ونې ځنګل نه وې او هره ونه په خپل حال نړیواله شوه. وړې څانګې د ښاپېرۍ د افسانې نړۍ ته ورته شوې، هغه نړۍ چې په هکله یې زرګونه داستانونه ویلی شو. کوچنی سیند ناڅاپه لوی اقیانوس شو، نه یوازې د ژوروالي او پنډوالي له مخې- بلکې د اوبو او څپو له مخې هم.

سوفي احساس کاوه، لکه ټول عمر چې کولی شي اوبو ته وګوري او تر مرګه هم د هغه په ټولو رازونو پوه نه شي. سترګې یې د ونو پر څوکو ولګېدې. درېیو کوچنیو مرغیو سره لوبې کولې. پټ پټوني خو به یې نه کول؟ سوفي د سره بوتل په ښېښلو سره لږ څه وپوهېده چې په دې ونه کې

مرغان دي، خو هغوی یې سم نه لیدل. سور رنګې مايع ټول فردي نوپيرونه له منځه وړي وو.

سوفي له لويې دبريني زينې راښکته شوه، کېناسته او وښو ته يې وکتل. دلته بې بله نوې نړۍ ومونده، لکه د يوه لامبوزن په څېر چې د لومړي ځل لپاره د اوبو په تل کې سترګې خلاصوي.

د ښاخ. پاڼو او بوټو تر منځ واښه شنه وو او ذره ذره جزيات يې ښکارېدل. يوه غنه په قوي ګامونو د کوم مقصد لپاره په وښو کې روانه وه. سور رنګه مياسه پر پاڼو ښکته پورته الوته. د مېږيانو لښکر د وښو تر منځ پر ډله ييز کار بوخت و، خو هر ناڅيز مېږی په خپله خاصه طريقه پر لاره روان و.

او تر ټولو عجيب دا چې، کله سوفي پاڅېده، آلبرټو ته يې وکتل، آلبرټو لاهم د جونګړې تر مخ پر زينه ولاړ و؛ خو ډېر عجيب او غريب موجود تر سترګو کېده، لکه له کومې بلې سيارې چې راغلی وي او يا د ښاپېريو د داستانونو کومه جادو شوې څېره وي.

سوفي خان يکې يو او بالکل تازه موجود احساساوه. اوس نو يوازې يوه پنځلس کلنه او عادي نجلۍ نه وه، بلکې سوفي اموندسن وه او يوازې دې کولی شواى چې سوفي اموندسن واوسي.

آلبرټو وويل: څه شی وينې؟

- همدا وينم چې ته يو عجيب مرغه يې.

- رښتيا؟

- فکر کوم زه به هېڅکله پوه نه شم چې يو شی د بل په شان کېدل څنګه وي. په ټوله نړۍ کې دوه موجوده يو شان نه شي کېدای.

- او ونې؟

- هغوی هم د مخکې په څېر نه دي، بلکې د عجيبو کيسو ښښه نړی ده.

- هماغه څه چې ما ګومان کاوه. آبي رنګه بوتل د فردپالنې دی. د بېلګې په توګه د سورن کرکه ګور غبرګون د رومانتيکانو د نظريو پر وړاندې.

همدارنګه د یوه ډنمارکي پر وړاندې چې د کرکه ګور په زمانه کې اوسېده، نامتو افسانه لیکوونکی هانس کریستیان اندرسن. هغه هم د طبیعت د ډېرو پیاوړو او غني جزییاتو لپاره تېز نظر درلود. کوم فیلسوف چې دا څیزونه تر یوې پېړۍ زیات ننداره کړل، الماني لایب نیتس و.

لایب نیتس هم لکه - کرکه ګور، چې په څېر د هېګل پر ضد یې غبرګون وښود-ده هم د سپینوزا د ایډیالستي نظریې پر وړاندې غبرګون وښود.

- غږ دې اورم، خو دومره خندوونکی دی چې غواړم وخاندم.

- حیران نه شوم. اوس له سره بوتله یو غوړپ وڅښه او راشه دلته پر زینه کښېنه چې د کرکه ګور په هکله درسره خبرې وکړم او د نن ورځې درس پای ته ورسوو.

سوفي د آلبرتو تر څنګ کښېناسته. له سره بوتله یې غوړپ وکړ او څیزونه دوه څلې سره یو ځای شول. په اصل کې ډېر څیزونه پر یو بل ونښتل. نجلۍ یو ځل بیا احساس وکړ لکه توپیرونه چې هېڅ ارزښت نه لري. ناچاره یې بیا پر ابي رنګه بوتل شونډې کېښودې او شاوخوا یې بېرته لږ څه د پخوا په څېر - لکه د الیس له راتګه مخکې چې وه- بدله شوه.

سوفي وپوښتل: کوم یو یې سم دی؟ سور بوتل رښتینی انځور ښکاروي که آبي؟

- دواړه سوفي. هم آبي او هم سور. مثلاً نه شو ویلی، د رومانتیکانو نظر ناسم و چې ویل یې، یوازې یوه هستي موجوده ده؛ که څه هم د دوی لیدلوری لږ تنګ و.

- او آبي بوتل؟

- ګومان کوم کرکه ګور څو جانانه غوړپه له هغه څښلي. شک نشته چې د فرد د ارزښت په برخه کې د تېز لید خاوند و. خو موږ یوازې (د خپلې زمانې بچیان) نه یو. موږ هر یو، سربېره پر یوازېني فرد، هغه موجود یو چې یوازې یو ځل ژوند کوي.

- او هېګل دې خبرې ته دومره ارزښت ورنه کړ؟

- نه، هېګل تر ډېره د پراخ تاریخ په فکر کې و او همدا وجه وه، چې کرکه ګور یې دومره په تنګ کړی و. د هغه په نظر هم د رومانتیکانو ارمان پالنه او هم د هېګل تاریخ پالنه د فرد مسوولیت د خپل ژوند پر وړاندې پیکه او تیاره کړی. نو هېګل او رومانتیکان یې په یوه لرګي وشړل.

- بوهېدی شم چې ولې یې دومره ضد ورسره درلود؟

- سورن کرکه ګور په ۱۸۱۳ز کې وزېږېد او د ډېر سختګیره پلار تر روزنې لاندې لوی شو. مالیخولیا، د ده مذهبي خیالونه او همونه د همدې پلار له وجې وو.

- دا ښه کار نه دی.

- د همدې مالیخولیا له امله ناچاره شو، چې خپله کوژده خرابه کړي او دا کړنه یې د کپنهاګ بورژوازیانو ته د زغم وړ نه وه، د همدې لپاره له هماغه لومړۍ مرحلې رشخند او مسخره شو. په هر حال، ورو ورو یې زده کړل چې د سوک ځواب باید په سوک ووایي او د هر ورځې په تېرېدو سره د هغو کسانو له ډلې شو چې ځو کاله وروسته به ورته ایبسن (د خلکو دښمن) وایي.

- نو دا ټول د یوې کوژدې د خرابولو له امله وو؟

- نه، یوازې کوژده نه وه. کرکه ګور- په ځانګړې توګه د خپل ژوند په وروستیو کې- پر ټولنه ډېرې نیوکې وکړې.

(ټوله اروپا د ماتې په حال کې ده). ده باور درلود چې په یو بشپړ بې خونده او بې مسوولیته عصر- کې ژوند کوي. تر ټولو ډېر د ډنمارک لوتري او ارتودکس رسمي کلیسا له بېروحۍ په تنګ و. ده په اصطلاح پر (یکشنبې مسیحیت) باندې د نیوکې په برخه کې رحم او مروت هېڅ نه پېژانده.

- په اوسني وخت کې مسیحیت همدا دی چې د کلیسا غړیتوب ولري او ډېر ماشومان یوازې د ډالیو تر لپاره د کلیسا غړي کېږي.

- هو، سمه پوه شوې. د کرکه ګور په نظر مسیحیت دومره غیرعقلي دی، چې باید یا یې په بشپړه توګه ومنې او یا یې په بشپړه توګه رد کړې. دا ګڼه نه لري چې (لږ) یا (تر یوې اندازې) مذهبي واوسې؛ ځکه عیسی د سپېڅلي اختر په ورځ یا له قبره پورته شو او یا راپورته نه شو. او که واقعاً له قبره پورته شو او په رښتیا یې زموږ لپاره ځان ورکړ نو دا دومره لویه مسئله ده چې زموږ ټول عمر به ونیسي.

- پوهېږم چې څه وایې.

- کرکه ګور لیدل چې څنګه خلک او کلیسا دواړه په بشپړه توګه د دیني مسایلو پر وړاندې نامسوولانه چلند لري. د کرکه ګور له نظره دین او معرفت د اوبو او اور په څېر دي.

یوازې دا کافي نه ده چې عقیده ولرو، مسیحیت په حقه دی. مسیحي ایمان یعنې د مسیح د ژوند له ډول څخه پیروي.

- دا له هېګل سره څه تړاو لري؟

- رښتیا وایې. موږ به په غلطۍ سره له پایه پیل ته راغلي وو.

- نو زه وړاندیز کوم چې بېرته شاته ولاړ شئ او له سره یې پیل کړئ.

- کرکه ګور په ۱۷ کلنۍ کې د الهیاتو په برخه کې زده کړې پیل کړې، خو ورځ په ورځ فلسفي مسایلو ته نږدې کېده. په اووه ویشت کلنۍ کې یې فوق لیسانس واخیست. د رسالې موضوع یې (د طنز مفهوم) په نامه وه. په دې اثر کې یې د رومانتیکي طنز او له وهم او خیال سره د رومانتیکانو د نامسوولانه لوبو پر وړاندې په مبارزه پاڅېد. ویې ویل، سره له دې چې سقراط له طنز څخه پربمانه ګټه واخیسته، موخه یې د ژوند عمده حقایقو ته لاره موندنه وه.

سقراط، د رومانتیکانو خلاف، هغه څوک دی چې کرکه ګور یې وجودي متفکر نوموي. یعنې داسې متفکر و چې ټول وجود یې د خپلې فلسفې د بیا کتنې لپاره د ننه واژه.

- بیه؟

- کرکه ګور وروسته د خپلې کوژدې له خرابولو، په ۱۸۴۱ز کې برلین ته ولاړ او د شلینګ په ټولګي کې یې درس پیل کړ.

- هېګل یې ولید؟

- نه، هېګل لس کاله مخکې مړ و. خو افکار یې په برلین او د اروپا په ډېرو برخو کې دود وو. د هغه فلسفي نظام د یوه ټولیز توصیف په توګه د هرې موضوع لپاره کارېده.

کرکه ګور وښوده، چې د هېګل د فلسفې د پام وړ عیني حقایق د فرد له ژوند سره هېڅ تړاو نه لري.

- نو کوم حقایق تړاو لري؟

- کرکه ګور ویل، ددې پر ځای چې په سختو تورو د حقیقت په بیان پسې وګرځو، مهمه دا ده، خو داسې حقایق ولټوو چې د فرد په ژوند کې مفهوم لري. زما لپاره د حقیقت موندنه مهمه ده.

په دې توګه کرکه ګور فرد یا د بشر- ټول وګړي د نظام پر ضد پاروي. د کرکه ګور په باور هېګل هېر کړي وو، چې پخپله هم بشر- دی. د استاد هېګل په هکله یې ولیکل: (استاد د ژوند له ټولو رازونو پرده پورته کوي، خو د ډېرې بېړې له امله یې خپل نوم هېر کړی، له یاده یې وتلي، چې دی په خپله هم یو بشر دی، نه ډېر نه لږ او نه د یوه بند درې اتمه برخه.

- او د کرکه ګور په باور بشر څه دی؟

- دا په ټولیزه توګه نه شم ځوابولی. کرکه ګور د بشر- له خوی یا بشري موجوداتو سره هېڅ کومه لېوالتیا نه درلوده. یوازې د انسان خپله هستي یې مهمه ګڼله او انسان خپله هستي د لیکنې د مېز تر شا نه شي ازمایلی. کله چې په عمل لاس پورې کوو- په ځانګړې توګه کله چې مهمې پرېکړې کوو- نو هغه وخت له خپلې هستي سره اړیکې ټینګولی شو. د بودا یو داستان د کرکه ګور مقصد ډېر ښه روښانوي.

- بودا؟

- هـو، خکـه د بـودا د فلسـفې پيـل هـم د بشر- هسـتي وه. راهـب لـه بودان پوښتنه وکړه: آيـا څينـو اساسي پوښتنو تـه لکـه، نړۍ څه ده او بشر- څه دی، روښانه ځواب ورکولی شو.

بـودا راهـب تـه د داسـې يـو کـس مثال ورکـړ، لکـه زهـرجن غشـی يـې چې په بـدن کـې ښخ وي. تـپي کـس تـه مهمـه نـه ده چـې د غشي- پـه هکلـه نظري معلومات تـر لاسـه کـړي، لکـه، غشـی څـه دی، يـا پـه څـه ډول زهـرو لړلی دی، يا له کوم لوري راغلی.

- پـه ډېـر بـاور چـې اوس هغـه غـواړي غشـی راوبـاسي او د تـپ درملنه يې وکړي.

- هـو، سم دې وويـل. دا کـار د ده لپـاره وجـودي ارزښت لـري. بودا او کرکه گـور پـه رښـتيا ومونـده، چـې د لنـډې شېبې لپـاره موجـود دي. پـه دې توگه نو لکـه مخکـې مـو چـې وويـل، دا سـمه نـه ده چـې د مېـز تـر شـا کېنـې او د نړيوالې روح د ماهيت پـه هکله فلسفې ووايې.
- هو، خود سمه نه ده.
- همدارنگه کرکه گـور ويـل چې حقيقـت ذهنـي دی. مقصـد يـې دا نـه و چې زمـوږ د فکـر ډول يـا ايـمان بـې ارزښـته دی، بلکـې غوښـتل يـې ووايـې چې واقعـاً مهـم حقـايق شخصي- دي. او يـوازې همـدا حقـايق دي چـې زمـا لپاره حقيقت لري.

- د ذهني حقيقت يو مثال ويلی شی؟
- مـثلاً، يـوه مهمـه پوښـتنه دا ده چـې مسـيحيت حقيقـت لـري. دا هـسې موضـوع نـه ده چې پـه علمـي يـا نظـري توگـه ورتـه ځـواب وويـل شي. د هغه چا لپـاره چې ځـان درک کـوي، دا د مـرگ او ژونـد موضـوع ده. داسې څه نه دي چې کېنې او پـه هکلـه يـې يـوازې خـبرې وکـړې. بلکـې هغـه مطلب دی چې بايد په پوره لېوالتيا او صميميت ور نږدې شي.
- د پوهېدني وړ ده.

-که په اوبو کې ولویږې نو له دې سره چې ډوبېږې یا نه ډوبېږې کومه علمي علاقه نه لري، یا دا چې اوبه تمساح لري، درته جالب یا ناجالب نه دی. مهمه د مرګ او ژوند مسئله ده.

-پوه شوم، ډېره مننه.

-نو باید د خدای د وجود فلسفې او له دې مسئلې سره د فرد اړیکې - یعنې هغه ځای چې موږ هر یو په کې سل په سلو یوازې یو- ترمنځ توپیر وکړو.

بنسټیزو پوښتنو ته یوازې د ایمان له لارې نږدې کېدی شو. هغه څیزونه چې د عقل، یا معرفت، له لارې پېژنو؛ د کرکه ګور له نظره بالکل بې ارزښته دي.

-ګومان کوم ښه به وي چې دا راته واضح کړئ.

-اته او څلور دولس کېږي. پر دې مطلق یقین لرلی شو. دا هغه مستدل حقایق دي چې ټولو فیلسوفانو له دکارته وروسته په هکله یې خبرې کړې وې. خو ایا دا په ورځنۍ دعا یا لمانځه کې وایو؟ ایا دا هغه څه دي چې د خوب په بستر یې په هکله فکر کوو؟ دا ډول حقایق که هر څومره عیني او کلي وي بیا هم د انسان په هستۍ کې اغېز نه لري.

-ایمان څنګه؟

-کله چې له چا سره بدي کوې، نو هېڅکله نه پوهېږې، چې هغه بښلې یې که نه. نو دا تا ته وجودي ارزښت لري او داسې موضوع ده، چې ډېره یې په فکر کې یې. همداسې نه شې پوهېدی چې څوک درسره مینه لري که نه. دا هغه څه دي، چې یوازې هیله ورته لرلی شې او موږ ته دا شیان تر دې مهم دي د مثلث د زاویو مجموعه ۱۸۰ درجې ده. د ښکلولو پر وخت، انسان د علت او معلول د قانون یا د حسي-ادراک پر ډول فکر نه وي.

-او که فکر وکړې یو څه پرې کېږي.

- ایمان په مذهبي مسایلو کې تر ټولو مهم عامل دی. کرکه ګور وایل: که زه توانېدای چې خدای په عیني توګه پیدا کړم، باور مې پرې نه کاوه. خو دا چې نه شم کولی دا کار وکړم نو باید پر هغه باور وکړم. که غواړم چې خپل ایمان له لاسه ورنه کړم، باید دا شک لرې کړم. په دې توګه به په هر ډول ژورو کې خپل ایمان په امن کې وساتم.

- ډېر ګران دی.

- ډېرو هڅه کړې وه، چې د خدای وجود ثابت کړي یا له هر لوري خدای د عقل او برهان په محوطه کې راولي. خو که پر عقلي دلیل یا منطقي استدلال بسنه وکړي، خپل ایمان بایلي یا خپل مذهبي شور او شوق کموي. څکه څه چې مهم دي د مسیحیت پرحق والی نه دی، بلکې دا دی چې ستا لپاره حقیقت لري کنه. همدا نظریه په منځنیو پېړیو کې د (کردو کوویا ابسردوم) په عبارت وړاندې کېده.

- دا څه مانا؟

- یعنې (باور لرم، څکه له عقله لرې ده). که مسیحیت پر عقل ولاړ وای او په نورو برخو کې یې کار نه لرلی، نو د ایمان په هکله خبرې کول به بې مانا وی.

- اوس پوه شوم.

- تر دې ځایه د کرکه ګور په مقصد له (وجود، ذهني حقیقت او ایمان) پوه شوم. کرکه ګور د دغو مفاهیمو له لارې د فلسفې پر دود- په تېره پر هېګل- نیوکه وکړه. په ټولنیزو نیوکو کې هم د ده نظریات ګټونکي وو. ویل یې، فرد د ښارمېشتې ټولنې له عموم څخه یو نوی جز دی او د جمعیت اصلي ځانګړنه د خلکو په نامتعهدو خبرو کې ده. اوسمهال د همرنګی کلمه له جماعت سره کاروو، یعنې دا چې ټول یو ډول فکر کوي او باور پرې لري، بې له دې چې په ژوره توګه یې احساس کړي.

- زړه مې غوښتل چې پوه شم، که کرکه ګور د یووانا پلار او مور لیدلي وای، څه به یې ویلي وای.

- کرکه ګور په خپلو پرېکړو کې ډېر مهربانه نه و. قلم يې تاند او تېز و او تريخ طنز يې درلود. د بېلګې په توګه ويلي يې شواى، حقيقت په جماعت کې نه وي، يعنې حقيقت تر ډېره په اقليت کې دى او له ژوند سره د ډېرو خلکو چلند مصنوعي دى.
- انسان کولى شي نانځکې ټولې کړي، خو که په خپله نانځکه شي نو دا کار نه شي کولى.
- اوس د کرکه ګور نظريې ته رسېږو، د هغه څه په هکله چې ده ورته د ژوند درې ګوني پړاوونه ويل.
- وبښئ؟
- کرکه ګور باور درلود، چې د ژوند درې ډوله شکلونه موجود دي. په خپله يې د مرحلې اصطلاح وکاراوه. دا عبارت دي له: حسي- مرحله، اخلاقي مرحله او ديني مرحله.
د مرحلې لفظ يې ځکه وکاراوه، چې ټينګار وکړي انسان کولى شي له دوو ټيټو مرحلو په يوه کې يې واوسي او ناڅاپه پورته مرحلې ته ولاړ شي. ډېر خلک خپل ټول ژوند په يوه مرحله کې تېروي.
- نو هرومرو به په دې هکله نوره توضيح هم راکوى، زه غواړم پوه شم چې په کومه مرحله کې يم.
- څوک چې په حسي- مرحله کې اوسي، ساه غنيمت شمېري او له هر فرصت څخه د خوند او تفريح لپاره ګټه اخلي. هر څه چې زړه راښکونکي، ښکلي او په زړه پورې دي، ورته ښک ښکاري. داسې کس ټل د محسوساتو په نړۍ کې اوسي او د خپلو حالاتو او غوښتنو مريى دى. خپه کوونکي څيزونه يې تر نظره ترخه او بد وي.
- ډېره مننه، فکر کوم دا ډول کسان پېژنم.
- پسر دې بنسټ رومانتيکان حسي- خلک وو. ځکه دوى هم په ناب جسمي خوند پسې وو. څوک چې له هستۍ - يا هنر يا فلسفې- سره خيالي چلند لري، په حسي- مرحله کې ژوند کوي او څومره ښه که له غم او رنځ

سره هم خيالي چلند ولرو، خو په دې حالت کې د ظاهر چل پر شخص برلاسي شوی دی.
د ايبسن پرگينټ د حسي کس يوه ښکاره بېگله ده.
- گومان کوم په مقصد مو پوهېږم.
- ته داسې څوک پېژنې چې دا ځانگړنې ولري؟
- نه. خو شايد قوموندان لږ څه داسې وي.
- کېدای شي سوفي... او دا په خپله د ده د ناروغ دوله رومانتيکي طنز بېلگه ده. ژبه دې په واک کې لره.
- څه؟
- که څه هم ستا گناه نه وه.
- نو دوام ورکړئ.
- څوک چې په حسي- مرحله کې اوسېږي، ډېر ژر ورته زړه ناکراري، ډار او د تشوالي احساس پيدا کېږي. که له دې حالت سره مخ کېږو، بايد هيله من واوسو. د کرکه گور په باور د زړه ناکراري تر ډېره مثبت احساس دی. داسې ښيي چې فرد په کې وجودي موقعيت پيدا کولی شي او د بلې مرحلې لپاره لوی گام اخلي، خو دا گام يا تر خپل ځايه رسېږي او يا هم نه رسېږي. گټه نه لري چې پر ځای ودرېږي، بايد ښه لوی گام واخلې. يا گام واخلې يا وانه خلې او دا کار کوم بل څوک ستا لپاره نه شي کولی. ته په خپله بايد پرېکړه وکړې.
- لکه د نشه يي توکو د پرېښودو پرېکړه.
- هو، دې ته ورته دی. د پرېکړې په اړه د کرکه گور دا خبره موږ ته تر ډېره سقراط رايادوي چې ويل يې، حقيقي ليد د انسان د وجود لا داخلي برخې سرچينه اخلي. له حسي- مرحلې اخلاقي مرحلې ته يا ديني مرحلې ته تگ بايد په خپله د انسان له باطنه وي. ايبسن دا په پرگينټ کتاب کې ښه راښيي.
دا چې وجودي پرېکړې بايد د انسان له داخله سرچينه واخلي، په دې هکله يو بل استادانه تعريف د داستايفسکي په لوی رومان، جنايات او مکافات، کې موندلی شو.
- تر ټولو ښه کار به دا وي چې د ژوند بله ښه وټاکو.

.او ښايي چې د ژوند اخلاقي مرحله وټاکي. د دې مرحلې ځانګړنه جديت، رښتينولي او د اخلاقي پرېکړو تعقيبول دي. دا تر ډېره د کانت اخلاقي دندې پېژندنې ته ورته ده. يعنې هڅه کوي چې د اخلاقي موازينو پر بنسټ ژوند وکړي.
کرکه ګور هم د کانت په څېر په لومړي سر کې د انسان خوی ته پام کوي. مهمه دا ده، چې ستا تر نظر څه شی سم يا ناسم دي او دا مهمه ده چې کس د سم يا ناسم په اړه عقيده ولري، څوک چې په حسي-مرحله کې وي يوازې په دې فکر کې وي چې کوم څيز خوشالي راوړي او کوم خپګان.
- خو د دې ډول ژوند خطر دا دی چې انسان په کې ډېر جدي کېږي؟
- هو. کرکه ګور هېڅکله ونه ويل چې اخلاقي مرحله د رضايت وړ ده. چې هر څومره دنده پېژوندونکی کس هم وي اخر نه اخر له دومره ايثار او وسواسه ستړی کېږي. دا ستړيا له ډېريو کسانو سره د عمر تر پايه پاتې کېږي. څينې بېرته د ژوند خيالي مرحلې- حسي-مرحلې- ته ځي او څينې نور بيا يو بل ګام اخلي او ديني مرحلې ته رسېږي. د ايمان ژورو ته ځان رسوي. دوی ايمان تر حسي- خوند او عقلي ناري وړاندې بولي. د کرکه ګور په وينا، سره له دې چې (د خدای په خلاصه غېږه کې الوتل ګران دي)، دا د رښتينوالي يوازېنی لار ده.
- مقصد مو مسيحيت دی؟
- هو. څکه ديني مرحله د کرکه ګور له نظره مسيحي دين دی. خو کرکه ګور نامسيحي متفکرانو ته هم ارزښت لري. وجودي فلسفه، چې ډنمارکي فيلسوف رامنځته کړه، په شلمه پېړۍ کې ډېره وځلېده.
سوفي خپل ساعت ته وکتل.
- نږدې اووه بجې دي، زه بايد کورته ولاړه شم، مور مې به اندېښنه کوي.
فيلسوف ته يې لاس وښوراوه او د کېښتيو خواته يې منډه کړه.

# مارکس

## ... تیارې پر اروپا سیوري غوړولې...

هیلده له تخته راښکته شوه، د کړکۍ خواته لاړه، مخ یې د سیند خواته کړ. په شنبې یې چې د کتاب لوستل پیل کړل، د سوفي د پنځلس کلنۍ کلیزه وه. پرون په خپله د هیلدې کلیزه وه.

که یې پلار حساب کړی و، چې هیلده به یوه ورځ مخکې د سوفي د کلیزې برخې ته رسېږي، نو خپله لور یې بیخي کمه ګڼلې وه. هیلدې ټوله ورځ لیکنې لوستې وې او لوستې وې. خو پلار یې رښتیا ویل، چې د کلیزې د مبارکۍ ویلو ویلو لپاره یو بل فرصت هم لري او دا هغه وخت و، چې سوفي او آلبرتو یو ځای د هغې لپاره سندره وویله (کلیزه دې مبارک شه!). هیلده ډېره خجالت شوې وه.

او اوس سوفي په هماغه ورځ چې پلار یې له لبنانه راتلونکی دی، فلسفي مېلمستیا جوړه کړې ده. هیلده ډاډه وه، چې په هغې ورځ به ضرور کومه پېښه کېږي، خو هېڅوک نه پوهېږي چې دا پېښه به څه وي، ان هیلده او پلار یې.

بالکل پر ځای موضوع وه، پلار یې باید مخکې تر دې، چې کور او برکلي ته رسېږي، د عبرت درس واخلي. دا لېر تر لږه هغه کار دی چې هیلده یې د سوفي او آلبرتو لپاره کولی شي؛ که څه هم دوی له هیلدې مرسته غوښتې وه.

مور یې له کیبنټیو سره وه، هیلدې ښکته منډه کړه، د ټیلفون تر څنګ کېناسته، په کپنهاګ کې یې د انه او اوله شمېره پیدا کړه او هغوی ته یې زنګ ووهه.

- مهرباني! انه کوامسدیل.

- سلام، زه هیلده یم.

- آه! څنګه یې؟ په لیله سن کې څه خبرې دي؟

-هر څه ښه دي، رخصتي پيلېدونکې دي او داسې نورې خبرې. پلار مې هم بله اونۍ له لبنانه بېرته کورته راځي.

-څومره عالي!

-هو، زه ورته ورځې شمارم. که رښتيا ووايم د همدې لپاره مې زنګ وهلی.

-ښه دې کړي.

-فکر کوم الوتکه يې په درويشتمه ورځ، د مازيګر په پنځو بجو د کپنهاګ هوايي ډګر کې ښکته کېږي. تاسې به هغه وخت په کپنهاګ کې وی؟

-فکر کوم هو، ولې؟

-ما ويل که زما لپاره دې يو کار کړی وی.

-هو، ولې نه.

-يوه ځانګړې غوښتنه ده. شايد ممکنه هم نه وي.

-حيرانه دې کړم، ته خو يې ووايه...

هيلدې خپله نقشه ورته تشريح کړه. د ليکنو، سوفي، آلبرتو او نورو پېښو په اړه يې انه ته وويل. څو ځلې ناچاره شوه، چې بېرته شاته لاړه شي؛ ځکه هم دې او هم انه ډېر وخندل. په هر حال، هيلدې چې ټيلفون کېښود. نقشه يې په پلې کېدو وه. په خپله دې هم بايد ځينې تياري نيولي وای، خو هغو ته يې لا ډېر وخت درلود.

هيلدې پاتې ورځ او شپه له خپلې مور سره تېره کړه. وروسته په موټر کې د کرسټن سن کومې سينما ته ولاړې. تېره ورځ دواړو کوم خاص کار نه و کړی او نن يې بايد د هغې بدل اخيستی وی. د کيويک هوايي ډګر له مخې چې تېرېدې، د هيلدې په مغز کې څو لوی فکرونه تاوېدل. په هغه شپه ناوخته خپل تخت ته ولاړه، د ليکنو بسته يې را واخيسته او بيا يې لوستل پيل کړل.

د شپې نږدې اته بجې وې چې سوفي له پيچلې لارې بېرته کورته راغله. مور يې په باغ کې له گلانو سره ناسته وه. ناڅاپه يې سوفي تر شا پيدا شوه.

- له کومې خوا راغلې؟

- له پيچلې لارې.

- له پيچلې لارې؟

- ولې، ته خو پوهېږې چې هغې خواته لاره پيچلې ده.

- تـر اوسـه چېـرې وې سـوفي؟ دا دې دويـم ځـل دی چـې پرتـه لـه پيغام پرېښودو ناڅاپه ورکېږې.

- بښنه غواړم مورې. هوا ډېره ښه وه. بهر ووتم چې لږ قدم ووهم.

مور يې پاڅېده او په جدي نظر يې ورته وکتل.

- بيا خو به هغه فيلسوف ته نه وې ورغلې؟

- که رښتيا ووايم، ورغلې وم. د هغه هم قدم وهل ډېر خوښېږي.

- د کليزې مېلمستيا ته دې راځي؟

- هو، خود راځي. ډېر خوشاله شو.

- زه هم خوشاله شوم. د هغه د زيارت کولو لپاره ورځې شمارم.

د مور په خبره کې لږ طعنه نه وه؟ سوفي د ټينگار لپاره وويل:

- ښـه شـو چـې د يووانـا پـلار او مـور مـو هـم را وبلـل، کنـه کېـدای شـوی چې آلبرتو يوازې پاتې شي.

- نه پوهېږم... پـه هـر حـال، زه گومـان کـوم چـې لـه آلبرتـو سره د دوو لويـانو په څېر لږ خبرې وکړم.

- کـه غـواړې زمـا پـه کوټـه کـې خـبرې ورسره وکـړه. زه ډاډه يـم، هغـه بـه دې خوښ شي.

- يو ليک هم درته راغلی.

- رښتيا؟

- د ملگرو ملتونو د گارد مهر هم ورباندې دی.

- ضرور د آلبرتو د ورور دی.

-سوفي، دا شيان پرېږده.

د سوفي مغز ژر په کار شو، د سترګو په رپ کې يې مناسب ځواب وموند. دا خل له غيبه ورته الهام شوی و.

-ما آلبرتو ته ويلي وو، چې نادره پوستي نښې راټولوم او په داسې وخت کې کله ورور په درد خوري.

لکه د مور فکر چې بې ارامه شوی وي. په نرمه يې وويل:

-ډوډۍ په يخچال کې ده.

-ليک چېرې دی؟

-د يخچال پر سر.

سوفي په بيړه دننه ولاړه، پر پاکټ د جون ۱۵، ۱۹۹۰ نېټه ليکلې وه.

پاکټ يې خلاص کړ او کوچنی ليک يې ترې وايست:

*که په ساده حرکت سره موخې ته رسېدلی شې*

*نو دا دومره بې انتها هڅه ولې کوې؟*

په رښتيا هم. سوفي دې پوښتنې ته ځواب نه درلود. مخکې تر دې چې ډوډۍ وخوري، ليک يې له نورو شيانو سره، چې دا ځو اونۍ ټول کړي وو، په صندوق کې کېښود. د دې پوښتنې پر علت به هم ډېره ژر پوه شي.

د بلې ورځې پر سهار يووانا راغلې وه. لومړی يې د بدمينتون لوبه وکړه، بيا کېناستې او د فلسفي مېلمستيا لپاره يې ځينې پلانونه جوړ کړل. بايد ځو داسې شيان شته وي، چې کله چېرې مېلمستيا سړه شوه نو له هغه کار واخلي او مجلس تود کړي.

د سوفي مور چې کور ته راغله، دواړو نجونو لاهم خبرې کولې. د سوفي مور به هر ځل ويل: (د لګښت په کيسه کې مه کېږئ). له ټوکو يې نه ويل. ښايي مور يې په دې فکر کې وه، چې فلسفي مېلمستيا به سوفي-وروسته تر ځو اونيو فلسفي څېړنو - له اسمانه ځمکې ته راښکته کړي.

د مېلمستيا ټول شيان، له کاغذي فانوسونو نيولې ان د (فلسفي ازموينې) تر جايزې پورې يې په هغه شپه معلوم کړل. ښه به وي چې جايزه د ځوانانو

لپاره د فلسفې په هکله يو کتاب وي. خو سوفي باور نه درلود چې داسې کوم کتاب به شته وي.
- د اوړي تر شپې دوه ورځې مخکې، يعنې پنجشنبه د جون په ۲۱مه، آلبرتو سوفي ته زنګ وواهه.
- سوفي!
- هو زه يم آلبرتو.
- آه! سلام، څنګه يې؟
- ډېر ډېر ښه، مننه. ګومان کوم د تېښتې لار مې پيدا کړې.
- د تېښتې لار؟
- پوهېږې. له فکري اسارته تېښته، له هغه زندانه تېښته، چې دا څو وخته په کې ژوند کوو.
- آآه! هو.
- خو تر هغه چې نقشه په کار نه ده لوېدلې، په اړه يې يوه کلمه نه شم ويلی.
- فکر نه کوې چې هغه به ناوخته شوې وي؟ زه بايد پوه شم چې په دې منځ کې څه کاره يم.
- ته تر اوسه ډېره ساده يې. آيا نه پوهېږې چې زموږ ټولې خبرې اورېدل کېږي. نو ښه به وي چې هېڅ يې ونه وايو.
- يعني وضع دومره خرابه ده؟
- هو، لوري. د کار تر ټولو مهمه برخه هغه وخت ترسره کېږي چې موږ خبرې ونه کړو.
- آه!
- موږ په يو ډول خيالي هستي، د اوږده داستان په کلمو کې اوسو. قومندان زموږ ژوند کلمه په کلمه په خپل زوړ لاسي تحريري ماشين تايپوي. نو څه چې پر کاغذ راځي، هغه کېږي.
- هيس!

- څه؟
- په کرښو کې هم خبرونه شته دي او دلته زه غواړم چې فکر مې په کار واچوم.
- سمه ده.
- نو نن او سبا باید له وخت ګټه واخلو. په شنبې بل فیل هوا ته ځي. ته کولی شې همدا اوس دلته راشې؟
- درغلم.
سوفي مرغانو او کبانو ته ډوډۍ ورکړه او د کاهو غټه پاڼه یې کېشپ ته کېښوده. شرکان ته یې د پیشو د خوړو د کنسرو ډبلی خلاص کړ، هغه یې په کاسه کې واچاوه او د تللو پر وخت یې پر زینه کېښود.
له پېچلې لارې بهر ووته او د ځنګله خواته روانه شوه. لږ لا نه وه تللې، چې ناڅاپه یې د اغزو تر منځ د لیکنې پنډ مېز ولید. د میز تر شا سپین ږیری سړی ناست و، ظاهراً د اعدادو په جمع کولو او تفریقولو بوخت و. سوفي نږدې ورغله او نوم یې ترې وپوښت.
سپین ږیري وویل: ابن عزر اسکروج. بېرته په حسابولو بوخت شو.
- زما نوم سوفي دی. تاسې حتماً سوداګر یاست؟
سړي سر وخوځاوه:
- او ډېر شتمن. یوه روپۍ هم باید بېځایه لاړه نه شي. د همدې لپاره مې باید ټول فکر د حسابونو جمع کولو ته وي.
- چې څه؟
سوفي لاس وښوراوه او بېرته روانه شوه. څو څو متره لا نه وه تللې، یوه کوچنۍ نجلۍ یې ولیده، تر لویې ونې لاندې یوازې ناسته وه. زاړه کالي یې اغوستي وو، رنګ یې الوتی او ناروغه ښکارېده. سوفي یې چې په مخ کې تېرېده، نجلۍ لاس جېب ته کړ او اورلګېت یې را وایست.
د اورلګېت ډبلی یې سوفي ته ونیو او ویې ویل: اورلګیت رانه اخلې؟

سوفي خپل جېبونه وپلټل چې وګوري پیسې لري کنه. هو، یوه کروني سکه یې پیدا کړه.

- دانه په څو دی؟

- یوه کرون.

سوفي سکه نجلۍ ته ورکړه او د اورلګیت ډبلۍ یې ترې واخیست.

- ته لومړی کس یې چې تر سلو کلونو وروسته له ما څه اخلې. خینې وختونه مې له ډېرې لوږې حالت خراب شي او ډېر وخت مې له ډېرو سړو یخ ووهي.

سوفي ته حیرانوونکې نه وه، چې د ځنګله په منځ کې وړې نجلۍ ته مشتري نه پیدا کېږي. بیا سوداګر سړی وریاد شو. ولې باید وړه نجلۍ له ډېرې لوږې تر مرګه رسېږي او سوداګر سړی دومره شته ولري.

سوفي وویل: دلته راشه!

د نجلۍ لاس یې ونیو او شتمن سړي ته یې ور وسته. سپین ږیری لاهم په شمېرولو بوخت و.

سوفي وویل: ته باید مرسته وکړې چې دا نجلۍ ښه ژوند ولري.

سړي له کاغذونو سر پورته کړ او ویې ویل: دا ډول کارونه مصرف غواړي، مخکې دې وا نه وربدل چې یوه روپۍ مې باید بې ځایه لاړه نه شي.

سوفي تېنګار وکړ: دا خو بې انصافي ده، چې ته دومره شتمن وې او دا نجلۍ دومره نېستمنه. عادلانه نه ده.

- څه مفته خبره. عدالت یوازې د برابرو کسانو تر منځ پیدا کېږي.

- مقصد دې څه دی؟

- ما زحمت او خواري ایستلې چې دلته رسېدلی یم. دې ته وایي پرمختګ.

بېوزله نجلۍ وویل: که مې لاسنیوی ونه کړې، زه مرم.

- سوداګر سړي بیا سر د حسابونو له کتابچې پورته کړ، قلم یې په بې صبرۍ پر مېز واچوه.

- زما په حساب او کتاب کې تاته ځای نشته. په خپله ځان ته چاره پیدا کړه. ولاړه شه ګدایي وکړه.

نجلۍ په تونده وویل: که دې له ما سره مرسته ونه کړه، ځنګله ته اور اچوم.

سړي چې دا واورېدل، پاځېد، خو ځو یې چې ځان سمبالاوه، نجلۍ اورلګیت ته اور ورته کړی و. اور یې وچو وښو ته ونیو او وښو ژر لمبه وکړه.

سړي لاسونه اسمان ته ونیول او فریاد یې وکړ: خدای مې دې غبر واوري. سور چرګ په اذان راغلی.

نجلۍ په موسکا ورته وویل: فکر دې نه کاوه، چې زه به کمونیسته وم، که نه؟

شپه وروسته نجلۍ، سوداګر سړی او د لیکنې مېز ورک شول. سوفي بوازې پاتې وه، خو د اور لمبو وچ واښه سوځول. اور یې په پښه مړ کړ.

- خدایه شکر!

سوفي سوځېدلو وښو ته وکتل. اورلګید یې لاهم په لاس کې و.

په خپله دې دا اور لګولی و؟

آلبرتو یې تر جونګړې بهر ولید، د پېښې کیسه یې ورته وکړه.

خسیس سوداګر اسکروج، د کرېسمس په سندره کې، د چارلز دیکنز لیکنه ده او د هانس کریستین اندرنس په کیسو کې به دې اورلګید خرڅوونکې نجلۍ په یاد وي.

- هو، خو تمه مې نه درلوده چې د ځنګله په منځ کې به ورسره مخامخ شم.

- ولې دې نه درلوده؟ دا خو معمولي ځنګل نه دی. اوس د کارل مارکس په هکله خبرې کوو او دا ډېر ښه شو، چې د نولسمې نیمایۍ پېړۍ د

شدید طبقاتي کشمکش ښکارنده دي په خپلو سترګو ولېده. خو ښه به وي، داسې ځای ته ولاړ شو چې د قومندان له لاسه په امان کې وو.

یو ځل بیا د کوچني مېز په دوو خواوو کې د کړکۍ ترڅنګ مخامخ سېند ته کېناستل. سوفي وروسته د ابي رنګه مایع له څښلو نه، تر اوسه هم د سیند په اړه هماغه احساس په خپل وجود کې درلود.

دواړه بوتلونه پر مېز ایښي وو. د یوه یوناني معبد کوچنی ماډل هم پر مېز ایښی و.

سوفي وپوښتل: دا څه شی دی؟

- هر شی په خپله موقع ګراني.

آلبرتو په خبرو پیل وکړ: کرکه ګور چې په ۱۸۴۱ز کې برلین ته ولاړ، د شلینګ درس ته د کارل مارکس تر څنګ کېناست. کرکه ګور د خپل مافوق لېسانس رساله د سقراط په هکله ولیکه. مارکس هم په دې وخت کې خپله د دوکتورا رساله د دموکریتوس او اپیکور- یا په بله وینا په لرغوني دوران کې ماده پالنه- په هکله لیکلې وه. په دې توګه دواړو همدا خپلې فلسفي لارې ټاکلې وې.

- یعنې کرکه ګور اګزیستانسیالیست شو او مارکس ماتریالیست.

- مارکس د تاریخي ماتریالیزم پلوی شو. خو دا وروسته ته پرېږدو.

- هر څه چې ستاسو خوښه وي.

- کرکه ګور او مارکس، هر یوه په خپل وار سره، د هېګل فلسفه د خپل کار بنسټ وټاکه. دواړه د هېګل د تفکر تر اغېز لاندې وو، خو دواړو د هغه نړیواله روح یا ایډیالیزم رد کړ.

- ښایي ځکه چې ډېرنی وجود یې نه درلود.

- حتماً. په ټولیزه توګه ویل کېږي، چې د فلسفي د لویو نظامونو دوره له هېګل سره پای ته ورسېده. وروسته تر ده فلسفه په یوه بالکل نوې لاره کې پرېوته. د لویو نظري نظامونو پر ځای، وجودي فلسفه یا عملي فلسفه رامنځته شوه. د مارکس مقصد همدا و، چې ویې ویل: تر ننه پورې د نړۍ

فیلسوفان په بیلابیلو طریقو یوازې تفسیر شوي؛ مهم د دوی بدلول دي. دا کلمات د فلسفې په تاریخ کې د عطف مهم ټکی شمېرل کېږي.
- وروسته د اسکروج او اورلګید خرڅوونکې نجلۍ له لیدلو نه، د مارکس پر مقصد ښه پوهېږم.
- د مارکس نظریو عملي- یا سیاسي- هدف درلود. مارکس یوازې فیلسوف نه و؛ مورخ، ټولنپوه او اقتصادپوه هم و.
- او په دې ټولو برخو کې مخکښ هم و؟
- په عملي سیاست کې پرته له شکه چې هېڅ فیلسوف د ده په اندازه ارزښت نه لري. له بلې خوا، باید پام دې وي، هغه څه ته چې مارکسیزم ویل کېږي د مارکس له خپل تفکر سره یو شان ونه ګڼې.
ویل کېږي چې مارکس د ۱۸۴۰مې لسیزې په نیمایي کې مارکسیست شو، خو ان وروسته له هغه هم ده کله لازمه ګڼله چې ټینګار وکړي، چې په خپله مارکسیست نه دی.
- نو عیسی په خپله مسیحي نه و؟
- هغه هم ځانته بحث لري.
- ادامه ورکړئ.
- ملګری او همکار یې، فریدریش انګلیس، له هماغه پیله، په هغه څه کې چې وروسته ورته مارکسیزم وویل شول، مهمه ونډه درلوده. لینین، ستالین، مایو او ډېر نور کسان یې هم زموږ په خپله پېړۍ کې مارکسیزم یا مارکسیزم- لنینیزم ته ورسول.
- ښه به وي چې په خپله مارکس ښه وپېژنو. تاسو ویل د تاریخي ماتریالیزم پلوی و؟
- مارکس د پخواني دوران د اتومستیانو، یا د اوولسمې او اتلسمې پېړۍ د میخانیکي ماده پالو د پلویانو په څېر ماده پال فیلسوف نه و. خو پر دې باوري و، چې د ټولنې مادي عوامل تر ډېره زموږ د فکرکولو دول

مشخصوي او بې له شکه چې د ټولنې دا شان مادي عوامل په تاريخي
تحول کې ټاکونکی رول لري.

- دا د هېګل له نړيوالې روح سره بيخي توپير لري.

- هېګل ويلي وو، تاريخي تحول د متضادو چلندونو پايله ده او يا ناڅاپي
بدلون پای ته رسېږي. مارکس دا نظريه پر مخ يووړه او ويې ويل، هېګل
سر په ځنې ولاړ و.

- ان شاءالله چې ټول عمر نه.

- هېګل د تاريخ پرمخ وړنې ځواک ته نړيواله روح يا نړيوال عقل وايه.
مارکس ادعا وکړه، چې دا واقعيت سرچپه ښيي او هڅه يې وکړه، ثابته
کړي چې مادي بدلونونه پر تاريخ اغېز لري. معنوي اړيکې، مادي بدلون
نه زېږوي، برعکس، مادي بدلون دی، چې نوې معنوي اړيکې رامنځته
کوي. مارکس په ځانګړې توګه ټينګار وکړ، چې د ټولنې اقتصادي
ځواکونه د بدلون سبب کېږي او تاريخ پر مخ وړي.

- يو مثال راکولی شې؟

- په لرغوني پېر کې د فلسفې او علم موخه يوازې نظري وه. هېڅوک په
دې لټه کې نه وو، چې نوي څيزونه کشف کړي.

- ولې؟

- علت يې د ټولنې د اقتصادي ژوند شکل او سامان و. توليد تر ډېره د
مريي په کار او زحمت پورې تړلی و. له همدې امله ښاريانو اړينه نه بلله
چې د عملي خلاقيت له لارې د توليد د ډېرولو هڅه وکړي. دا په خپله
يوه بېلګه ده، چې څنګه مادي اړيکې د ټولنې پر فلسفي فکر اغېز کوي.

- هو، پام مې دی.

- مارکس دې ډول مادي، اقتصادي او ټولنيزو اړيکو ته د ټولنې بنسټ
وايي. د وګړو د تفکر ډول، بېلابېل سياسي ګوندونه، قوانين او همدارنګه
دين، اخلاق، هنر، فلسفه او علوم د ټولنې مخ بنا بولي.

- د ټولنې بنسټ او مخ بنا ډېر ښه.

-او اوس لطفاً هغه يوناني معبد ماته راکړه.
سوفي معبد ورکړ.
-دا د اکروپوليس پر غونډۍ د پارتنون د معبد موډل دی. تا هغه په اصل کې هم ليدلی.
-هو، په هغه ويډيويي فلم کې مې ليدلی.
-دا معبد ډېر ښکلی چت لري او لومړی څيز چې سترګې وربانديې لګېږي همدا چت دی. دا هغه شی دی چې مخ بنا بلل کېږي. چت خو په هوا کې نه شي درېدای.
-چت پر پايو درېږي.
-پايې-بنسټ-د هرې ودانۍ د کلکې ساتنې لپاره وي. مارکس باور درلود چې مادي اړيکې هم په دې توګه د يوې ټولنې د افکارو او نظريو ساتونکې دي. د ټولنې مخ بنا په اصل کې د ټولنې د بنسټ ښکارندوی دی.
-غواړې ووايې چې د افلاطون د مثال عالم، د اتن د کلالي او شراب جوړوني ښکارندوی دی؟
-نه. دا چې مارکس دومره روښانه وويل، مسئله دومره ساده نه ده. موضوع د ټولنې د بيخ بنا او مخ بنا متقابل اغېز پر يو بل دی. که مارکس دا متقابل اغېز نفي کړی وای، نو هغه ته مو هم ميخانيکي ماترياليست بللی شوای. خو مارکس پوه شو، چې د روبنا او زيربنا تر منځ متقابله اړيکه يا ديالکتيکي اړيکه موجوده ده، له همدې امله مارکس ته ديالکتيکي ماترياليست وايو. رښتيا بايد پوه شې، چې افلاطون نه کلال و او نه شرابو جوړوونکی و.
-ډېر ښه. د معبد په هکله نورې خبرې نه لرې؟
-ولې، لږ څه کولی شې د معبد بنسټ راته تشريح کړې؟
-د معبد يعنې د معبد پايې چې پر درېيو پلو ولاړې دي.

- د ټولني په بنسټ کې هم دا شان درې پايې پېژندلې شو. تر ټولو اساسي پله يې د ټولنې د توليد شرايط بلل کېږي. په بله وينا، هغه شرايط يا طبعي سرچينې چې د ټولنې په واک کې دي. مقصد مې د اوبو، هوا او اومه مواده په څېر د شيانو احوال او اوضاع ده. دا د هرې ټولنې پايه او اساس دی. دا پايه او اساس د ټولنې د توليد ډول ټاکي، په همدې توګه د هغه خواص او کلي فرهنګ.

- د بېلګې په توګه د افريقا په دښته کې نه شو کولی چې کب ونيسو يا د ناروې په شمال کې د خرما ونه وکرو.

- بارک الله. او د صحرايي خلکو د تفکر ډول، د ناروې د شمال د کب نيوونکو د تفکر له ډول سره ډېر توپير لري. بله پايه يا پله د ټولنې د توليد وسايل دي. د مارکس مقصد هغه توکي، تجهيزات، ماشينونه او خام مواد دي چې په ټولنه کې پيدا کېږي.

- پخوا به کبنيوونکو د ښکار لپاره د سيند تر منځه پورې پارو وهله. خو اوسمهال دوی د دې کار لپاره د کب نيوني لويې کيښتۍ لري.

- هو، او اوس به د ټولنې د بنسټ دريمه پله يا پايه يادوې، يعنې هغه کسان چې د توليدي توکو مالکان دي.

- مارکس د کار وېش، يا د کار د وېشنې څرنګوالي او مالکيت نه د ټولنې توليدي اړيکې وايي.

- سمه ده.

- تر دې ځايه پوه شوو، چې د يوې ټولنې سياسي او عقيدتي اوضاع، د ټولنې د توليد د ډول له مخې ټاکل کېږي. بې هېڅه نه ده، چې نن ورځ د پخواني فيوډالي ټولنې پر ورانـدې بـل ډول فکـر لـرو- او نسبتاً متفاوت اخلاقي موازين لرو.

- نو مارکس پر ثابت طبعي او تل معتبره حق باندې باور نه لري؟

- نه. د مارکس په وينا، دا چې څه سم دي او څه ناسم، د ټولنې د بنسټ لاسته راوړنه ده. د بېلګې په توګه تصادفي نه وه، چې په پخوانيو ټولنو کې

په مور او پلار پربکړه کوله چې اولاد يې له چا سره واده وکړي.
وه چې څوک يې د کرونديې وارث کېږي. په اوسنيو ښارونو کې ټولنيزې اړيکې بل ډول دي. اوس وخت کې ته کولى شې د خپل ژوند له راتلونکي ملګري سره په يوه مېلمستيا يا د نڅا په هوټل کې اشنا شې، او که ډېر مو يو بل سره خوښ شول نو څئ او له يو بل سره ګډ ژوند کوئ.
-زه هېڅ کله دا نه شم منلى چې د مور او پلار په خوښه له يو چا سره واده وکړم.
-نه، څکه ته د خپلې زمانې اوسېدونکې يې. مارکس ټينګار درلود چې دا واکمنه طبقه ده چې معيار ټاکي او وايي، څه سم دي او څه ناسم. څکه د ټولو ټولنو اوسنى موجوده تاريخ د طبقاتي کشمکش تاريخ دى. په بله وينا تاريخ په لومړۍ درجه کې د توليدي وسايلو د مالکيت موضوع ده.
-يعنې د خلکو افکار او نظريې د تاريخ په بدلون کې هېڅ ونډه نه لري؟
-هم يې لري، هم يې نه لري. مارکس دا منله چې د ټولنې روبنايي شرايط کولى شي د ټولنې پر بنسټيزو شرايطو متقابل اغېز ولري. خو دا يې نه منله چې د ټولنې روبنايي شرايط له څانه مستقل تاريخ ولري. ويل يې، د تاريخي تحول لېږد له پخوانۍ ټولنې څخه، اوسنۍ صنعتي ټولنې ته تر هر څه ډېر د ټولنې د بنسټيزو بدلونونو له امله دى.
-هو، دا مو مخکې هم ويلي.
-مارکس باور درلود، چې په ټولو تاريخي مراحلو کې تل د ټولنې د دوو عمده طبقو ترمنځ تعارض موجود و. د مريیتوب په پخوانۍ ټولنه کې د ښاريانو او مرييانو تر منځ تعارض و. د منځنيو پېړيو په فيوډالي ټولنه کې د فيوډال د اربابانو او رعاياوو تر منځ- وروسته د اشرافو او ښاريانو ترمنځ- تعارض و. خو په خپله د مارکس په زمانه کې- هغه څه ته چې ده بورژوازي ټولنه يا پانګونه نوماوه- تر ټولو ډېر تعارض د پانګوالو او کارګرانو، يا پرولتاريا، تر منځ موجود و. يعنې جګړه د هغو کسانو تر منځ وه چې د توليدي وسايلو مالکين وو او نه وو. بل دا چې لوړې طبقې خپل

داوطلبانه څواک نورو ته نه سپاري، نو بدلون پوازې د انقلاب له لارې راتلی شي.

- او کمونیستي ټولنه؟

- مارکس له پانګوالي ټولنې څخه کمونیستي ټولنې ته خاصه پاملرنه درلوده. مارکس د پانګوالي تولید په طرز مشروحه تجزیه او تحلیل هم ترسره کړ. خو مخکې تر دې چې دا برخه تشریح کړو، باید د انسان د کار په هکله د مارکس لید درته ووایم.

- مهرباني.

- خوان مارکس، مخکې تر دې چې کمونیست شي، ډېر په دې فکر کې و، څو پوه شي چې د کار کولو پر وخت انسان ته څه پېښېږي. دا هغه څه وو چې هېګل هم څارلي وو. هېګل باور درلود چې د انسان او طبیعت تر منځ متقابله اړیکه- یا دیالکتیکي- موجوده وي. کله چې انسان په طبیعت کې بدلون راولي، په خپله هم بدلېږي. یا په بله وینا، انسان د خپل کار په وسیله پر طبیعت اغېز ښندي او هغه بدلوي. خو په دې چاره کې طبیعت هم پر انسان اغېز اېږدي او د هغه پوهه کې بدلون راولي.

- ووایه څه کوې، څو ووایم چې څوک یې.

- دا په لنډه توګه د مارکس نظر دی. زموږ د کار ډول زموږ پر پوهې اغېز لري او زموږ پوهه پر کار. د سر او لاس تر منځ ویلی شو چې متقابله اړیکه ده. په دې توګه زموږ د فکر ډول زموږ له کار سره نږدې اړیکه لري.

- نو بېکاري د ژور خپګان سرچینه ده.

- هو. بېکاره کس په یوه مفهوم تش دی. هېګل ډېر ژر پر دې پوه شو. کار هم د هېګل او هم د مارکس په نظر مثبت څیز دی او د انسان له جوهر سره تړاو لري.

- په دې توګه نو کارګري باید یو مثبت څیز وي.

.په اصل کې هو. او دا هغه ځای دی چې مارکس د خپل انتقام تېره
څوکه د پانګوالۍ تولید تګلارې ته کړه.
.او هغه انتقاد یې څه و؟
.په پانګوالي نظام کې کارګر د بل کس لپاره کار کوي. په دې توګه د ده
کار په خپله ده ته بهرنۍ اړخ لري - یعنې په خپله ده پورې تعلق نه لري.
کارګر بې له کار سره پردي کېږي او په ورته وخت کې له ځانه هم پردی
کېږي. له هستۍ سره خپله اړیکه له لاسه ورکوي. مارکس په دې برخه
کې هېګلي اصطلاح (له ځانه پردی والی) وکاروه.
-زما یوه خاله ده، تر شلو ډېر کاله کېږي چې د شربتو په فابریکه کې کار
کوي، له همدې امله ستاسو پر مقصد ښه پوهېږم. خاله مې وایي هره ورځ
چې سهار غواړي کار ته ولاړه شي، ښه خپه شي.
-او که له خپل کاره دومره په تنګ ده، نو په یوه تعبیر له ځانه هم په تنګ
ده.

-او څه چې واضح دي، شربت یې ډېر بد ایشي.
-په پانګوالی ټولنه کې کار داسې جوړ شوی چې کارګر په حقیقت کې د
بلې ټولنیزې طبقې لپاره ځان ورکوي. په دې توګه نو کارګر خپل کار-له
هغه سره خپل ټول عمر- د بورژوازي په واک کې اېږدي.
-وضع په ریښتیا دومره بده ده؟
-موږ د مارکس او د نیمایي مخکې پېړۍ د ټولنیز احوال او اوضاع په اړه
خبرې کوو. نو د پوښتنې ځواب دې سل په سلو کې مثبت دی. کارګرانو
تر ډېره په سړو او یخ وهلو تولیدي کارځایونو کې د ورځې دولس ساعته
کار کاوه. معاشونه دومره کم وو، چې ماشومان او مېندوارې ښځې هم
ناچارې وې چې کار وکړي. دې وضعې بد ټولنیز شرایط را منځته کړل. په
ډېرو ځایونو کې د کارګرانو د معاش پر ځای ارزان بیه شراب ورکول
کېدل او ښځو د ناچارۍ له درده په ناروا کارونو د خپلو معاشونو کمښت
جبرانساوه. د دوی مشتریان د سیمې شریف اوسېدونکي وو. لنډه دا چې

کار باید د انسان د شرافت نښه وي، کارگر یې په باروړونکي حیوان بدل کړی.
- دا زما وینه په جوش راولي.
- د مارکس وینه یې هم په جوش راوسته. په دې لړ کې د شتمنې طبقې ماشومانو به وروسته تر حمامه، په گرمه او نرمه کوټه کې وایلن واهه، یا به یې د شپې تر خوړو مخکې پیانو غږوله. د وایلن او پیانو غږول وروسته تر اس سورلي د سرگرمۍ ښې وسیلې وې.
- وای! څومره بې عدالتي.
- مارکس هم همدا ویل. او په ۱۸۴۸ز کې یې د انگلیس په مرسته د کمونیزم وینا خپره کړه. د دې وینا لومړۍ جمله وه: تیارې پر اروپا سیوري غوړولي- د کمونیزم تیارې.
- څومره وېروونکې.
- بورژوازیان هم ووېرېدل. ځکه په دې وخت کې پرولتاریانو لاریون کړی و. غواړې پوه شې چې د وینا وروستۍ برخې څه وه؟
- هو، لطفاً.
- کمونیستان دا شرم گڼي چې خپل عقاید او اهداف پټ وساتي، نو په ښکاره اعلان کوي، د دوی موخې یوازې هغه وخت پوره کېږي چې موجوده ټولنیز شرایط پر کار واچوي. پرېږده چې واکمنه طبقه د کمونیستي انقلاب له ډاره ولړزېږي. رنځور خلک به پرته له رنځه بل څه له لاسه نه ورکوي او نړۍ به خپله کړي. د نړۍ زیارکښو، سره یو ځای شئ!
- که وضع داسې خرابه وه. گومان کوم ما به هم دا وینا لاسلیک کړې وای. مگر اوسمهال وضعیت بالکل بدل شوی کنه؟
- په ناروې کې هو، خو په ټولو ځایونو کې نه. تر اوسه هم ډېر خلک په غیرانساني شرایطو کې ژوند کوي او په دې حال کې بیا هم تولید کوي او پانگوال لا نور شتمنوي. مارکس دې ته استثمار وایي.

.که زحمت نه کیږي دا لغت راته معنا کولی شی؟
.کوم محصول چې کارگر تولیدوي، د مبادلې ځانگړی ارزښت لري.
.هو.
.اوس که د کارگر معاش او د بل تولید بیه د مبادلې له ارزښته راټیته کړي، یا یو مبلغ پاتې کیږي. دې پاتې مبلغ ته مارکس سود وایه. یا په بله وینا، کوم ارزښت چې کارگر یې منځته راوړي، پانگوال یې خپل جیب ته اچوي. د استثمار مطلب همدا دی.
.سمه ده.
.پانگوال اوس د خپل سود یوه برخه په نوې پانگونې کې لگوي- مثلاً، خپله تولیدي دستگاه پرې نوې کوي- په دې هیله چې خپل محصول په ټیټ لگښت تولید کړي او ډېر سود لاسته راوړي.
.چې منطقي ده.
.هو، منطقي په نظر راځي. خو کار په اوږدمهال کې، نه په دې مورد او نه په نورو مواردو کې، د پانگوال د تصور پر اساس مخ ته نه ځي.
.مقصد مو څه دی؟
.د مارکس په باور، د پانگوالی د تولید په تگلاره کې یو څه ذاتي تضاد موجود دی. پانگوالي هغه اقتصادي نظام دی چې په خپله د خپلې نابودی سبب کیږي، ځکه عقلي مهار نه لري.
.د خورول شویو لپاره ځومره ښه، کنه؟
.هو، د پانگوالی نظام په ځان کې ذاتاً د له منځه تلو په خوا ځي. پانگوالي په دې مفهوم باید وړاندې وشمېرو ځکه د کمونیزم د تحقق په لاره کې یوه مرحله ده.
.د پانگوالی نظام په ځان کې د له منځته تلو یو مثال ویلی شی؟
.ومو ویل چې پانگوال یو څه اضافي پیسې راوړي او د دې پیسو یوه برخه د خپلې تولیدي فابریکې په نوې کولو مصرفوي، خو د وایلن درس هم خرخ لري او د پانگوال مېرمن هم له جماله ډک ژوند سره عادت ده.

- هو، بې له شکه.

- نوي ماشينونه چې واخيستل شول، بيا نو دومره کارگرو ته اړتيا نشته. دا ټول اقدامونه د سيالۍ د څواک د ډېرولو لپاره دي.

- پوهېږم.

- ټول پانگوال طبعاً په دې فکر کېږي، توليد په توليزه توگه تل د کاروني وړ وي. فابريکې نورې هم لويېږي او ورو ورو په کمو لاسونو کې تمرکز مومي. بنه بيا څه کېږي سوفي؟

- هه؟

- کارگرو ته اړتيا کمېږي، د بېکارانو شمېر زياتيږي. ټولنيزې ستونزې ډېرېږي او دا بحرانونه د پانگوالۍ د کړنو ښکارندويي کوي. خو پانگوالي د فساد نور عوامل هم لري. که د سود کچه له توليدي وسايلو سره تړلې ده او د توليد سيالۍ ته اړتيا نه پاتې کېږي.

- بنه؟

- ... نو هغه وخت پانگوال څه کوي؟ راته يې ويلی شې؟

- نه، متاسفانه.

- داسې فکر وکړه لکه ته چې کور لرې. معاش او خرڅ دې سره برابر نه دي. نه شې توانېدی چې اوليه توکي واخلې څو توليد ته ادامه ورکړې. ماتې دې هم گواښي. د لگښت د راکمولو لپاره څه کوې؟

- شايد معاشونه مې کم کړي وای؟

- هو، دا په حقيقت کې د خيرکۍ کار دی چې کولی يې شې. خو که ټول پانگوال ستا په شان وي- چې دي- کارگران دومره بې وسه کېږي چې نور نه شي کولی کوم شی واخلي. په دې شرايطو کې وايي د اخيستو څواک مخ په کمېدو دی. اوس په اصل کې باطلې دورې کې ولوېدو او په تېزۍ سره انقلابي وضعې ته ور نږدې کېږو.

- هو، پوه شوم.

- داستان اوږد دی. په پای کې پرولتاریا پر پېښو درېږي او تولیدي وسایل په واک کې اخلي.

- او بیا؟

- څه وخت وروسته، یوه بله نوې طبقاتي ټولنه لرو چې پرولتاریا په کې د بورژوازیانو په زور ماتې وخوړه. مارکس دې ته دیکتاتوري پرولتاریا وویل. خو د دې انتقالي دوران له تېرېدو وروسته، بې طبقه ټولنه د پرولتاریا دیکتاتوری ځای ناستې کېږي او په دې ټولنه کې تولیدي توکي په ټولو پورې- په خپله په خلکو پورې-اړه لري. د دې ټولنې تګلاره داسې وه: د هر چا د توان په اندازه، د هر چا د اړتیا په اندازه. همدارنګه د کارګر کار او زحمت په خپله د ده دی او د پانګوالي له خاننه پردي والی له منځه ځي.

- دا ټول ډېر عالي دي، خو په عمل کې څه وشول؟ ایا انقلاب وشو؟

- هو او نه. اوسنیو اقتصادپوهانو ثابته کړې چې مارکس د حیاتي مباحثو په برخه کې تېروتنه کوله- تر ټولو مهم د پانګوالي د بحرانونو په تجزیه او تحلیل کې. د طبعي چاپېریال له منځته تلو ته- چې نن ورځ یې د ناوړو پایلو شاهد یو- کافي پاملرنه نه درلوده، بیا هم...

- بیا هم؟

- مارکسیزم د لوی بدلون سبب شو. شک نشته چې سوسیالیزم توانېدلی چې تر ډېره حده له غیرانساني ټولنې سره مبارزه وکړي. په هر صورت، موږ په اوسني اروپا کې، د مارکس د زمانې په پرتله، په عادله او یولاسې ټولنه کې ژوند کوو. دا تر یوې اندازې د مارکس او سوسیالیزم غورځنګ له امله دي.

- بیا څه وشول؟

- وروسته تر مارکسه، د سوسیالیزم غورځنګ په دوو برخو ووېشل شو، سوسیال دېموکراسي او لنینیزم. لویدېځې اروپا سوسیال دموکراسي خوښه کړه چې د سوسیالیزم په لور تدریجي او مسالمته لاره ده. دې ته تدریجي

انقلاب هم ويلی شو. له بلې خوا لنينيزم، چې باور درلود انقلاب ل پخواني طبقاتي ټولنې سره د مبارزې يوازېنی لاره ده،په ختيځې اروپا، اسيا او افريقا کې يې ډېر نفوذ وموند. دا دواړه غورځنګونه، هر يو په خپلې کړنلارې سره، د ظلم او سختۍ پر وړاندې وجنګېدل.

- مګر په خپله د يوه نوي ظلم سبب نه شول؟ مثلاً په روسيه او لويديځې اروپا کې؟

- په دې کې شک نشته، او دلته يو ځل بيا وينو چې انسان که په هر ځای لاس پورې کړي نو د نېک او بد امتزاج په کې وي. له بلې خوا دا معقول نه ده چې مارکس يې، پنځوس يا سل کاله تر مرګ وروسته، په اصطلاح د سوسياليستو هېوادو د منفي عواملو لپاره ملامت کړل شي. مارکس د کمونيستي ټولنې اداره کوونکو ته سم فکر ونه کړ او ښايي چې د هغه د خوښې هېواد هېڅکله منځته رانه شي. بشر-تل نوې سختۍ زېږوي چې پر سر يې وجنګېږي.

- بالکل سمه ده.

- سوفي، او دلته پر مارکس پرده راښکوو.

- څه؟ يوه شېبه صبر. مګر تاسو ويل چې عدالت يوازې د برابرو کسانو تر منځ پيدا کېږي؟

- نه، دا خبره اسکروج کړې.

- تاسو څنګه پوهېږئ چې هغه څه ويلي؟

- ښه نو- زه او ته يو موظف لرو- په اصل کې زه او ته تر هغه څه چې ظاهر مو ښايي، ډېر يو بل پورې تړلي يو.

- لعنتي طنز بيا شروع شو!

- او مضاعف طنز سوفي، دا دوه طنزه دي.

- بېرته به د عدالت موضوع ته را وګرځو. تاسو ويل د مارکس په باور پانګوالي يو ډول ناعادلانه ټولنه وه. د عادلانه ټولنې تعريف څه دی؟

اخلاقي فیلسوف جان رالز هڅه وکړه، په دې هکله څه ووايي او لاندې مثال راوړي: فرض کړه لکه ته چې د شورا مهمه غړې يې او دنده لرې چې د ټولنې ټول قوانين وليکې.
- زه کومه ستونزه نه لرم چې د داسې شورا غړې شم.
- د دې شورا غړي ناچاره دي چې په ټولو جزيياتو کې له استثنا پرته بحث او د نظر تبادل ولري. او همدا چې هوکړې ته ورسېدل-او هر يوه يې قوانين لاسليک کړل- فرض کړه ټول مړه شول.
- آه!!
- خو بې له ځنډه په کومه ټولنه کې چې قوانين يې دوی په خپله جوړ کړي وي، بېرته را ژوندي کېږي. مسئله دا ده چې دوی نه پوهېږي په دې ټولنه کې به څه موقعيت ولري.
- صحيح.
- دا ډول ټولنه عادلانه ده. ځکه د برابرو له منځه راپورته شوې.
- برابر ښځې او سړي.
- معلومه ده. دوی هېڅ نه پوهېدل چې په بل ژوند کې به ښځه وي که سړی او دا چې د پنځوسو، پنځوسو احتمال دی، د ښځې او سړي پيدايښت په دې ټولنه کې يو شان دی.
- خومره عالي.
- ايا اوسمهال داسې کومه ټولنه پېژنې؟
- همم، ښه پوښتنه ده.
- په دې هکله فکر وکړه. اوس نو د مارکس په اړه ويلو ته نور څه نه لرم.
- وبښۍ؟
- بل ځېرکی.

# ډاروين

**... د ژوند لپاره د جنينو لېږدوونکې کېښتې...**

د يکشنبې پر سهار لوړ غږ هيلده لـه خوبـه ويښـه کـړه. د ليکنو بسته پر خمکـه ولوېـده. هيلـدې د مـارکس پـه هکلـه د آلبرتـو او سـوفي خـبرې لوسـتې، چـې خـوب وړې وه. د تخـت تـر څنـگ د مطـالعې څـراغ تـر سهاره روښانه پاتې و. د ميزي ساعت ستنو ۸:۵۹ بجې ښودې.

د لويـو فـابريکو او ککـړو ښـارونو خـوب يـې ليـدلی و. کـوچنی نجلـی د سـړک پـر غـاړه اورلگيـت خرخـول او شـتمن خلـک يـې لـه شـيکو کـاليو سره بې باکه تر مخ تېرېدل.

هيلده د خوب پر کـټ کې کېناسته او هغـه قانونونـه وريـاد شـول چـې بايد په تولنه کې سر پورتـه کـړي. پـه هـر حـال، هيلـده خوشـاله وه چـې پـه برکلي کې بې سترگې پرانيستې.

کـه اوس نـه پوهېـدی چـې چېـرې ده، جرئـت بـه يـې کـړی و چـې سـترگې خلاصې کړي؟؟

خـو موضـوع يـوازې د ويښېدو د ځـای نـه وه. پـه اسـانۍ سره يـې کـولی شـوای چې پـه بلـه زمانـه کـې هـم ويښـه شي. مـثلاً، پـه منځنيـو پېړيـو کـې- د تيرې په زمانه کې- لس شل زره کاله پخوا؟

هيلـدې کوښښ وکـړ ځـان پـه خپـل ذهـن کـې مسـجم کـړي، چـې د يـوه سوري په خوله کې ناسته ده او د کوم ځناور پوستکی تراشي...

ايـا مخکـې تـر دې چـې د فرهنـگ پـه نـوم څـه راپيـدا شي، پـنځلس کلنـو نجونـو څنگـه وضـعيت درلـود؟ څـه فکـر يـې کـاوه؟ ايـا کـوم څـه يـې فکـر نـه رسېدل؟

هيلـدې گنجـی واغوسـت او د ليکنـو بسـته يـې لـه ځمکـې را پورتـه کـړه، پر کټ يې خپل ځای جوړ کړ او د نوي څپرکي لوستل يې پيل کړل.

آلبرتو همدا چې وویل، (راتلونکې څپرکی)، د ځونګړې دروازه وټکېده.
سوفي وویل: بله چاره نه لرو، کنه؟
- بې له شکه چې نه.

یو ډېر سپین ږیری سړی چې اوږده وېښتان او اوږده سپینه ږیره یې وه، بهر پر زینه ولاړ و. په یوه لاس کې یې امسا او په بل کې یې تخته وه. پر تخته د کیښتی انځور ایستل شوی و. کیښتی له ډول ډول ځناورو ډکه وه.
آلبرتو وپوښتل: دا سړی به څوک وي؟
- زما نوم نوح دی.
- ما همداسې ګومان کاوه.
- زه ستا مشر - نیکه یم زویه. پوهېږم، په دې ورځو کې معمول نه دي چې څوک خپل نیکه وپېژني.
سوفي پوښتنه وکړه: دا په لاس کې مو څه دي؟
- دا د هغو ټولو حیواناتو انځور دی چې له توپانه وژغورل شول. واخله لورې، دا مې تاته راوړی.
سوفي لوی انځور واخیست.
سپین ږیري وویل: ښه، زه به نور کور ته ولاړ شم او تاکونو ته به مې اوبه ورکړم. توپ یې کړل او پوندې یې په یو بل ووهلې. لکه د ځینو ډېرو زړو غوندې، خوشاله او خندانه په ځنګله کې ورک شو.
سوفي او آلبرتو بیا ځونګړې ته دننه شول. سوفي انځور ته وکتل، خو مخکې تر دې چې د څارنې فرصت پیدا کړي، آلبرتو کلکه له لاسه ونیوله.
- ته باید لومړی اصلي مطالبو ته پام وکړې.
- ډېر ښه، ډېر ښه.
- رښتیا، هېر مې شول چې ووایم، مارکس د خپل ژوند وروستي څلوردېرش کلونه په لندن کې تېر کړل. په ۱۸۴۹ز کې هلته ولاړ او په ۱۸۸۳ز کې مړ شو. چارلز ډاروین هم په دې موده کې په لندن کې و. دی

په ۱۸۸۳ز کې مړ شو او په ډېر درناوي د انګلستان له نامتو کسانو سره په وسټ مينسټرابي کې خښ شو. په دې توګه د مارکس او داروين تګ پر ځای شو- نه يوازې په زمان او په مکان کې. مارکس غوښتل خپل تر ټولو لوی اثر، پانګونه، انګليسي- چاپ داروين ته ډالی کړي. خو داروين دا وياړ ونه مانه. مارکس يو کال وروسته تر داروينه مړ شو او ملګري يې فريډريش انګلس ووېل: داروين د آلي تکامل نظريه کشف کړه او مارکس د بشر تاريخي تکامل نظريه.

- صحيح.

- يوه بل لوی مفکر چې وروسته يې خپل کار په داروين پورې وتاړه، ارواپوه زيګموند فرويډ و. هغه هم د خپل ژوند وروستي کلونه په لندن کې تېر کړل. فرويډ ووېل، د داروين د تکامل نظريه او د ده خپل روحي تحليل د انسان بې مکره خوادخواهي رسوا کړه.

- دا يو په بل پسې نومونه. موږ د مارکس په اړه غږېږو يا د داروين، يا د فرويډ؟

- په پراخه مفهوم ويلی شو چې د نولسمې نيمايي پېړۍ له طبيعت پالنې څخه نيولې، نږدې زموږ تر خپل دوران په اړوندو کسانو باندې خبرې کوو. له طبيعت پالنې څخه مطلب د هستی هغه برداشت دی چې پرته له طبيعت او حسي- نړۍ نه بل واقعيت نه پېژني. طبيعت پال له همدې امله انسان هم د طبيعت يوه برخه شمېري. طبيعت پال يوه يوازې او يوازې پر طبعي پديدو تکيه کوي او له عقلي فرضيو يا بل هر ډول الهي وحيو سره کار نه لري.

- او دا مارکس، داروين او فرويډ پورې اړه لري؟

- سل په سلو کې. له نولسمې نيمايي پېړۍ څخه را پر دې خوا ډېر کارول شوي کلمات؛ طبيعت، د ژوند چاپېريال، تاريخ، تکامل او وده وو. مارکس ويل، د انسان ټول مسلکي اعتقادونه د ټولنې د بنسټ زېږنده دي. داروين وښوده چې بشر- د تدريجي ژوندانه د تکامل پايله ده او د

ناخوداګاه ضمیر په اړه د فروید مطالعې ثابته کړه چې د انسان کړنې تر ډېره د امیال یا حیواني غرایزو له وجې دي.

فکر کوم د طبیعت پالنې په هکله مو پر مقصد پوهېږم، مګر ښه به نه وي چې په یوه وخت کې د څو کسانو په اړه خبرې ونه کړئ؟

د ډاروین په هکله به وغږېږو سوفي. شاید په یاد دې وي چې له سقراطه مخکې پوهان د طبیعت د چارو لپاره په طبیعي علت پسې ګرځېدل. څنګه چې دوی د پخواني اساطیري توضیحاتو څخه وتښتول، ډاروین هم ناچاره شو چې د انسان او حیوان د پیدایښت په هکله د کلیسا له برداشت څخه واټن ونیسي.

- ډاروین خو په رښتیا فیلسوف نه و؟

- ډاروین ژوندپوه او طبیعت پوه و. دی هغه کس و چې په نوي دوران کې یې تر هر چا د مخه د انسان د پیدایښت په اړه د سپېڅلي کتاب نظریه په ښکاره تر شک لاندې ونیوه.

- نو ناچاره یاست چې د ډاروین د تکامل نظریه هم تشریح کړی.

- لومړی یې له ډاروین پیلوو. دی په ١٨٠٩ز کې د شروزبري په کوچني ښار کې وزېږېد. پلار یې ډاکټر رابرټ ډاروین د خپل ښار مشهور ډاکټر و او د زوی په روزنه کې ډېر سختګیر و. د ښوونځي مدیر به چارلز هرجایي باله، چې تل په کوچنیو څیزونو لوبې کوي او هېڅکله یې ګټور کار نه دی کړی.

د مدیر مطلب له ګټور کار د یوناني او لاتیني افعالو سر په سر کول و او له بې ځایه ګرځېدو یې مطلب دا و، چې چارلز به تل هاخوا او دېخوا ګرځېده او هر ډول کوچني حشرې چې به یې پیدا کولې نو راټولولې یې.

- د ښوونځي مدیر حتماً وروسته په خپلو خبرو پښېمانه شوی.

- څو کاله وروسته چې چارلز دیني زده کړې کولې، د مرغانو له ننداري او د حشراتو له راټولولو سره یې لېوالتیا زیاته شوه. په الهیاتو کې یې ښې نومرې وا نه خیستې. خو ان کله چې زده کړیال و، په طبیعي علومو کې یې

شهرت پیدا کړ او وجه یې دا وه، چې ده له څمکپوهنې سره مینه درلوده، او شاید دا تر ټولو پراخه علم و.

چارلز چې د ۱۸۳۱ز په اپریل کې خپلې دیني زده کړې په کمبریج کې پای ته ورسولې، نو ډېر ژر شمالي ویلز ته ولاړ او هلته یې د تیږو جوړښت او وړو شګو مطالعه پیل کړه. د هماغه کال په اګست کې چې نوې دوه ویشت کلن شوی و، یو لیک ورته راغی او د ده د ټول ژوند لوری یې مشخص کړ.

- نو په هغه لیک کې څه وو؟

- دا لیک د ده د ملګري او ښوونکي **جان استفن هنزلو** و. لیکلي یې وو: له ما غوښتل شوي چې له فیتزروي سره د همکارۍ لپاره یو طبیعپوه ورانديز کړم، چې ورسره لاړ شي. هغه ته ماموریت ورکړل شوی چې د سهیلي امریکا سهیلي برخې اندازه او په نقشه کې راولي. ما دوی ته ویلي، د هغو کسانو تر منځ چې د دې دندې لپاره مناسب دي، ته په کې تر ټولو غوره یې. د دې کار د مالي اړخ په هکله زه معلومات نه لرم، خو دا دريابي سفر به دوه کاله وخت ونیسي.

- دا ټول دې څنګه له یاده دي؟

- دومره سخت کار نه دی سوفي.

- او داروین څه ځواب ورکړ؟

- ده غوښتل په لیوالیتا سره له فرصته ګټه واخلي. خو د هغې زمانې ځوانانو هېڅ کار بې د کورنۍ له رضایته نه کوو. وروسته له ډېرو چانه وهلو یې پلار راضي کړ- خکه پلار یې د خپل زوی د سفر ټول لګښت پر غاړه لره. په حقیقت کې دې کار هېڅ مالي اړخ نه درلود.

- عجیبه ده.

- د دوی کیښتۍ بیګل نومېده چې د انګستان په دریایي ځواکونو پورې یې اړه درلوده. د ۱۸۳۱ کال دسمبر په ۲۷ یې له پلیموث بندر څخه د سهیلي امریکا په لور حرکت وکړ او د ۱۸۳۶ کال د اکتوبر تر میاشتې بېرته

راونه ګرځېد. دوه کاله، پنځه کاله شول او د سهيلي امريکا سفر، د ټولې نړۍ سفر شو. او دا د نوي دوران له مهمو اکتشافي سفرونو څخه يو و.
- په ټوله دنيا کې وګرځېدل؟
- هو. له سهيلي امريکا څخه د ارامه اقيانوس پر لور ولاړل بيا د استراليا نوي زيلاند او سهيلي افريقا ته. له هغه ځايه بېرته سهيلي امريکا ته روان شول او په پای کې انګستان ته راوګرځېدل. ډاروين وليکل، بې له شکه چې په بېګل کې سفر د هغه د ژوند تر ټولو مهمه پېښه وه.
- مګر د اوبو پر سر د طبيعيپوه کار اسانه نه دی.
- په لومړيو کلنو کې بېګل د سهيلي امريکا په اوبو کې ښکته پورته تله. همدې ډاروين ته مجال ورکړ چې ځان له ټولې قارې سره- د وچو ټکو له دننه سره، بلد کړي. د سهيلي امريکا لويديځ او ارامه اقيانوس په ګالاپاګوس جزايرو کې د هيئتونو پرله پسې سفرونو هم ډېر ارزښت درلود. ډاروين وتوانېد چې په دې جزايرو کې ډېر مواد لاسته راوړي او انګلستان ته يې ولېږي. په هر حال، د طبيعت او د ژوند د تکامل په هکله يې خپل تفکرات له ځانه سره وساتل. کله چې په اووه ويشت کلنۍ کې بېرته هېواد ته راغی، علمي شهرت يې په ټولو ځايونو کې خپور و. په دې وخت کې له هغه څه نه، چې وروسته د ده د تکامل نظريه شوه، روښانه تصوير په خپل ذهن کې درلود. خو خپل عمده اثر يې له راتګ څخه څو کاله وروسته هم خپور نه کړ، ځکه ډاروين- لکه څنګه چې هر پوه وي- ډېر محتاطه سړی و.
- د ده عمده اثر څه و؟
- په اصل کې څو آثاره وو. خو هغه کتاب چې په انګلستان کې تر ټولو ډېر د ژبو پر سر و، د ډولونو سرچينه (منشا انواع) نومېد، چې په ۱۸۵۹ کې خپور شو. د کتاب بشپړ عنوان دا و: (د طبعي انتخاب له لارې د منشا ډولونه، يا د ژوند په کشمکش کې د اصلح نژادونو ساتنه) دا اوږد عنوان په اصل کې د ډاروين د تيوری بشپړ لنډيز دی.

- په رښتیا چې لوی مطلب په یوه عنوان کې ځای شوی.
- خو موږ به دا عنوان برخه برخه وڅېړو. داروین د ژوندونو په منشا کې دوې عمده نظریې څرګندوي: لومړی: ننني ټول نباتاتو او حیواناتو په پخواني او لومړني بڼه تکامل کړی. دویم: تکامل د طبعي انتخاب پایله ده.
- د هغوی بقا چې ډېره توانمنه ده؟
- سمه ده، خو اجازه راکړه چې اول خپل حواس د تکامل نظریې ته را واړوو. دا، په خپله، دومره بکره فکر نه و. د ژوندانه تکامل نظریه لږ لږ له ۱۸۰۰ را پر دېخوا په محفلونو کې منل شوې وه. د دې نظریې مخکښ ویاند فرانسوی څناورپېژندونکی لامارک و. ان مخکې تر ده، د داروین نیکه، ایرزموس داروین ویلي وو چې نبات او حیوان له څو کورنیو تکامل مونډلی دی. خو دا دلیلونه یو هم د منلو وړ نه وو، چې دا تکامل څنګه ترسره شوی. له همدې امله کلیسایانو هغه دومره لوی خطر ونه شمېره.
- مګر داروین یې ولې شمېره؟
- هو، بالکل، خو بې علته نه و. د نبات او حیوان د نه بدلون په اړه د تورات او انجیل زده کړې هم د کلیسایي محافلو او هم د علمي محافلو د منلو وړ وې. د حیواني حیات هره بڼه - د سپېڅلي کتاب پر بنسټ- په جلا او یوځلي توګه د تل لپاره پیدا شوې. دا مسیحي لید همدارنګه د افلاطون او ارسطو له ښوونو سره هم ورته والی لري.
- څنګه؟
- د افلاطون د مثل نظریه پر دې وه، چې د حیواناتو ژوندونه، بدلون نه منونکي دي، ځکه د مثالونو بېلګې یا تلپاتې صورتونو یې همداسې جوړ شوي. د څناورو د ژوندونو نه بدلون د ارسطو د فلسفې یو رکن هم و. خو د داروین په زمانه کې نوې څېړنې او لاسته راوړنې ددې سبب شوې چې دا دودیز عقاید تر بیا کتنې لاندې ونیول شي.
- نوې څېړنې او لاسته راوړنې څه وې؟

-د بېلګې په توګه له ژورو ډبرې شګې را وباسو. همدارنګه د له منځه تللو ځناورو د لويو هډوکو پاتې شوني (فوسيل) لاسته راغلل. په خپله داروين هم په وچه کې د اوبو د ځناورو پاتې شوني وموندل او سخت حيران و. د سهيلي امريکا د آند په غرونو کې دې ته ورته کشفيات وشول. نو د اوبو ځناور د اند غرونو پر سر څه کوي، سوفي، کولی شې راته ووايې؟

-نه.

-ځينو باور درلود چې دوی به نورو انسانانو او حيوانانو هلته اچولي وي. ځينو نورو بيا ويل چې خدای دا پاتې شوني او د اوبو د ځناورو هډوکي پيدا کړي، چې کافران پرې ګمراه کړي.

-د پوهانو نظر څه و؟

-ډېری پوهان د (سانحې د نظريې) پلويان وو. د دې نظريې پر بنسټ ځمکه د توپانونو، زلزلې او نورو پېښو شاهده وه او دا ټول ژوند له منځته وړي. له دې يو داستان- توپان او د نوح کيښتي- په تورات کې لولو. وروسته تر هرې پېښې، خدای بېرته ژوند له سره پيل کړ او نوي بوټي او ځناور يې- نابشپړ- پيدا کړل.

-نو فوسيلونه د ژوندانه د لومړنی بڼې پاتې شوني دي چې د لويو پېښو په پايله کې له منځته تللي.

-بالکل. د بېلګې په توګه دوی ګومان کاوه، دا فوسيلونه د هغو ځناورو اثار دي چې نه وو توانېدلي د نوح په کيښتي کې سپاره شي. خو داروين په بيګل کې د سفر پر مهال د انګليسي- ځمکپوه، سرچارلز لايل، کتاب د ځمکپوهنې *اصول* لومړی ټوک له ځانه سره لرو. لايل ويل د ځمکې وضعيت او د هغې د غرونو او لمنو ننني بڼه پېژندنه، د ډېر اوږده مهاله او تدريجي تکامل پايله ده. د هغه مقصد دا و، چې ان کوچني تغيرات هم، چې د وخت په تېرېدو سره رامنځته شوي، کولی شي د ځمکپوهنې د لويو بدلونونو لامل شي.

-مقصد يې کوم بدلونونه وو؟

- مقصد یې هغه بدلونونه وو، چې اوسمهال هم پېښېږي: باد، هوا، د یخونو اوبه کېدل، زلزله او د ځمکې د نوې برخې راپورته کېدل. د اوبو او تېږو بیلګه به دې ضرور اورېدلې وي، اوبه په خپل خواک نه، بلکې په پرله پسې توګه پر تیږو څاڅي او هغه سولوي. لایل پر دې باور و، چې ډېر واړه او ورته تدریجي بدلونونه د وخت په تېرېدو سره د طبیعت څېره بالکل بدلوي. خو دا نظریه بیا هم نه وایي چې په اند غرونو کې د دریابي ځناورو پاتې شونو څه کول. په هر حال، ډاروین ذهن ته دا خبره وسپارله چې کوچني پرله پسې تغیرات، په اوږد مهال کې، کولی شي د پام وړ بدلونونه رامنځته کړي.
- ضرور فکر به یې کاوه، چې همدا توضیح د ځناورو د تکامل په اړه هم وکاروي؟
- هو، همداسې یې فکر کاوه. خو لکه څنګه چې مو وویل، ډاروین محتاطه کس و. مخکې تر دې چې ځان ته د ځواب ویلو جرات ورکړي، ډېرې پلټنې او پوښتنې به یې کولې. له همدې امله د واقعي فلسفې د چلند پلوي و: مهمه ده چې پوښتنه وکړو او په ځواب ویلو کې بېړه ونه کړو.
- هو، سمه ده.
- د لایل په نظریه کې تاکونکی لامل د ځمکې لرغونتوب و. د ډاروین په زمانه کې ډېر خلک پر دې باور وو، خدای چې ځمکه پیدا کړې، کابو شپږ زره کاله تېر شوي.
- څومره ساده.
- هو، معما چې حل شي نو اسانه شي. ډاروین داسې تصور کاوه، چې د ځمکې عمر درې سوه میلیونه کاله دی. څکه تر ډېره د منلو وړه وه. د لایل د ځمکپېژندنې د تدریجي تکامل نظریه، همدارنګه په خپله د ډاروین د تکامل نظریه، هغه وخت اعتبار پیدا کوي چې د زمانې په بې اندازه اوږده دوران باندې اعتماد ولرو.
- د ځمکې عمر څومره دی؟

- په اوسنيو وختونو کې پوهېږو چې څمکه ۶/۴ ميلیارده کاله عمر لري.

- واى!!

- تر دې ځايه مو د زيستي تکامل په هکله د ډاروين پر استدلال باندې نظر واچاوه، اوس د ډېرې په بېله برخه کې د شګو د رسوب طبقه بندي څېړو. بل استدلال د ژوندیو ژويو جغرافيايي وېشنه ده. له دې ځايه د ډاروين علمي دريايي سفر نوي او بې اندازې جامع اطلاعات وړاندې کړل. ډاروين په خپلو سترګو ليدلي وو، چې په واحده سيمه کې د ځناور غړي کولی شي په ډېرو کوچنيو جزيياتو کې له يو بل سره توپير ولري. ډاروين په دې برخه کې، د ګالاپاګوس په جزيرو کې - د اکوادور لويديځ کې - ډېرې جالبې مطالعې وکړې.

- لږ څه په دې هکله راته ووايه.

- د ګالاپاګوس جزيرې د اورغورځونکو جزيرو له ډلې دي. له همدې امله د هغه ځای د نباتاتو او حيواناتو په ژوند کې هومره توپير نه ليدل کېږي. خو ډاروين په ډېرو کوچنيو توپيرونو پسې و، ده په دې جزيرو کې لوی کيشپونه وليدل چې جزيره په جزيره يې له يو بل سره توپير درلود. خدای په هرې جزيره کې خاص ډول کيشپ پيدا کړی؟

- کېدای شي.

- د ډاروين کتنې د ګالاپاګوس د مرغانو په هکله تر دې هم جالبې وې. د ګالاپاګوس مرغانو جزيره په جزيره له يوه بله ښکاره توپير درلود. په تېره بيا د مښوکو په بڼه کې. ډاروين وښوده چې د مښوکو دا توپيرونه تر ډېره په مختلفو جزيرو کې د مرغانو له خواړو پيدا کولو سره نږدې اړيکه لري. څمکنې مرغان له خپلو عمودي مښوکو سره د کاج دانې خوري، کوچنې سندرې ويوونکي مرغان حشرې خوري او د ونو مرغان بيا هغه مېږي او وينه خوري چې د ونو په تنو کې پيدا کېږي. د دغو هر يوه مرغه مښوکې د تغذيې له ډول سره مناسبې وې. دا مرغان له يوې کورنۍ وو؟ خو د

پېړيو په اوږدو کې يې په بېلابېلو جزيرو کې ځانونه له چاپېرپال سره بدل کړي او په دې توګه د مرغانو نويو ډولونو تکامل موندلی وو؟

- داروين همدې پايلې ته ورسېد، کنه؟

- هو، ښايي همدا وو، چې داروين د ګالاپاګوس په جزيرو کې (داروينسټ) شو. همدارنګه ده وليدل، چې د هغه ځای ډېر ځناورد سهيلي امريکا له ځناورو سره نږدې ورته والی لري. خدای دا ټول ځنارر په لږ توپير سره پيدا کړي؟ يا دا چې کوم تکامل منځته راغلی؟

داروين شک درلود چې ټول ځناور بدلون نه منونکي دي، خو تر اوسه يې د دې خبرې د توضيح لپاره چې څنګه دا تحول پېښ شوی، له ځان سره مؤجه څه نه درلودل. خو يو بل لامل هم موجود و چې ښودل يې، د نړۍ ټول ځناور احياناً له يو بل سره خپلوان دي.

- او هغه لامل څه و؟

- په تي لرونکو کې د جنين وده. که د سپي، اسمان ځکالي، سوبې او انسان جنين په ابتدايي مراحلو کې سره پرتله شي نو دومره يو بل ته ورته دي چې تر منځ يې توپير ګران دی. د انسان اوسوبې جنين تر وروستی مرحلې هم نه شو توپيرولی. دا د دې دليل نه دی چې موږ د يو بل ډېر لرې خپلوان يو؟

- خو لا تر اوسه يې هم داسې توضيح نه درلوده چې وښايي دا تکامل څنګه پېښ شوی؟

- داروين تل د لايل په نظريې فکر کوو. لايل ويلي وو، د زمان ډېر کوچني بدلونونه کولی شي- په اوږده مهال کې- لوی اغېز رامنځته کړي. خو داسې توضيح يې ونه مونده چې هغه د يوه کلي اصل په توګه وټاکي.

له فرانسوي ځناورپېژندونکي **لامارک** سره يې اشنايي درلوده چې وېل يې، بېلابېلو ځناورو خپل اړين خصلتونه په خپله روزلي دي. د بېلګې په توګه زرافو اوږده ورمېږونه څکه پيدا کړل چې نسل په نسل يې د ونو په پاڼو پسې ورمېږونه پورته کول. لامارک باور درلود هغه خصلتونه چې فرد

يې په خپلو هلوځلو لاسته راوړي، نورو نسلونو ته هم لېږدول کېږي؛ خو ډاروين د اکتسابي خصلتونو د موروثي والي نظريه ونه منله. ځکه لامارک خپلې دې ادعا ته کوم برهان وړاندې نه کړ. په هر حال، ډاروين په يوې بلې نظريې، ډېره روښانه فکري کرښه، پسې ولاړ. شايد ويلى شو، چې د واقعي تکامل د ډولونو مکانيزم يې عيناً د سترګو پر وړاندې و.

- چې هغه څه و؟

- زړه مې غواړي چې دا مکانيزم ته په خپله پيدا کړې، له همدې امله پوښتم، که ته دوې غواووې ولرې او يوازې د يوې غوا د ژوندي ساتلو لپاره وابښه درسره وي، نو څه کوې؟

- شايد يوه به مې وژلې وه.

- ښه... کومه يوه دې وژله؟

- ګومان کوم هماغه چې لږ شيدې يې ورکولې.

- ښه؟

- هو، دا منطقي ده، کنه؟

- دا هغه کار دى چې انسانان يې زرګونه کاله کوي. خو زموږ کار ستا له دوو غواوو سره تر اوسه نه دى ختم شوى. داسې وانګېره لکه غواړې چې يوه يې ميندواره شي. کومه يوه دې انتخابوله؟

- هغه چې ډېرې شيدې کوي. ځکه خوسى يې هم له ډېرو شيدو برخمنېږي.

- نو ته هغه غوا ته لومړيتوب ورکوې چې ډېرې شيدې کوي. يوه بله پوښتنه. که ته ښکاري واى او دوه سپي دې لرلاى خو ناچاره شوى واى چې يوازې يو دې ساتلى واى، نو کوم يو به دې ساتلى و؟

- ښکاره خبره ده، هغه چې ښکار ښه پيدا کوي.

- بالکل. طبعي ده چې غوره ښکاري سپى دې تاکلو. سوفي، لس زره کاله پخوا هم خلکو خپل اهلي ځاروي همداسې روزلي دي. چرګانو تل په اونۍ کې پنځه ځله هګۍ نه اچوې، پسونو هر وخت په يوه اندازه وړۍ

نـه ورکـوي او اسـونه تـل د اوس پـه شـان چابـک او ځـواکمن نـه وو. روزونکـو مصنوعي انتخـاب کـړی دی. دا د نباتـاتو پـه عـالم کـې هـم صـدق کـوي. ک له تا سره د ښو کچالیو تخـم وي نو تـه بـه بـد تخـم ونـه کـرې. د بې دانو غنمو پر وړي تولولو خپل وخت بې ځایه نه تېروې.
داروین ویـل، چـې دوې غـواووې، دوه سـپي یـا دوه مرغـان کـټ مـټ سره ورتـه نـه شـو پیـدا کـولی. طبیعـت د ژوندانـه بـې شـمېره او بېلابېـل ډولونـه رامنځتـه کـوي، دوه کسـه چـې پـه یـوه چاپېریـال کـې اوسـېږي هـم بالکـل سره یو شـان نـه دي. شاید کله چې تـا هغـه آبي رنګـه مـایع وڅښـه دا دې پـه خپلو سترګو کې وي.
- هو.
- ښـه، اوس داروین لـه ځانـه وپوښـتل: آیـا کېـدای شي چـې پـه طبیعـت کـې هـم یـو شـان مکانیزمونـه کارېـدلی وي؟ آیـا امکـان یـې شـته چـې طبیعـت هـم (طبیعـي انتخـاب) وکـړي چـې کـوم کسـان دې ژونـدي پـاتې شي؟ او ایـا ممکنـه نـه ده چـې دې انتخـاب پـه ډېـر اوږده مهـال کـې د حیوانـاتو او نباتـاتو نوي ډولونه رامنځته کړي وي؟
- زما په ګومان چې ځواب به مثبت وي.
- داروین تـر اوسـه سـم تصـور نـه شـوای کـولی، چـې دا طبیعـي انتخـاب څنګـه پېښـېږي. تـر دې چـې د ۱۸۳۸ز کـال پـه اکتـوبر کـې- دقیقـاً دوه کالـه پـه سـندونو کـې لـه سـفر څخـه تـر راګرځېـدو وروسـته- تصـادفاً د جمعیـت د ځېړنـو کـارپوه، توماس مـالتوس لـه کـوچني کتـاب سره مـخ شـو. د کتـاب عنـوان (د جمعیـت د اصـل پـه هکلـه رسـاله) و. مـالتوس د دې رسـالې فکـر لـه امریکـایي بنجـامین فـرانکلین اخیسـتی و، چـې یـوه اخـتراع یـې د روښـنایي کاندونسر- و. فـرانکلین یادونـه کـړې وه، چـې کـه پـه طبیعـت کـې راګرځـونکي عوامـل نـه وي، نـو پـه ټولـه نـړۍ کـې بـه یـوازې یـو ډول نبـات یـا حیـوان وده موندلې وای، خو دا چې ډولونه مختلف دي نو دا د یو بل تعادل ساتي.
- پوهېږم.

. مالتوس دا نظریه وپالله او هغه یې د نړۍ خلکو ته وړاندې کړه. دی باوري و، چې د بشر-څواک د خپل مثل د تولید لپاره دومره ډېر دی، چې ټل د نوو زېږېدونکو شمېر لوړ وي. څکه چې دوی باید ژوندي پاتې شي. خو له دې سره جوخت کله چې انسانان ډېرېږي، دا په دې مانا نه ده، چې خواړه دې هم همداسې ډېر شي. مالتوس په دې نظر و چې د ژوندانه په کشمکش کې ډېر شمېر خلک پر فنا محکوم دي. هغوی چې ژوندي پاتې کېږي او لویېږي-او توکم ته دوام ورکوي- هغه کسان دي چې د بقا له جګړې بريالي راوځي.
-دا خو ما ته په نظر منطقي راځي.
-او دا هماغه ټولیز میکانیزم و، چې داروین ورپسې ګرځېده. دا توضیح د تکامل د پېښېدو څرنګوالي وه. د ژوندانه په کشمکش کې هغوی چې د نورو په پرتله ځان له چاپېريال سره ښه برابر کړي، ژوندي پاتې کېږي او توکم ته دوام ورکوي، چې دا د طبعي انتخاب اغېز دی او دا د منشا په ډولونو کې دويمه وړاندې شوې نظريه وه.
داروین ولیکل: (فیل د نورو څناورو په پرتله تر ټولو لږ د مثل تولید لري). خو که شپږ بچي وزېږوي او سل کاله عمر وکړي، وروسته له ۷۴۰ څخه تر ۷۵۰ کلونو پورې نږدې نولس میلیونه فیلونه-ټول له هماغې لومړۍ جوړې فیلونو څخه-پاتې کېږي.
- او یو سپين کب زرګونه هګۍ اچوي.
- داروين دا هم وويل، چې د بقا لپاره جګړه تر ډېره د ورته ډولونو تر منځ بې اندازې شديده ده، څکه دوی باید د یوازینیو خوړو لپاره وجنګېږي. دلته تر ټولو کوچنی امتیاز-یعنې ډېر واړه توپیرونه-حقیقتاً شمېرل کېږي. هر څومره چې د بقا لپاره جګړه شدیده وي، د نويو ډولونو تکامل ژر پېښېږي. په پایله کې هغوی چې په ښه توګه ځانونه تطبیق کړي ژوندي پاتې کېږي او پاتې نور له منځه ځي.
-هر څومره چې خواړه لږ او زېږول ډېر وي، تکامل ژر ترسره کېږي؟

- هو. خو مطلب یوازې خواړه نه دي. د نورو خوراک نه کېدل هم په همدې کچه حیاتي ارزښت لري. د بېلګې په توګه، ځان بدلول، د چټکې منډې توان، د خپل دښمن ځناور پېژندل یا که په سخته کې لوېږو نو وژونکی خوند لرل، کولی شي د ژوند او مرګ موضوع وي. هغه زهر چې ښکاري ځناور ووژني، ډېر په درد خوري. د همدې لپاره د کاکټوس بوټي دومره زهري دي، سوفي. څکه کوم بل څه عملاً په بیابانو کې نه شي شنه کېدای، دا بوټي د ګیاه خوارو ځناورو پر وړاندې زیان منونکي دي.

- ډېری کاکتوسونه اغزي هم لري.

- له دې انکار نه دی په کار چې ووایو، د مثل د تولید توان اساسي ارزښت لري. داروین د نباتاتو د تخم خپرول په تفصیل سره مطالعه کړل. ګلونه په ښکلو رنګونو کې ځلېږي او مستوونکی عطر له ځانه خپروي، غواړي هغه حشرات چې د تخم خپرولو وسیله دي، ځانته راوبولي. مرغان زړه رابښکونکې نغمې غږوي خو د خپل هم نوعه پام ځان ته را واړوي. هغه غويي چې ارامه وي او غوا ته علاقه ونه ښايي، نو اصل/نژاد پېژندنې ته په درد نه خوري؛ څکه له دې خصوصیاتو سره یې نسل ژر پرې کېږي. د ژوندانه په برخه کې د غوايي یوازېنۍ ګټه دا ده چې جنسي-بلوغ ته ورسېږي او د نژاد د ساتنې لپاره د مثل تولید ولري. دا هغې لوبې ته ورته ده، چې لوبغاړي یې ښځه او نر دي. هغوی چې ونه شي کړای خپل ژن بل ته ولېږدوي تل له منځه ځي او په دې توګه نژاد بالکل پاکېږي. د ناروغیو پر وړاندې مقاومت هم مهم نعمت دی، چې پاتې نسلونه یې تر لاسه کوي او په ځان کې یې ساتي.

- نو ټول شیان لاپسې ښه کېږي؟

- په پایله کې دا دایمي انتخاب، هغوی چې ځان تر نورو ښه له هر ځانګړي محیط سره برابروي، تر ډېره وخته پورې خپل نژاد ته دوام ورکوي. خو کوم څه چې په یوه چاپېریال کې امتیاز شمېرل کېږي په بل چاپېریال کې هم ضرور نه ده، چې هغه دې غوره وي. د الوتلو توان د

الاپاګوس مرغانو تـه ډېـر حیـاتي دی. خـو کـه داړونکـي ځنـاور پـه مغـه
سیمو کې نه وی او د مرغـانو خـواږه د ځمکـې لـه تلـه تـر لاسـه کېـدای، نـو
نوت به چنـدان ارزښـتناک او د اړتیـا وړ شـی نـه وای. د زمـانو پـه اوږدو کـې
د دومره ډېرو ځنـاورو د ډولونـو د پیدایښـت علـت هـم دقیقـاً د ژوندانـه
پرېښل محیطونه دي.
خو سره له دې، بشر تر یوه نژاده ډېر څه نه دی.
علت به دا دی چې انسـان د ژوندانـه لـه مختلفـو شرایطـو سره د ځـان
برابرولو بې ساري وړتیـا لـري. یـو شي چې ډاروین سـخت حیـران کـړی و،
مغه د ټیرا دل فیګو د سـور پوسـتو ژونـد پـه وحشـتناکه اقلیمـي شرایطـو کـې
ور. خو دا پـه دې مانـا نـه ده چې انسـانان ټـول یـو شـان دي مغـوی چې د
استوا کرښې تـه نـږدې ژونـد کـوي، تـر مغـو چې پـه شـمالي سـیمو کـې
اوسېږي تیـاره پوسـتکي لـري ځکـه تیـاره پوسـتکی د لمـر پـر وړانـدې لـه دوی
ساتنه کـوي. سـپین پوسـتي چې ډېـر وخـت لمـر تـه پـاتې شي نـو د پوسـتکي
پر سرطان اخته کېږي.
او مغـوی تـه چې پـه شـمالي هېوادونـو کـې اوسـېږي سـپین پوسـت ښـه
ښکاري کنه؟
هو. کنـه نـو د ځمکـې د ټولـو اوسـېدونکو د پوسـتکي رنـګ بـه تیـاره و.
سپین پوسـت د لمـر د وړانګـو لـه لارې ویټـامین جوړولـو تـه مناسـب دی او
دا د مغو ځایونو لپـاره چې لږ لمـر لـري ډېـر حیـاتي دی. البتـه نـن ورځ دومـره
مهمه نـه ده ځکـه مـوږ کـولی شـو د لمـر لازم ویټامینونـه پـه خپلـو ورځنیـو
خوړو کې ځـای پـر ځـای کـړو. خـو پـه طبیعـت کـې هېڅ شی پـه خپـل سر او
تصادفي نـه دي. هـر شـی د بـې انـدازه کوچنیـو توپیرونـو حاصـل دي چې د
ځو نسلونو په لړ کې پېښ شوي.
- د دې خبرې تصور په حقیقت کې ډېر حیراوونکی دی.
- بالکل. نو تـر دې ځایـه د ډاروین نظریـه پـه څـو جملـو کـې خلاصـه کـولی
شو.

- مهرباني!

- ويلې شو چې د ځمکې پر مخ د ژوندانه د تکامل خامه ماده د افرادو بدلون په خپل نوع کې، همدارنګه د اولادنو زيات شمېر دی، چې تر ډېره يوه برخه يې ژوندي پاتې کېږي. د تکامل رښتيني مکانيزم يا محرک خواک په دې توګه د بقا لپاره په جګړه کې طبعي انتخاب و. دا انتخاب سبب شو چې تر ټولو ځواکمن موجود ژوندی پاتې شي.

- لکه د رياضي مسله هومره منطقي دی. له منشا دولونو څخه څنګه هرکلی وشو؟

- قوي مشاجرې يې رامنځته کړې. کليسا په ټول توان اعتراض وکړ او علمي نړۍ په دوو برخو موافقه او مخالفه وويشل شوه. په حقيقت کې دا دومره حيرانوونکې نه وه. داروين دا پيدايښت د خدای له توان څخه لرې بالله. البته په دې منځ کې ځينې داسې کسان هم وو، چې ادعا يې کوله، کوم پيدايښت چې په خپله د ذاتي تکامل توانايي ولري نو په دا سره تر هغې هستی چې ثابته او بدلون نه منونکې پيدا شوې وي، ډېر ارزښت لري.

سوفي ناڅاپه له ځايه والوته او چغه يې کړه:

- هغه ځای ته وګوره.

کړکۍ ته يې اشاره وکړه. د وړوکي سيند تر غاړې يوه سړي او ښځې د يو بل لاسونه نيولي وو او قدم يې واهه. دواړه سر تر پښو لوڅ وو.

آلبرتو وويل: دا آدم او حوا دي. ورو ورو يې کار تر دې ځايه رسېدلی چې له سورخولۍ او د عجايبو په هېواد کې له اليس سره يو ځای شوې او سر يې تر دې ځايه را رسېدلی دی.

سوفي کړکۍ ته نږدې ورغله غوښتل يې دقيق ورته وګوري، خو دواړه ناڅاپه د ونو په منځ کې ورک شول.

- داروين ګومان کاوه، چې انسان د حيوان له نسله دی، کنه؟

ډاروین په ۱۸۷۱ز کې **د انسان نسل نظریه** خپره کړه او د انسانانو او حیواناتو لوی ورته والي یې یاد کړل. دا نظریه یې پر مخ یوووړه چې انسان او انسان ډوله بیزو یو وخت له ګډې نیا څخه تکامل موندلی دی. په همدې وخت کې د له منځه تللي انسان د ککرۍ لومړنی فوسیل. لومړی په جبل الطارق او څو کاله وروسته د المان په نیاندرتال کې پیدا شو.
حیران و چې په ۱۸۷۱ز کې د ډاروین پر ضد مخالفت تر ۱۸۵۹ز ډېر کم و، چې **د اصل ډولونه** اثر یې خپور کړ. البته له حیوان څخه د انسان د پیدایښت په اړه په لومړي کتاب کې هم لړ څه راغلي وو. مخکې مو ویل، کله چې ډاروین په ۱۸۸۲ز کې مړ شو نو د علم د مخکښانو لخوا په ډېرو تشریفاتو خاورو ته وسپارل شو.
- نو په پای کې یې عزت او درناوی وموند؟
- په پای کې هو. خو مخکې تر دې چې د انګلستان تر ټولو خطرناک انسان وبلل شي.
- عجیبه ده!
- د اشرافو له طبقې نه یوې مېرمنې ولیکل: (هیله ده چې د ده خبره سمه نه وي، خو که سمه وه، هیله ده چې د خلکو تر غوږونو ونه رسېږي). بل نامتو پوه هم ورته نظریه وړاندې کړه: (شرمناکه کشف دی، هر څومره یې چې په اړه لږ خبرې وشي، هغومره به ښه وي).
- دا په خپله د دې دلیل نه دی چې انسان د خره خپلوان دی؟
- نن ورځ د دې خبرې ویل موږ ته اسانه دي. خلکو ناڅاپه په ناچارۍ سره د سپېڅلي کتاب د پیدایښت د داستان په اخذ کې خپل نظر نوی کړ. خوان لیکوال، جان راسکین ولیکل: (کاشکې څمکپېژندونکو زه خپلې مخې ته پرې ایښې وای. د تورات او انجیل د هرې آیې له اورېدو وروسته زه د دوی د چټک د ضربو غږ اورم).
- او د چټک د ضربو له غږ څخه یې مطلب د خدای د کلام په هکله د ده شک و؟

- کېدای شي. خکه يوازې د پيدايښت د داستان تحت الفظي تعبير او تفسير نه و چې وران شو. د ډاروين د نظريې اساس دا و، چې سل په سلو تصادفي بدلونونو انسان پيدا کړ، تر دې ايسته، ډاروين انسان هغه موجود وښود چې له هرې عاطفې او احساسه فاقد دی او د بقا لپاره د جګړې محصول دی.
- په دې هکله چې دا تصادفي بدلونونه څنګه پېښېږي کوم څه يې وويل؟
- د هغه د تيوري پر ضعف دې لاس کېښود. ډاروين د توارث په هکله چندان په څه نه پوهېده. په پيوند او يووالي کې پېښه کېږي. مور او پلار هېڅکله دوه بالکل همشکله اولادونه نه پيدا کوي. تل کوچني تفاوتونه موجود وي. له بلې خوا سخته ده چې ووايو کوم څه چې رامنځته کېږي واقعاً نوي دي. سربېره پر دې، داسې نبات او څناور شته چې د غوزې کولو او ساده وېشنې له لارې تکثر کوي. د بدلونونو د پېښېدو د څرنګوالي په اړه د ډاروين نظريه بشپړه نوډاروينيزم شوې ده.
- چې څه ده؟
- ژوند او د مثل توليد په تـوليزه او اساسي توګه د سلولونو د تقسيم مسئله ده. کله چې سلول دوه برخې کېږي، چې په دواړو سلولونو کې يو شان موروثي عناصر رامنځته کېږي. پر دې اساس د سلول دوه برخې کېدل په حقيقت کې د يوه سلول د له څانه د يوې برخې جلا کېدل دي.
- ښه؟
- خو کله بيا په عمل کې ډېرې کوچنۍ تېروتنې پېښېږي او دا ددې سبب کېږي، چې د سلول برخه په عين اصل نه وي. په نوې ژوندپېژندنه کې دې ته ميوټېشن وايي. ميوټېشنونه يا بالکل بې ارزښته دي يا احياناً د فرد په چلند کې د پام وړ بدلونونه رامنځته کوي. ممکنه هم ده چې زيان رسوونکې وي چې په هغه صورت کې يوه ډله همځولي مجزا پاتې کېږي. ډېر د دې ميوټېشنونو له ناروغيو زيانمن دي؛ خو کله هم دا ميوټېشن بيا

فرد نه داسې اضافي ځانګړنې وربښي چې د بقا په جګړه کې دوام ومومي.

- مثلاً اوږد ورمېږ؟

- د زرافې د اوږده ورمېږه لپاره د لامارک توضیح دا وه، چې زرافه باید تل پاس خواته ورمېږ پورته کړي. خو د ډراوین په باور دا ډول خصلتونه ارثي نه دي او نه شي کېدای، چې اولادونو ته ولېږدول شي. د داروین په نظر د زرافې اوږد ورمېږ د بدلون د يوه ډول په پایله کې دی. نوداروینیزم ښوونځي د دې بدلون لپاره روښانه دلیل وړاندې کړ او هغه یې بشپړ کړ.

- د میوټېشنونو له لارې؟

- هو. یو لړ مطلقو تصادفي بدلونونو د زرافې یوه اجداد ته له معمول څخه لږ څه اوږد ورمېږ ورکړ. کله چې خوراک محدود و، دې چارې ډېر حیاتي ارزښت درلود. د هغه زرافې ورمېږ چې د ونو تر لوړو څوکو رسېده تر ټولو ښه د هر څه له عهدې وتلی شوای. همدارنګه تصور کولی شو، چې لومړنیو زرافو به د خپل خوراک لپاره ځمکې کېندلې او دا وړتیا په ځان کې پیاوړې کوي. د اوږدې مودې په لړ کې، د څناورو یوه کورنۍ، چې اوس نشته دي، ښايي څانونه یې په دوو برخو ووېشل. د طبعي انتخاب د کړنلارې نوې نمونې هم که وغواړې کولی شم بېلګه یې درته ووایم.

- هو. لطفاً.

- په برېتانیې کې یو ډول پتنګ دی. د نقره یي رنګه سپېدار په تنو کې ژوند کوي. په اتلسمه پېړۍ کې د ډېرو پتنګانو رنګ خړ نقره یي وو. سوفي، آیا وړاندوینه کولی شې چې ولې؟

- چې وړې الوتونکي یې په آسانه پیدا نه شي کړی؟

- خو کله کله د بالکل تصادفي میوټېشن له امله تیاره رنګه پتنګ منځته راځي. د تیاره رنګو برخلیک فکر کوې څه و؟

- په آسانه لیدل کېږي او ژر د وږو الوتونکو په دام لوېږي.

- هو. څکه په هغه محيط کې - د نقره يي سپيدار ونې پر تنې - تياره رنګ په زړه پورې نه و. په دې توګه د کم رنګو نقره يي پتنګانو شمېر زياتېده، دا وخت په هغه محيط کې بله پېښه کېږي. صنعتي لوګيو د نقره يي رنګ ونې دا خوا او هاخوا توروي. څه ګومان کوې، پر پتنګانو به څه راغلي وي؟

- اوس به تياره رنګه پتنګان ډېر ژوندي پاتې کېږي.

- هو. ډېر وخت لا نه وو تېر، چې د دوی شمېر زيات شو. له ۱۸۴۸ از څخه تر ۱۹۴۸ از پورې د تياره رنګو پتنګانو شمېر په يوه برخه ځايونو کې له يوې سلنې نهه نوي سلنو ته ورسېد. چاپېريال بدل شوی و او روښانه رنګ نور نو ښه نه و بلکې برعکس.

سپين رنګو بايلونکو همدا چې د سپېدار ونو په تنو کې سترګې پرانستې، الوتونکو ښکار کول. وروسته بيا بله مهمه پېښه وشوه. په کارځايونو کې د ډبروسکرو استعمال کمښت، همدارنګه د تصفيې د تجهيزاتو پرمختګ، په ورروستيو کلونو کې پاک او سوتره چاپېريا رامنځته شو.

- او د سپيدار ونې بېرته نقره يي شوې؟

- او پتنګان بېرته خپل نقره يي رنګ ته راګرځي. دې ته له محيط سره سازګاري وايي چې يو طبعي قانون دی.

- هو، پوهېږم.

- په چاپېريال کې د انسان د مداخلې بېلګې ډېرې دي.

- مثلاً؟

- مثلاً انسان هڅه کوي چې کرنيز آفتونه د بېلابېلو زهري موادو په وسيله له منځه يوسي. دا کار مطلوبې پايلې لري، خو کله چې دوی يو باغ يا پټی د آفت د مخنيوي لپاره دواپاشي کوو، په اصل کې يې د طبيعت تعادل له منځه وړی دی. دا پرله پسې ميوټېشنونه داسې افتونه روزي چې زموږ د زهري موادو پر وړاندې مقاومت کوي.

اوس میدان ګټونکو ته پاتې کېږي او له دوی سره مبارزه نوره هم سختېږي. دا ټول د دې لپاره چې انسان د آفاتو ربښې له منځه یوسي. د ژوندانه حق د هغو دی چې تر نورو مقاوم دی.

-دا ډېره وېروونکې ده.

-هو. دا هغه څه دي چې باید فکر ورته وشي. موږ په خپل بدن کې هم له دې آفتونو، مطلب مې باکتریاوې دي، مبارزه کوو.

-پنسلین او نور انټي بیوټیکونه کاروو.

-خو پنسلین هم دې خلکو ته یو ډول د طبیعت د تعادل خلاف کار شمېرل کېږي او څومره چې هغه ډېر وکاروو، خاصې باکتریاوې لاپسې مقاومې کوو. په پای کې یوه ډله داسې باکتریاوې روزل کېږي چې له مغوی سره مبارزه تر مخکې نه ګرانېږي او باید لاډېر قوي انټي بیوټیکونه وکاروو، تر څو...

-خو بالاخره لکه مار زموږ له حلق نه راووځي؟ نبایي ورو ورو مجبور شو چې مغوی په غشي ووهو؟

-البته دا لږ څه اغراق دی. خو نوي طبي علم بې له شکه چې لوی خطر رامنځته کړی. مسئله یوازې دا نه ده چې خاصه باکتریا نوره هم وژونکې شوې ده. پخوا وختونو کې به ډېر ماشومان ژوندي نه پاتې کېدل او د بلابلو ناروغیو پر وړاندې به له پښو لوېدل. لږ شمېر ماشومان به بېرته روغېدل. خو نننی ډاکټر طبعي انتخاب په یوه وینا ساقط کړی دی. هغه درمل چې یو کس یې له شدیدې ناروغۍ څخه ژغورلی، د وخت په تېرو سره یې د ټول بشر ـ د نژاد مقاومت د خاصو ناروغیو پر وړاندې سست کړی. که د ارثي ساتنې پر وړاندې بې پروا واوسو، نو لرې به نه وي چې د بشر ـ د نژاد له بدلون سره مخ شو او د شدیدو ناروغیو پر وړاندې د انسان موروثي توانایي کمه شي.

-څه وحشتناکه لیدلوری.

- که حقیقي فیلسوف کوم وحشتناک څیز ملاحظه کړ او د هغه پر صدق یې باور درلود، نو له نه یادونې یې باید ډډه وکړي. اجازه راکړه چې بله جمع بندي وکړو.

- مهرباني!

- ویلی شو چې ژوند لویه بخت ازموینه ده، چې یوازې د ګټونکو شمېرې په کې حسابیږي.

- مقصد مو څه دی؟

- مقصد مې دا دی هغوی چې د بقا لپاره په جګړه کې ماتې وخوړه له صحنې څخه ایسته شول. ځمکې په کره کې باید میلیونونه کلونه تېر شي څو هر ډول وابنه او څاروي د ګټونکو په شمېر کې راشي. حال دا چې بایلونکي شمېرې یوازې یو ځل را ښکاریږي. په دې توګه نننی هغه حیوانات او نباتات چې موجود دي، ټول د ژوندانه د لویې بخت ازموینې ګټونکي دي.

- ځکه چې غوره دي نو پاتې دي.

- هو، داسې هم ویلی شو. اوس که مهرباني وکړې او هغه انځور چې د ژوبڼ ساتونکي راوړ، ماته راکړې؟

سوفي انځور هغه ته ورکړ. په یوه مخ یې د نوح د کیښتۍ انځور و او په بل مخ یې د بېلابېلو څناورو شجره لیک و. آلبرتو شجره لیک نجلۍ ته وښود.

- داروین، زموږ نوح، داسې ښې مورږ ته راکړې دي، چې د بېلابېلو حیواناتو او نباتانو د وېشنې څرنګوالی ښيي او وینو چې دا بېلابېل دولونه په متفاوتو ډلو، طبقو او کورنیو پورې اړه لري.

- هو.

- انسان او بیزو هغې ډلې پورې اړه لري چې لومړنیان بلل کېږي. لومړنیان تي لري. او تي لرونکي د (ستون فقرات، د ملا تیر) لري. چې په خپله د څو حجروي څناورو برخه دي.

-دا لږ څه د ارسطو ډلبندۍ ته نه دي ورته؟
-هو، سمه ده. خو دا ښکاروندويي د ټنيو بېلابېلو ډولونو وېشنه نه ښيي. د تکامل د تاريخ په هکله څه وايي. د بېلگې په توگه، کولی شې وويني چې اوږدونکي په مقطع کې له خزنده گانو څخه بېل شوي او خزنده گان په مقطع کې له ذوحياتين او ذوحياتين له ماهيانو څخه.
-هو ډېر روښانه دی.
-هر چېرته چې جلاوالی وينې، لامل يې دا دی چې ميوټېشن د نوي ډول د پيدايښت سبب شوی دی. له همدې امله وو چې د پېريو په اوږدو کې د خاورانو بېلابېلې کورنۍ او ډلې رامنځته شوې. په حقيقت نن ورځ د خاورو تر يو ميليونه ډېر ډولونه په نړۍ کې موجود دي او دا يو ميليون د دغو خاورو وړه برخه ده چې زمانې په لړ کې پر ځمکه اوسېدل. د بېلگې په توگه کولی شې وويني چې د ډېرو خاورو ډله له منځه تللې ده.
-او د جدول په ښکته برخه کې يو حجروي حيوانات دي.
-ځينې دغو ممکن په تېرو دوه ميليارده کلونو کې بدلون نه وي کړی. همدارنگه ليدلی شې چې د دغو يو جحروي حيواناتو، نباتاتو او بوټو د عالم تر منځ کرښه موجوده ده. ځکه حيوانات او نباتات په ډېر احتمال سره له گډ لومړني سلول څخه پيدا شوي.
-هو پر دې پوهېږم. خو يو تکی راته گنگ دی.
-کوم؟
-دا لومړنی سلول له کومه شو؟ آيا ډاروين دې مطلب ته ځواب درلود؟
-مخکې مو وويل، ډاروين ډېر محتاطه سړی و. خو په دې برخه کې يې ځان ته خاص جرأت ورکړ او شرطي حدس يې وواهه. ويې ليکل:
که وکړای شو يو گرم حوض په نظر کې ونيسو چې په هغه کې ډول ډول آمونياک لرونکې مالگې، فاسفورس، رڼا، تودوخه، برېښنا او دې ته ورته مواد موجود وي نو د کيمياوي تعاملاتو په مرسته هلته پروټينې ترکيبات جوړېږي او دوی پېچلو بدلونونو ته چمتو دي...

- هغه وخت څه؟
- ډاروين وايي چې لومړنی سلول احياناً څنګه ممکن دی چې له غير کيميايي مادې څخه رامنځته شوی، دا ځل يې هم غښتی پر نښه لګېږي. ننني پوهان فکر کوي، د ژوندانه لومړنی بڼه د همدې (ګرم حوض) په څېر وه، بالکل هماغه ډول چې ډاروين وړاندوينه کوله.
- ښه بيا؟
- د ډاروين په اړه همدومره خبرې بس دي. اوس به لږ څه وړاندې ولاړ شو او په ځمکه کې د ژوندانه د منشا د وروستيو موندنو په هکله خبرې وکړو.
- زه ډېره لېواله يم پوه شم، آيا په رښتيا کوم څوک پوهېږي چې ژوند څنګه پيل شوی؟
- شايد نه! خو د دې کيسې پر حل هره ورځ کار کېږي او د احتمالي پيل انځور وړاندې کېږي...
- چې؟
- اجازه راکړه ووايم، چې د ځمکې ټول ژوي، که حيوانات دي يا نباتات، له يوه جوهره جوړ دي. د ژوندانه ساده تعريف دی: ژوند هغه جوهر دی چې کولی شي په خپل مغذي محلول کې په دوو هم ډوله برخو ووېشل شي. دا ترکيب د هغې مادې تر فرمان لاندې دی چې ورته DNA وايو.
له DNA څخه موخه هغه کروموزومونه يا ارثي جوړښتونه دي چې د ټولو ژويو په سلولونو کې پيدا کېږي. DNA ته د ماليکول اصطلاح هم کارول کېږي، ځکه DNA په اصل کې مرکب ماليکول، يا مايکرو ماليکول، دی. نو مسئله دا ده چې لومړنی ماليکول څنګه پيدا شو؟
- هو؟
- څلور بيليونه او شپږ سوه کاله مخکې چې شمسي-نظام رامنځته شو، ځمکه په لومړيو کې ويلې شوې ټوټه وه، چې ورو ورو سړه شوه. د نوي

علم په باور زموږ په کره کې ژوند، له دریو نه تر څلورو میلیونو کلنو مخکې پیل شوی.
- دا ټول ډېر ناشوني ښکاري.
- تر هغه دې چې ټولې خبرې نه وي اورېدلې، داسې مه وایه. په لومړیو کې زموږ سیاره لکه اوس چې ده، نه وه. هغه وخت په کې ژوند نه و او فضا یې هم اکسیجن نه درلود. د لومړي ځل لپاره اکسیجن د نبات د فوتوسنتیز له لارې جوړېږي.
په واقعیت کې د اکسیجن نشتون د ارزښت وړ دی. د ژوندانه سلولي هستې - چې DNA جوړوي - په هغه چاپېریال کې چې اکسیجن وي، نه شي پیدا کېدای.
- ولې؟
- ځکه اکسیجن سخت غبرگون منونکی دی او له همدې امله مخکې تر دې چې DNA جوړه شي مالیکولي سلولونه یې اکسیده کېږي.
- عجب!
- په دې توگه موږ باور لرو چې نن ورځ هېڅ نوی ژوند، ان یوه باکتریا یا نوی وایرس، نه پیدا کېږي. د ځمکې پر مخ ژوندون یو لرغونتوب لري. د فیل او تر ټولو کوچنی باکتریا شجره لیک یو شان دی. تقریباً ویلی شو چې فیل یا انسان په حقیقت کې د یو حجروي موجوداتو له یو ځای کېدو څخه جوړ دي. ځکه زموږ د بدن هره حجره د هماغې ارثي مادې لرونکې ده.
زموږ د هویت راز، زموږ په واړه سلول کې نغښتی دی.
- څومره عجیبه خبره!
- ټول ارثي فضایل په ټولو سلولونو کې فعال نه وي. د ژوندانه له لویو رازونو څخه یو راز دا دی، چې د څوحجروي ژوو حجرې څنگه په خپله دنده کې تخصص مومي؟ د دې ځانگړنو - ژنونو - یوه برخه فعال او پاتې نور غیرفعال دي. د ځیگر سلول د عصب یا پوستکي سلول په اندازه

پروټین نه تولیدوي. خو دا درې ډوله سلولونه، درې واړه د DNA واحد مالیکول لري. دا مالیکول د هر موجود د جوړښت راز په ځان کې لري. دا چې د ځمکې په شاوخوا کې اکسیجن نه و، نو ځمکه کوم ساتونکی پوښ نه وه پوښلې. یعنې د لمریزو وړانګو مخه کوم شي نه نیوله، دا د ارزښت وړ ده ځکه دې وړانګو احتمالاً د لومړني مرکب مالیکول په جوړولو کې مرسته وکړه. د لمر وړانګې د انرژۍ واقعي سرچینه وه، چې سبب شو بېلابېل کیمیاوي مواد د ځمکې پر مخ سره یوځای شي او په دې توګه پېچلي مالیکول رامنځته شي.

- صحیح.

- اجازه راکړه چې بیا یې تکرار کړم. مخکې تر دې چې دا ډول پېچلي مالیکولونه جوړ شي، لږ تر لږه دوه اصلي شرطونه ضرور دي: لومړی دا چې د ځمکې په شاوخوا کې اکسیجن نه وي او دویم دا چې د لمر وړانګې پر ځمکه ولګېږي.

- پوه شوم.

- د ننني پوهانو په وینا، په دې ګرم حوض یا لومړني سوپ کې یو وخت بې شمېره پېچلي مالیکولونه پیدا شول، چې حیرانوونکې خاصیت یې درلود. یعنې کولی یې شوای چې په دوو مساوي برخو ووېشل شي. سوفي! په دې توګه د تکامل اوږده چاره پیل شوه. که خپل مطلب لږ ساده کړو ویلی شو، چې اوس د لومړنی ارثي مادې- لومړني DNA- یا لومړني ژوندي سلول په هکله خبرې کوو. دې سلول ځان څو څو ځلې په وړو برخو ووېشه؛ خو استحاله او بدلون له هماغې لومړۍ مرحلې پیل شو. وروسته تر میلیونو کلونو له دغو یو حجروي موجوداتو یو بې له څوحجروي موجود سره یو ځای شو. په دې توګه د نبات فوتوسنتیز پیل شو او په فضا کې اکسیجن پیدا شو. دې پېښې دوې پایلې درلودې: یو، موجوده هوا هغو ژویو ته چې د ریه له لارې ساه اخلي، تکامل برابر کړ. دویم، دې هوا ژوند د لمر له زیان رسوونکو وړانګو څخه وساته. همدا

وړانګې چې احتمالاً د لومړني سلول د رامنځته کېدو حياتي بللېدنه وه، په همدې حال کې ژوندیو ژویو ته زیان رسوونکې وې.
- فضا خو په یوه ځل نه ده پیدا شوې. د ژوندانه لومړنیو شکلونو څنګه دوام وکړ؟
- د ژوند پیل په سیند کې شوی. له سوپ څخه موخه هم همدا وه. په سیند کې ژوندون له زیان رسوونکو وړانګو په امن کې و. وروسته بیا د اوږدې مودې لپاره د اقیانوس په چاپېریال کې - د هوا تر رامنځته کېدو وروسته - لومړني ذوحیاتین وو، چې لاړل او پاتې نورې پېښې خو مې درته وویلې.
موږ اوس دلته د ځنګله په منځ کې په یوه جونګړه کې ناست یو او ماضي ته - هغه چارې چې درې یا څلور میلیارده کاله مخکې پېښې شوې - ګورو. دا اوږده چاره په پای کې زموږ په باطن کې خپله خبرتیا پیدا کوي.
- او سره له دې بیا هم تاسو فکر کوی چې دا ټولې پېښې تصادفي دي؟
- ما داسې څه نه دي ویلي. پر دې تختې انځور ښیي چې تکامل خانته لوری او لاره درلوده. د میلیونونو کلونو په لړ کې ژوو ډېره پېچلې عصبي دستګاه او لوی مغز پیدا کړی. زه شخصاً پر دې باور یم چې دا هر څه تصادفي نه شي کېدای. ته څه وایې؟
- دا نه شي کېدای چې زموږ سترګې تصادفي پیدا شوې وي، یوازې همدا دي چې موږ خپله شاوخوا نړۍ پرې لیدلی شو. ستاسو په نظر دا کوم مفهوم نه لري؟
- د سترګو تکامل داروین هم حیران کړی و. باور یې نه شوی کولی چې داسې ظریف او حساس شی سل په سلو کې د طبعي انتخاب له لارې رامنځته شوی وي.
سوفي غلې کېناسته او آلبرتو ته یې کتل. په فکر کې ډوب وه. دا عجیبه نه ده چې په خپله اوس ژوندی ده، همدا یو ځل ژوند کوي او بیا هېڅکله نه ژوندی کېږي.

ناڅاپه یې په لوړ غږ وویل:

*که د لاس په حرکت د وربښمو تار انتها ته رسېدلی شي نو دا بې انتها خلاقه ملې خلې له کومې وجې دي؟*

آلبرتو تندی تریو کړ.

- لورې! ته باید داسې خبرې ونه کړې، دا د ابلیس کلام دی.

- ابلیس؟

- او یا د ګوېټې په فاوست کې مفیستوفلس:

(Was as soll uns denn ew'ge schaffen! Geschaffenes zu nichts hinwegzuraffen!)

- د دې کلمو دقیقه مانا څه ده؟

- فاوست د مرګ پر وخت د خپل ژوندانه لاسته راوړنو ته نظر وکړ او په بریالیتوب یې ویل:

هغه وخت او په هغه شیبه به وویلی شم:

یوه شیبه، تمه شه ډېره ښکلې یې

زما د سړو او بدو ورځو کارونو ته

د وخت تېرېدل زیان نه شي رسولی

د ژوند په دې سختو شېبو کې

د دومره مستې خوشالۍ له زېرې ببرته رغېږم

- څومره شاعرانه.

- خو بیا د ابلیس وار راځي او وروسته د فاوست له مرګه فریاد کوي:

تېر! څومره احمقانه خبر، وخت ولې تېر شي؟

څه چې تېر شوي له نیستۍ سره یو شان دي

تېر شوي تېر شول، له دې خبرې څه تر لاسه کولی شو؟

داسې و انګیره چې هرڅه شته نه وو

له دې ټولو سره زه د تلپاتې نیستۍ غوښتونکی یم!

- دا ډېر بد ښکاري. زه لومړی قطعې ته لومړيتوب ورکوم. فاوست، سره له دې چې ژوند يې پای ته ورسېد، بيا هم په هغه څه کې يې چې له خانه پرېښي وو، معنا او مفهوم ويني.

- د ډاروين د نظريې پايله دا نه ده چې موږ د يوه ډېر لوی څيز برخه يو؟ او په دې لوی انځور کې د ژوندانه هر کوچنی شکل ځان ته خاص ارزښت لري؟ موږ ژوندۍ سياره يو؛ سوفي! موږ هغه لويه کښتی يو چې د کايناتو په نړۍ تر سوزوونکي لمر چاپېره تاوېږوو. خو موږ هر يو په ورته وخت کې د ژوند لپاره د جن لېږدوونکې کښتی يو. که مو دا لېږد تر بل بندره سم رسولی وي، نو بې ځايه به مو ژوند نه وي تېر کړی. توماس هارډي همدا مطلب په خپل يو شعر کې چې (بدلونونه) نومېږي، بيانوي:

ددې ونې يوه توټه
هغه سړی دی چې زما نيکه پېژانده
خو اوس تر ونه لاندې ويده دی
دا پاڼې او ښاخونه به يې مېرمن او اولادونه وي
يو ښايسته انسان چې اوس (شين) شوی دی
دا شنه بوټي له هغه را شنه شوي
له هغه ښځې چې کلونه کلونه يې
دلته د خپلې آرامتيا لپاره دعاوې کړې دي
او هغه نجلۍ
چې کلونه مخکې ما غوښتل ورسره معرفي شم
څوک خبر چې همدا سور گل هغه وي
نو!
دوی تر خاورو لاندې نه دي
لکه عصب او شريانونه په حرکت کې دي
دوی بيا هوا باران او لمر حس کوي
دا انگيري چې همدې دوی داسې کړي دي

## فرويډ

**... په هغې کې ناوړه او ځانغوښتونکي تمايلات پيدا شوي...**

هيلډې مولرکناګ درنه بسته تر کوټ لاندې کړه او له کټ ښکته شوه. بسته يې د ليکنې پر مېز کېښوده، خپل کالي يې واخيستل او حمام ته ننوته. دوې دقيقې تر اوبو لاندې ودرېده، ژر يې کالي واغوستل او ښکته يې منډه کړه.

- هيلډې ناشتا؟

- لومړی بايد لږ پارو ووهم.

- خو هيلډې...!

په منډه له کوره ووته، تر بڼ تېره شوه او کېښتيو ته يې ځان ورساوه. د وړې کېښتۍ رسۍ يې خلاصه کړه او ښکې کېناسته. څه شېبه يې په غوسه په خليج کې پارو وواهه تر هغه چې ارامه شوه.

- موږ ژوندۍ سياره يو سوفي! موږ هغه لويه کېښتۍ يو چې د کايناتو په نړۍ کې تر سوزوونکي لمر چاپېره تاوېږو؛ خو موږ هر يو په ورته وخت کې د ژوند لپاره د جن لېږدوونکې کېښتۍ يو، که مو دا لېږد تر بله بندره سم ورساوه نو بې ځايه به مو ژوند نه وي تېر کړی.

هيلډې دا مطلب اخيستی و، چې دا برخه پخپله دې ته ليکل شوې، نه سوفي ته. د ليکنو هره کلمه د پلار لخوا هيلډې ته خطاب و.

پاروګان يې له اوبو وايستل او په کېښتۍ کې يې کېښودل. وړه کېښتۍ ورو ورو پر اوبو روانه وه او موجونه په نرمۍ د کېښتۍ پر تنه لګېدل. پخپله هيلډه هم-لکه وړه کېښتۍ چې د اوبو پر سر وي- د ونې د پوست په څېر د ژوند د اقيانوس پر سر وه.

سوفي او آلبرتو د دې انځور په کوم ځای کې وو؟ آلبرتو او سوفي اوس چېرې دي؟ هيلډې تصور نه شوی کولی چې دا دوه کسه دې يوازې د پلار په مغز کې موجود وي او يا تصور يې نه شوی کولای چې دوی دې

د کاغذ پر مخ د پلار له تايپي ماشين څخه راوتلي وي. دا دې نه ورته وه، چې ويل به يې پخپله دا هم هغه پروټيني ترکيب دی چې ناڅاپه يوه ورځ په (ګرم حوض) کې ژوندی شوه، دا تر دې زياته وه، دا هيلده مولرکناګ وه.
خو منله يې چې ليکنې حيرانوونکې ډالۍ دي او پلار يې د دې لپاره تلپاتې شی ليکلي دي خو له آلبرتو او سوفي سره د پلار له چلنده خوښه نه وه. بايد کورته د پلار له راتګه مخکې، هغه ته د عبرت درس ورکړي.
څکه دا د آلبرتو او سوفي غوښتنه وه.
له اوسه يې د کېنهاګ په هوايي ډګر کې د پلار څېره له خانه سره مجسم کړې وه، چې د لېوني غونډې هاخوا دېخوا منډې وهي. اوس بالکل په حال راغلې وه. پارو يې وواهه، وړه کېښتۍ يې بېرته تر تمڅي ورسوله او کلکه يې وتړله. تر چای څښلو وروسته، اوږده شېبه له مور سره کېناسته او خبرې يې وکړې. څومره ښه ده چې انسان د ژوند د عادي څېزونو په هکله، مثلاً په غوړيو کې د نيم بندې پخې شوې هګۍ په هکله، خبرې وکړي.
تر ماښامه بيا ليکنو ته ورنغله، نور نو لوستو ته چندان پاڼې نه وې پاتې.
بيا ور وټکېده.
آلبرتو وويل: راځه خپل غوږونه به پټ ونيسو، ښايي بېرته ولاړ شي.
- نه، زه غواړم ووينم چې څوک دي.
آلبرتو له نجلۍ سره تر دروازې ولاړ.
د دروازې مخې ته لوڅ سړی ولاړ و. جدي او تروشه څېره يې نيولې وه، پر سر يې تاج و او نور ټول لوڅ و.
ويې ويل: ښه؟ د امپراتور د دې نويو کاليو په هکله ستاسو نظر څه دی؟
د آلبرتو او سوفي ژبې بندې شوې. د دوی چوپتيا لوڅ سړی غوسه کړ.
چغه يې کړه: څه شوي؟ ولې تعظيم او درناوی نه کوی؟
آلبرتو وويل: تاسو ښه وايي، مګر ښاغليه! کالي مو نه دي اغوستي.

سړي بیا هم ترینګلني خبره نیولې وه. آلبرټو سر وړاندې کړ او د سوفي په
غوږ کې یې وویل:
- ګومان کوي چې ډېر هوښیار او عزتمن دی.
سړي چې دا واورېدل، خبره یې بدله شوه.
ویې پوښتل: تاسو دلته کنټرول ته ولاړ یی؟
آلبرټو وویل: متاسفانه نه، موږ له هره اړخه هوښیار او عقلمن یو. له همدې
امله امپراتور په دا شان بې نزاکته وضعیت زموږ کور ته نه شي راننوتی.
د لتوخ سړي کبر او غرور دومره خندوونکی و، چې سوفي یې په خندا
کړه. د نجلۍ خندا دومره له رمزه ډکه وه، چې لوخ سړی یې خپل
لوڅوالي ته متوجې کړ. عورت یې په دواړو لاسونو پټ کړ او د نږدې ونې
د تنې شاته ورک شو. شاید له آدم او حوا، نوح، سور خولۍ او خرسک
سره یو ځای شو.
آلبرټو او سوفي همداسې له دروازې سره ولاړ وو او خندل یې.
بالاخره آلبرټو وویل: ښه به وي چې دننه ولاړ شو. غواړم د فروید او د هغه
د ځان ناخبرۍ (لاشعور) نظریې په هکله درسره وغږېږم.
بیا د کړکۍ تر څنګ کېناستل. سوفي خپل ساعت ته وکتل او ویې ویل: د
ماسپښین دوه نیمې بجې دي، مېلمستیا هم په مخ کې ده او زه ډېر کارونه
لرم.
- زه یې هم لرم. د زیګموید فروید په هکله یو څو کلمې وایم.
- هغه هم فیلسوف و؟
- تر ډېره ویلی شو چې فرهنګي فیلسوف و. فروید په ۱۸۵۶ز کې وزیږید
او د وین په طبي پوهنتون کې یې زده کړې وکړې. ډېر عمر یې په وین
کې تېر کړ، هغه مهال د دې ښار د فرهنګي ودې وخت و. لومړی یې په
عصب پېژندنې کې تخصص واخیست. د تېرې پېړۍ په وروستیو کې او د
اوسنۍ پېړۍ په ډېریو کلونو کې یې خپلې Pcychoanalysis یا
ارواپوهنې ته وده ورکړه.

- د دې مانا راته وايې؟

- روانپوهنه په ټوليزه توګه هم د انسان د ذهن تعريف دی او هم د رواني او عصبي اختلالاتو د دژملنې کړنلاره ده. نه غواړم چې د فرويد يا د هغه د کړنو بشپړ انځور درته وړاندې کړم خو د هغه ځان ناخبری (ناخود آګاه) نظريه د انسان د پېژندنې لپاره اړينه ده.

- دا په زړه پورې ده، ادامه ورکړئ.

- فرويد باور درلود چې د انسان او محيط تر منځ تل اړيکه موجوده ده. په ځانګړې توګه د انسان د اړتياوو او ټولنې د غوښتنو تر منځ اړيکه يا تعارض مهم ځيز دی. مبالغه به نه وي که ووايو چې فرويد بشري غرايز کشف کړل او همدې مسلې د طبيعت پالو ډه‌مهمو جريانانو د مخکښانو په لړ کې - چې د نولسمې پېړۍ په وروستيو کې ډېر وو - يو مخکښ وټاکه.

- له بشري غرايزو مو مقصد څه دی؟

- زموږ کړنې تل عقلاني بنسټ نه لري. په حقيقت کې انسان هغه عقلمند موجود، چې په اتلسمه پېړۍ کې د عقل خاوند ګڼل کېده، نه دی. زموږ د کړنې، فکر او غوښتنې تر ډېره غيرعقلي دي. دا غيرعقلي غوښتنې زموږ د اساسي غريزو او اړتياوو بيانوونکې دي. د بشر ــ جنسي ــ غريزه همدومره اساسي ده لکه څومره چې نوزېږي ماشوم ته د شيدو څښلو غريزه اساسي ده.

- ښه؟

- دا په ځان کې نوی کشف نه و. خو فرويد وښوده چې دا اساسي اړتياوې کولی شي چې پټې وي او زموږ اعمالو ته، بې له دې چې موږ خبر شو، لارښوونه وکړي. تر دې ور هاخوا فرويد وښودل چې ماشوم هم د يو ډول جنسي ــ غوښتنو لرونکی دی. دا دعوا د وين د منځنۍ طبقې د خوښې او پام وړ ونه ګرځېده او د فرويد محبوبيت له منځه ولاړ.

- زه حيران نه شوم.

- مـوږ دې تـه د وېکتوريـا د دورې اخـلاق وايـو، يعنـې هغـه وخـت جنسي مسـايل د محرمـاتو برخـه وه. فرويـډ د روان درملنـې پـه پيـل کـې د ماشـومانو جنسي- تمايـل وخبـره او خپلـه دا ادعـا يـې پـه تجربـې سره ثابتـه کـړې شـواې. همدارنگـه يـې ليـدلي وو، چـې څنگـه د (Neuroses) او رواني اختلالونـو بېلابېلـو ډولونـو د ماشـوموالي پـه تـوپير کـې ريښـه لـري. نـو ورو ورو د درملنې داسې ډول رامنځته شو چې هغه ته د روان لرغونپېژندنه ويلى شو.

- مقصد مو څه دی؟

- لرغونپـوه د فرهنگـي تـاريخ کينـدي او د تېـرې زمـانې پـه پـاتې شـونو پسـې گرځـي. ممکنـه ده چـې د اتلسـمې پېـړۍ کـوم چـاقو پيـدا کـړي او کـه څمکـه لـږ ډېـره وکينـدي نـو د څوارلسـمې پېـړۍ ږمـنځ او تـر هغـه ښـکته شـايد د پنځمې مخزيږديزې پېړۍ گلدان ومومي.

- ښه؟

- اروپـوه هـم پـه همـدې توگـه کـولی شي چـې د نـاروغ پـه مرسـته د هغـه د ذهـن ژورې وکينـدي او کـومې تجربـې چـې د هغـه د اروايـي اخـتلال لامـل شـوې، پيـدا کـړي. څکـه د فرويـډ پـه بـاور مـوږ خپلـې ټـولې تجربـې پـه خپـل ضمير کې ساتو.

- هو، پام مې دی.

- اروپوه لـه ناخوښـو تجربـو څخـه پـرده پورتـه کـړي، هغـه تجربـې چـې نـاروغ کلونه هڅه کوي لـه منځـه يـې يـوسي خـو د شـعور پـه ژورو کـې ځـان پټـوي او د هسـتۍ ريښـه يـې وچـوي. اروپـوه دا زيـان رسـوونکې تجربـه بېرتـه نـاروغ تـه وريـادوي او مرسـته ورسره کـوي چـې لـه زيانـه يـې خـلاص کـړي او د ښـه والي په لور لاړ شي.

- دا منطقي ده.

- مگـر لـږ تيـز روان يـم. اجـازه راکـړه چـې لـومړی د فرويـډ لـه نظـره د انسـان ذهن تعريف کړو. تر اوسه دې کوم نوی زړېدلی ماشوم ليدلی؟

- زه يو څوارلس کلن د عمه زوی لرم.

- کله چې مور نړۍ ته راځو، خپلې جمسي- او اروايي اړتياوې ښکاره او بې له شرمه څرګندوو. که شيدې راونه رسيږي، ژاړو. که مو وروږي وچ نه وي نو چغې به وهو. ماشوم خپلې غوښتنې د تماس او بدني تودوخې لپاره هم بې پروا څرګندوي. فرويډ په انسان کې د خوند دې اصل ته id وايي. توی زړيدلی ماشوم پرته له id بل څه نه دی.

- ادامه ورکړئ.

- دا id يا د خوند اصل، تر لويوالي او ان تول ژوند راسره وي. خو ورو ورو پوهيږو چې څنګه خپلو غوښتنو ته نظم ورکړو او ځان له محيط سره برابر کړو. د وخت په تيريدو سره دا هم زده کوو چې د خوند اصل د واقعيت له اصل سره همغږی کړو. د فرويډ په وينا، په مور کې ego رامنځته کيږي او د تنظيم دا دنده پر غاړه اخلي. اوس نو که څه هم يو شي وغواړو يا اړتيا ورته ولرو، هغه د چيغو او ژړاوو په زور په نورو نه شو منلی.

- البته چې نه، واضح ده.

- کيداى شي زړه مو داسې څه وغواړي چې بهر نړۍ يې نه مني. دا تمايلات بايد په ځان کې له منځه يوسو، يعنې هڅه وکړو چې لرې او هېر يې کړو.

- صحيح.

- فرويډ د انسان په ذهن کې دريم عامل هم ونوماوه او کار يې ورباندې وکړ. له ماشومتوبه تل زموږ سر و کار د مور او پلار او ټولنې له اخلاقي غوښتنو سره دی. کله چې کوم غلط کار کوو نو مور او پلار مو راته وايي چې (دا کار مه کوه) او يا (شيطانه! دا ښه کار نه دی).

کله چې لويږو نو د دغو اخلاقي غوښتنو او تمو غږ لاهم زموږ په غوږ کې پاتې وي. د نړۍ اخلاقي تمې، ښايي زموږ د وجود برخه ګرځي. فرويډ دې ته (superego) وايي.

- له (superego) څخه يې مقصد همدا وجدان نه دی؟

- وجدان د سوپرایګو یوه برخه ده. فروید مدعي وو چې سوپرایګو موږ ته وایي چې کومې غوښتنې مو چېرې بدې یا ناوړه دي، په تېره بیا د جنسي او شهواني غوښتنو په برخه کې. مخکې مو وویل فروید ادعا وکړه چې دا ناخوښ یا ناوړه تمایلات د ماشومتوب په لومړیو مرحلو کې خاته ته وده ورکوي.

- څنګه؟

- پوهېږو چې کوچني ماشومان د خپل جنسي- غړو له لمس خوند اخلي. د فروید په زمانه کې به چې کوم دوه یا درې کلن ماشوم دا عمل ترسره کړ نو د سزا لپاره به یې ګوتې ورتاوولې او ترخنګ یې د موږ غږ، (شیطانه!) یا (دا کار مه کوه.) او یا (لاسونه دې پر مېز کېږده.) هم و.

- څومره احمقانه!

- دا لومړنی د ګناه احساس د ټولو جنسي- غوښتنو په اړه دی. د ګناه دا احساس د انسان په ضمیر (سوپرایګو) کې پاتې کېږي، له همدې امله د فروید په نظر، ډېر خلک ټول عمر د جنسي- چارو په اړه د ګناه احساس کوي. فروید وښوده چې د انسان لپاره جنسي- تمایل او اړتیا طبعي او حیاتي ده، او په دې توګه ګرانې سوفي، د تمایل او ګناه توپیر زموږ په ټول ژوند کې پېچلی او ګران دی.

- ګومان نه کوی چې د فروید د زمانې په پرتله اوسمهال د تمایل او ګناه توپیر کم شوی؟

- بالکل. خو د فروید ډېرو ناروغو دا توپیر دومره شدید احساساوه چې د فروید په وینا دوی په (Neuroses) یا اروایي ناروغۍ اخته شول. د بېلګې په توګه د فروید له ناروغانو څخه یوه ښځه، په پټه د خپلې خور پر خاوند مینه وه. ناڅاپه یې خور پر ناروغۍ اخته او مړه شوه. میینې ښځې له ځانه سره فکر وکړ: اوس نو د خور خاوند ازاد دی چې له ماسره واده وکړي. دا فکر یو دم د هغې له ضمیر سره په ټکر کې شو او دومره شرموونکی بریښ تمام شو چې د فروید په وینا، ښځې بې څنډه خپله دا غوښتنه له منځه

پروړه. په بله وینا هغه یې د خپل ضمیر په ژورو کې خښه کړه. فروید لیکي: نجلۍ ناروغه شوه او د هیسټري ناروغۍ نښې په کې راڅرګندې شوې، کله چې ما د هغې په درملنې لاس پورې کړ؛ د خور د مړینې بستر او ځانغوښتونکي تمایلات چې په دې کې پیدا شوي وو، ټول یې هېر کړي وو. خو د درملنې پر مهال یې هر څه بېرته په یاد راغلل. او دې وخت کې یې په ډېرې بېقرارۍ، د ناروغۍ هغه شېبې بیان کړې او په دې توګه یې درملنه وشوه.

- اوس ښه پوهېږم چې مقصد مو د روان له لرغونپېژندنې څخه څه و.

- نو کولی شو د انسان د اروا ټولیز تعریف وړاندې کړو. فروید د ناروغانو د درملنې په خو کلنه تجربه کې دې پایلې ته ورسېد چې ځانخبري (خوداګاه) ضمیر د انسان د ذهن یوازې یوه کوچنۍ برخه ده او ځانخبري ضمیر یې د ګنګل غر ونوماوه چې څوکې یې له اوبو سر راایستلې وي. تر اوبو لاندې، یا تر ځانخبري ضمیر لاندې، ځان ناخبري یا نیمه هوښیار ضمیر ځای لري.

- نو ځان ناخبري ضمیر زموږ دننه ټول پټ شیان دي، هغه شیان چې هېر کړي مو دي او نه مو رایادېږي؟

- موږ تل خپلې ټولې تجربې په پوره توګه په یاد نه شو ساتلی. فروید ټولو هغه څیزونو ته، چې موږ یې په اړه فکر کوو یا مو تجربه کړي، خپل ذهن به کار واچوو او وکولی شو چې را په یاد یې کړو، مخکینۍ خبرولي ووایه او د ځان ناخبري اصطلاح یې هغو شیانو ته وکاروله چې موږ هغه خپلې او پټ مو ساتلي. یعنې هغه شیان چې کوښښ مو کړی هېر یې کړو ځکه په زړه پورې، ښه او منونکي نه دي. کله چې داسې کوم هوس یا غوښتنه ولرو چې ځانخبری ضمیر یې نه مني، نو سوپرایګو یې د شعور ژورو ته استوي او هلته یې پټوي.

- پوهېږم.

- دا میکانیزم په ټولو روغو انسانانو کې یو شان دی. خو د نامطلوبو او بدو افکارو پټول ځینو کسانو ته دومره ستونزمن تمامیږي، چې دوی په اروایي ناروغیو اخته کوي. کوم څه چې په دې ډول پټیږي، هڅه کوي پخپل سر پوهاوي ته لاره ومومي. ځینو کسانو ته د خبر ضمیر تر نظر لاندې د دې تمایلاتو ساتنه ډېره ستونزومنه وي. فروید په ۱۹۰۹ز کې له امریکا څخه په لیدنه کې، د ارواپوهنې په اړه د خپلې وینا پر مهال د ټکونې یا ځپلو د میکانیزم د کارکولو بېلګه بیان کړه.

- که یې بېلګه واورم، ښه به وي.

- ویې ویل: (داسې وانګېرئ لکه په اوسنۍ ارامه غونډه کې چې یو کس د خلکو له ډلې پاڅیږي او د ټولو پام ځانته واړوي. شورماشور جوړ کړي، بې ځایه وخاندي، خبرې وکړي، پښې پر ځمکه ووهي، زما ذهن ګډوډ کړي او کار ته مې پرې نه ږدي؛ زه ناچاریږم چې ووایم (نشم کولی خبرو ته مې ادامه ورکړم.) په دې وخت کې څو قوي او خواکمن سړي راشي او دا مزاحم کس ورروسته تر لږ کشمکشه دباندې وباسي. دا سړی اوس ټکول شوی او زه کولی شم خپلې وینا ته دوام ورکړم خو د دې لپاره چې مزاحمت بیا تکرار نه شي او شړل شوی سړی بېرته غونډې ته رادننه نه شي، هغو ځواکمنو سړیو چې له ما سره مرسته کړې، خپلې څوکۍ اخلي او د دروازې تر څنګ کېښني. اوس که تاسې دې ته ورته خپله اروا په نظر کې ونیسئ، نو دننه ځای ته ځانخبری او بهر ته ځان ناخبری ووایې؛ په دې توګه د ټکولو یا ځپلو د چارې ښه انځور تر لاسه کوئ.

- جالبه بېلګه وه.

- خو سوفي، مزاحم کس بیا هم کوښښ کوي چې را دننه شي، په دې توګه ځپل شوي افکارو او غوښتنې هم همداسې دي. موږ تل د هغو ټکول شویو افکارو تر فشار لاندې یو چې هڅه کوي له ځانخبري ضمیر څخه زموږ ذهن ته لاره ومومي. له همدې امله ځینې وخت داسې خبرې

کوو یا داسې کار کوو چې نه غواړو هغه ووایو یا وکړو. یعنې خان ناخبري غیرگونونه زموږ احساسات او اعمال راپاروي.

- یوه بېلگه راته ویلی شې؟

- فروید له خو دغو مکانیزمونو سره کار درلود. یو یې هغه مکانیزم و چې ده ورته (Parapraxis) ویل، موږ ورته د ژبې یا قلم تېروتنه وایو. په بله وینا موږ تصادفاً داسې څه وایو یا کوو، چې ډېره موده کوښښ کوو هغه وځپو. فروید د هغه کارگرمشر- بېلگه راوړي چې غوښتل یې د خپل رییس د سلامتي په ویاړ یو جام وڅښي. ستونزه دا وه چې رییس ښه نوم نه درلود یا په ساده ژبه بېکاره نوم یې و.

- ښه؟

- کارگرمشر ودرېد، خپل جام یې پورته کړ او ویې ویل: (د بېکاره سړي په ویاړ!)

- وای! ما دې خدای داسې نه کوي.

- خو کارگرمشر- بېچاره داسې شو. ده په اصل کې هغه څه وویل چې په زړه کې یې وو، خو نه یې غوښتل چې پر ژبه یې راوړي. غواړې یو بل مثال هم درته ووایم؟

- هو، لطفاً.

- سقف د چای ښنلو لپاره د سیمې له کشیش کره ورغی، کشیش د عیال څښتن و، چې خو ورې او هوښیارې لونې یې درلودې. د ښاغلي سقف پزه ډېره بدرنگه وه او دا چې ماشومان معمولاً د هر څه په اړه بې پروا خبرې کوي- څکه د ټکونې او شاته لېږدونې مکانیزم یې تر اوسه دومره وده نه ده موندلې- نو نجونو ته وویل شول چې په هېڅ وجه باید د ښاغلي سقف د پزې په هکله څه ونه وایي. سقف راننوت او وړو نجونو ډېره هڅه وکړه چې پټې خولې پاتې شي، ان سترگې یې هم پرې ونه لگېږي او هېر یې کړي خو پزه یې هېڅ له ذهنه نه وته. کشیش یوې نجلۍ ته یې وویل

چې مبلمه ته بوره وړاندې کړي. نجلی سقف ته وکتل او ویې ویل:
(ښاغلیه! په پزه کې مو بوره واچوم؟)

- څومره بد!

- سره له دې چې دلیلونه راوړو، یعنې د خپل عمل رښتیني دلیل په خان نه راوړو او نورو ته هم نه وایو څکه رښتیني دلیل پر مقابل لوري ښه نه لګېږي.

- لکه څه؟

- داسې وانګېره لکه زه چې تا هیپنوتیزم کړم(مصنوعي خوب درکړم)، کله چې ته ویده یې، زه مې ګوتې پر مېز وهم، ته پورته کېږې او کړکۍ خلاصوې؛ وروسته چې کله زه پوښتم، ولې دې کړکۍ خلاصه کړه، شاید ته ووایې چې ډېره ګرمي مې وشوه، خو دا واقعي دلیل نه دی، بلکې ته نه غواړې چې ووایې د هیپنوتیزم د اغېز له امله دې دا کار وکړ، نو دلته ته بل دلیل پیدا کوې.

- هو، پوه شوم.

- مور هره ورځ عملاً له دې ډول پېښو سره مخ کېږو.

- زما د عمه څلورکلن زوی دی، فکر کوم دومره همزولي نه لري چې لوبې ورسره وکړي، زه چې هر کله ورځم نو ډېر راته خوشالېږي. یوه ورځ مې ورته وویل چې زه باید کور ته ولاړه شم، مور مې یوازې ده. پوهېږې ماته بې څه وویل؟

- څه؟

- ویل مور دې خره ده.

- هو، بې له شکه چې دې ته دلیل راوړل وایي. د هلک اصلي مقصد دا و چې ده وویل، بلکې ده غوښتي چې ووایي، کاش ته نه وای تللې، خو دا یې نه غوښتل چې پر ژبه راوړي. بل کار چې ډېری وخت یې کوو، (Projection) دی.

- پروجکشن نو څه دی؟

- پروجکشن هغو خصلتونو ته نسبت ورکړل شوی چې غواړو په ځان کې بې پټ وساتو. د مثال په توګه څوک چې پخپله ډېر کنجوس او سخت وي، نورو ته پیسه دوست وايي او یا څوک چې تل د جنسي- مسایلو په اړه فکر کوي، تر نورو زیات د خلکو د شهواني کړنو پر وړاندې غبرګون ښيي.

- ښه.

- فروید ویل زموږ ورځنۍ ژوند له دې ډول ځان ناخبري میکانیزمونو ځخه ډک دی. د یوه کس نوم تل رانه هېرېږي، د خبرو پرمهال بې ځایه پخپلو کالیو ځان مصروفوو. ځینې شیان بې دلیله په کوټه کې ځای پر ځایوو، ځینې کلمې بې ارادې رانه ویل کېږي او کله کله هم د ژبې ښویېدنه یا د قلم سهوه رانه کېږي. او دا ټول بالکل معصومانه ښکاري. فروید ټینګار درلود دا تېروتنې لکه څومره چې موږ ګومان کوو تصادفي او په خپل سر نه دي. دا بې ځایه کړنې په اصل کې زموږ د ډېرو خصوصي رازونو رابرسېرروونکې دي.

- تر دې ورروسته مې زه باید هرې خبرې ته پام ونیسم.

- څومره چې پام ونیسې، بیا هم نه شې کولی چې د ځان ناخبري له لاسه وتښتې. یوازېنی هنر چې ته یې له ځانه ښودلی شې دا دی چې ډېر کوښښ ونه کړې ناوړه او ناخوښ شیان په خپل ځان ناخبري کې پټ وساتې؛ دا دې ته ورته دی لکه د موږک د کور تر مخ چې اوبه ډنډې کړې او پر دې پوه شې چې د اوبو موږک د باغ له بل ځای څخه راوځي. په حقیقت کې ډېره ښه لاره دا ده چې د ځانخبري او ځان ناخبري تر منځ دروازه بالکل خلاصه پرېږدو.

- که دا دروازه وتړو، په رواني ناروغیو اخته کېږو کنه؟

- هو، (neuroses) یا رواني ناروغ هغه دی چې په ټول توان سره هڅه وکړي ناوړه یا ناخوښ څېزونه له خپل اګاه ضمیر څخه لرې وساتي.

ځينې وخت انسان ډېر کوښښ کوي چې يوه ځانګړې تجربه په ځان کې
پټه کړي او څه دا چې انسان په همدې حال کې له ډاکټر سره مرسته
وکړي ځو په ده کې په پټو زيانونو پوه شي.
- څنګه؟
- فرويډ داسې تګلاره رامنځته کړه چې آزاده تداعي يا (Free Association) يې بلله. په بله وينا ناروغ ته يې وويل، چې آرامه څملي او هر څه يې چې ذهن ته ورځي، ويې وايي- مهمه نه ده چې دا خبرې دې څومره بې فکره، بې ربطه، بې معنا او د شرم وړ وي. مقصد يې دا و، چې هغه څه ته لاره ومومي چې په موږ کې پټ دي او د زيانونو تر څنګ يې وده موندلې، ځکه د ناروغ نارامي د همدې زيانونو له وجې ده. دا ټول له يو بل سره په جوش او خروش کې دي خو ناروغ ترې خبر نه دی.
- هر څومره چې غواړو يو څه هېر کړو، ناپامه لا ډېر د هغه په اړه فکر کوو؟
- بالکل. د همدې لپاره ډېره مهمه ده چې د خپل لاشعور ضمير غږ ته غوږ شو. د فرويډ په وينا، لا شعور ته دننه کېدو لار، زموږ خوبونه او خيالونه دي. د ده تر ټولو مهم کتاب **د خوبونو تعبير**، چې په ۱۹۰۰ز کې خپور شو، په همدې هکله و او په دې کتاب کې ده ښودلې چې زموږ خوبونه اتفاقي نه دي. زموږ لاشعور کوښښ کوي چې د خوبونو له لارې له شعور سره اړيکه ټينګه کړي.
- ادامه ورکړئ.
- فرويډ له ناروغانو سره تر څوکلنې تجربې وروسته- او په ځانګړې توګه د خپلو خوبونو له تحليل وروسته- دې پايلې ته ورسېد چې زموږ خوبونه ټول زموږ د هيلو تحقق دی. ويل يې، دا موضوع په ماشومانو کې په روښانه ليدل کېږي. دوی د آلوبالو، مېوو او ايسکريم خوبويني. خو په لويانو کې، هغه هيلې چې په خوب کې پوره کېږي، دا ډول ښکاره نه وي. علت يې دا دی چې موږ په خوب کې هم هر شي پر ځان روا نه ګڼو او

بیا خان سانسوروو. دا سانسور یا د تکوني میکانیزم، البته په خوب کې د ویښې په پرتله کمزوری دی. خو دومره دی چې په خوب کې هم خپلې ناویلې هیلې، بدلوو.

-او د همدې لپاره خوبونه باید تعبیر شي.

-فروید به ویل، باید د هغه خوب چې سهار یې رایادوو او د حقیقي خوب د مفهوم ترمنځ توپیر وشي. د خوب ذهني انځور ته -یعنې هغه ویډیو یا فلم چې په خوب کې یې وینو- **ښکاره خوب** وایي. د دې ښکاره خوب محتویات یا سناریو تل د مخکې ورځې له جریان څخه اخیستل کېږي. خو خوب ژوره معنا هم لري چې زموږ له خبرتیا څخه پټه ده. فروید دې ته **په خوب کې پټ فکرونه** وایي. دا پټ فکر، چې په حقیقت کې خوب د هغه په اړه دی، کېدای شي د ډېرې مخکې مودې یا د ماشومتوب له وخته سرچینه اخلي.

-نو د خپل خوب د معنا لپاره باید هغه تحلیل کړو.

-هو او د رواني ناروغانو خوب باید ارواپوه تحلیل کړي. خو ډاکټر په یوازې خان نه شي کولی چې خوب تعبیر کړي. د ناروغ مرسته او همکاري یکې اصلي شرط دی. په دې حالت کې ډاکټر د سقراطي مور دنده پر غاړه لري، یعنې یوازې په تعبیر کې مرسته کوي.

-صحیح.

-او فروید د **خوب پټ فکر** بدلېدل په **ښکاره خوب** باندې د خوب جوړوني چاره ونوماوه. کولی شو هغه ته نقاب اېښودنه یا د خوب د واقعي تعبیر نغښتي راز ووایو.

د خوب د تعبیرولو لپاره باید دا چاره رنګه کړو؛ یعنې د هغه له څېرې څخه نقاب لرې کړو او یا یې راز یې را وسپړو، په دې توګه به بریالي شو، چې مضمون یې پیدا کړو.

-یو مثال ویلی شې؟

- د فروید کتاب له مثالونو ډک دی. خو مورږ کولی شو یو ساده خو فرویډي مثال ځانته جوړ کړو. د بېلګې په توګه یو ځوان خوب ويني چې د تره لور يې دوې پوکانۍ ورکړې...
- بیا؟
- بیا، ته کوښښ وکړه چې خوب یې تعبیر کړې.
- امم... ښکاره خوب، څنګه چې مو وویل، ځوان هلک یې د تره له لور څخه دوې پوکانۍ اخلي.
- نور ووایه.
- همدارنګه مو وویل چې سناریو معمولاً د مخکې ورځې له جریان څخه ده: نو داسې ښکاري چې هلک تېره ورځ پارک ته تللی- یا ښايي د پوکانیو انځور يې په کومه ورځپاڼه کې لیدلی وي.
- ښايي، یا کېدای شي یوازې د (پوکانۍ) کلمه يې لیدلې وي، یا داسې شی چې ده ته يې پوکانۍ وريادې کړې وي.
- مګر په خوب کې نغښتی اصلي فکر چې خوب د هغه په هکله دی، څه دی؟
- تعبیر يې باید ته ووايې.
- کېدای شي یوازې دوې پوکانۍ يې غوښتې...
- نه، کار دومره ساده نه دی. سمه ده چې خوب د هیلو د تحقق يو ډول دی. مګر دوې پوکانۍ د یوه ځوان سړي هیله نه شي کېدای، که وي هم، خوب يې نه ويني.
- ګومان کوم چې پوه شوم: ځوان په حقيقت کې خپله د تره لور غواړي او پوکانۍ هم ښايي د نجلۍ د بدن غړي وي.
- هو، دا تعبیر د منلو وړ دی، په ضمن کې دا ښيي چې له خپلو هیلو څخه شرمنده هم دی.
- په بله وینا، زموږ خوبونه په منحرفو لارو ځي؟

- هو. فروید باور درلود، چې خوبونه په بدلو جامو کې تکول شوې هیلې دي. خو کوم څیزونه چې اوس تکوو په وین کې د فروید د زماني د طبابت په پرتله ډېر توپير لري. مګر په خوبونو کې نغښتي مکانیزم اوس هم هماغه دی.

- هو، پام مې دی.

- په ۱۹۲۰مه لسیزه کې ارواپوه فروید، د رواني ناروغانو د درملنې لپاره ډېر ارزښت درلود. د هنر او ادبیاتو لپاره د ده لاشعور نظریه هم ډېره مهمه ده.

- په پایله کې هنرمندانو د خلکو لاشعوري رواني ژوند ته پاملرنه وکړه؟

- بالکل. البته ناویلې پاتې نه شي، مخکې تر دې چې د فروید ارواپوهنه مشهوره شي، دا د نولسمې پېړۍ په وروستۍ لسیزه کې د ادبیاتو ښکاره اړخ شوی و. او دا په خپله موږ ته رابښیي چې په هغه زمانه کې د فروید د ارواپوهنې پیدایښت، په ځانګړې توګه په ۱۸۹۰ لسیزه کې، تصادفي نه و.

- یعنې دا پیدایښت د زماني د روح په غوښتنه و؟

- فروید پخپله ادعا نه درلوده چې د تکوهنې او خپلو پدیده، دفاعي میکانیزمونه یا دلیل راوړل ده کشف کړي؛ خو لومړنی کس و چې د بشر دا تجربې یې په ارواپوهنه کې وکارولې. فروید د خپلو نظریو په ثابوتولو کې د ادبي مثالونو له لارې هم استاد و. مخکې مو وویل، چې د فروید ارواپوهنه له ۱۹۲۰ز لسیزې څخه راپه دېخوا مستقیماً پر هنر او ادبیاتو زیات اغېز پرې ایښي.

- څنګه؟

- شاعرانو او نقاشانو، په ځانګړې توګه سورریالیستانو، کوښښ وکړ، چې په خپلو کارونو کې د لاشعور له خواک کار واخلي.

- سورریالیستان څوک وو؟

- سورریالیستي فرانسوی کلمه ده، چې معنا یې (تر واقعیت لوړ) ده. په ۱۹۲۴ز کال کې اندره برتون خپله سورریالیستي وینا خپره کړه او مدعي شو چې هنر باید له لاشعور څخه سرچینه واخلي. په دې توګه، هنرمند

چې هر څومره ډېر له شعور څخه الهام واخلي او د واقعیت خواته نږدې ورشي، چې حقیقت او خوب پکې محو کېږي. د هنرمند لپاره لازمه ده چې د خپل شعور سانسور مات کړي او کلمو ته اجازه ورکړي چې په ازاده توګه وځلېږي.

- هو، پام مې دی.

- په بل تعبیر، فروید وښوده چې هنر په هر چا کې نغښتی دی. او رویا له نورو شیانو ورهاخوا، هنري اثر دی. هر شپه نوي خوبونه زموږ په تمه دي. فروید د خپلو ناروغانو د خوبونو د تعبیر لپاره مجبور و- لکه څنګه موږ نقاشي یا ادبي متن تفسیروو- له ډېرو سیمبولیکو خبرو څخه تېر شي.

- او موږ هر شپه خوب وینو؟

- نوې څېړنې ښیي، کله چې موږ ویده یو نو کابو شل سلنه وخت یې خوب وینو. یعنې هر شپه یو یا دوه ساعته. که د خوب لیدلو په منځ کې له راویښ شو نو نارامه او عصبي کېږو. یعنې هر کس، که ښځینه وي یا نارینه، د خپل وجود د هنري موقعیت د څرګندولو لپاره ذاتي اړتیا لري. البته زموږ خوبونه پخپله زموږ په هکله دي. موږ هم د فلم جوړوونکي یو، هم د فلم لیکوال او هم ټول نقشونه پخپله لوبوو. څوک چې وایي هنر نه پېژني، په اصل کې خپل ځان سم نه پېژني.

- پوهېږم.

- فروید د انسان د ذهن جالب شواهد وړاندې کړل. د ناروغانو د درملنې تر څوکلنې تجربې وروسته داده شو، چې موږ هر هغه څه چې وینو یا تجربه کوو، د خپل ضمیر په ژورو کې یې ساتو. او ټول دا تاثرات کولی شو بېرته صحنې ته راولو. کله چې مو حافظه کار نه کوي، کله چې وایو، موضوع مې د ژبې پر سر ده او لږ شیبه وروسته، یودمې مو په یاد راځي، په حقیقت کې د هغه څه په هکله خبرې کوو چې زموږ په ناخوداګاه کې پټ دي او ناڅاپه د خوداګاه ضمیر له نیم کښه وره څخه دننه خوځېږي.

- او کله هم تر څه ځنډ وروسته مو رایادېږي.

- دا ستونزه ټولو هنرمندانو لرلې ده. وروسته تر څه مودې فکره ټول ورونه او دروازې خلاصېږي، ټول شيان پخپله بهر راوځي. کومې کلمې او انګېرنې چې غواړو يې، مومو يې او دا هغه وخت کېږي چې له خوداګاه ځخه سرپوښ ايسته شي. سوفي، دې ته **الهام** هم ويلی شو. ناڅاپه داسې احساسوې، لکه څه چې انځوروې يا يې ليکې، له بهرنی منبعې ځخه يې چې سرچينه اخيستې وي.

- بايد حيراوونکی احساس وي.

- خو تا به ارو مرو دا تجربه کړې وي. دا الهام کله په ډېرو ستړو ماشومانو کې هم ليدلی شو. دوی د ډېرې ستړيا له وجې بالکل ويښ ښکاري خو ناڅاپه داسې داستان يا لغتونه وايي چې تر اوسه يې لا زده هم نه وي، يا دا چې زده يې وي خو دا کلمې يا خبرې د دوی په شعور کې پټې وي او دا چې اوس کوم سانسور يا احتياط يې مخه نه نيسي- نو ځان راښکاروي. د هنرمند لپاره مهمه ده، چې عقل او انديښنې ته اجازه ورنه کړي چې د لاشعور بيان مخه يې ونيسي- د مطلب د روښانولو لپاره غواړې يو داستان درته ووايم؟

- هو.

- خو ډېر جدي او غمېګنه داستان دی.

- خير.

- وو نه وو، د خدای کړه و. يوه ځنځه (هزار پا) وه، چې سره له دومره ډېرو پښو يې، بيا هم ډېره عجيبه نڅېده. دا ځنځه به چې هر وخت نڅېده نو د ځنګله ټول ژوي به يې ليدو ته راتلل او پرته له کېښپه، ټولو به د دې ښکلې نڅا ډېره خوښوله.

- د کېښپ به بخيلي راتله.

- کېښپ له ځانه سره فکر وکړ، چې څنګه کولی شي د ځنځې د نڅا مخه ونيسي-؟ مخامخ يې نه شوای ويلی چې د هغې نڅا يې نه خوښېږي همدارنګه دا يې هم نه شوای ويلی چې دی تر ځنځې ښه نڅېدی شي،

که يې ويلي هم وای، نو څنګه به يې پر خبرې باور کړی و؟ د همدې لپاره يې شيطاني شروع کړه.
- څه يې وکړل؟
- کېناست او خنځې ته يې ليک وليکه:
*(ای ښې جوړې خنځې! زه ستاسې د نخا ستايونکی يم. زه مې غواړې پوه شم چې تاسو د نخا پر مهال کوم ډول فن کاروئ. آيا لومړی د خپلې چپې خوا ۲۸ شمېره پښه پورته کوئ او بيا د ښي خوا ۳۹ شمېره پښه؟ يا دا چې لومړی د خپلې ښې خوا پر ۱۱۷ شمېرې پښې پيل کوئ او وروسته د چپې خوا ۹۴۴ شمېره پښه پورته کوئ؟ ستاسو ځواب ته په ډېرې بې صبرۍ په تمه يم. ستاسو رښتيني ملګری، کېشپ).*
- څومره منافق.
- خنځه چې ليک لولي نو بې واره په فکر کې ډوبه شي، د نخا پر مهال واقعاً څه کوي. کومه پښه لومړی پورته کوي؟ کومه وروسته؟ پوهېږې په پای کې څه وشول؟
- خنځه بيا هېڅ وخت ونه نځېده؟
- بالکل. کوم تخيل چې د عقل په بند کې راشي نو پايله به يې تل همداسې وي.
- دردونکې کيسه وه.
- هنرمند بايد څه چې په شعور کې لري، بې پروا يې رابهر کړي. سورريالېستانو همدا خانته بهانه کړه او داسې حالت يې غوره کړ لکه هر څه چې په خپله تر سره کېږي. سپين کاغذ به يې تر مخې اېښوده او پرله پسې به يې ليکل کول، بې له دې چې د خپلې ليکنې په هکله فکر وکړي. دې ته يې اتوماتيک ليکل وويل. دا اصطلاح په اصل کې د ارواح حاضرولو د مکتب وه. ادعا دا وه، چې که د چا روح، مړه شوې وي، هغه ته قلم لاربښوونه کوي. زه به د دې ډول شيانو په هکله سبا نورې خبرې هم درسره وکړم.

-زه بې اوریدو ته لېواله وم.

-سوررياليستي هنرمند هم يو ډول واسطه- وسيله يا اړيکه- دی: دی پخپله د خان ناخبرۍ واسطه دی او چاته معلومه ده چې د پيدايښت په هره چاره کې د لاشعور عنصر نه وي. له پيدايښت څخه مقصد څه دی؟

-زه نه پوهيږم. آيا دا نه دی چې انسان يو نوی شی راپيدا کړي؟

-هم ده. او په دې کې د تخيل او تعقل تر منځ کوچنی عکس العمل پېښيږي، خو په ډېرو مواردو کې عقل پر خيال غلبه کوي او ستونزې رامنځته کوي، ځکه پرته له تخيل نه نوی شی نه شو پيدا کولی. زما په نظر د تخيل قوه ډارويني نظام ته ورته ده.

-متاسفانه، زه پوه نه شوم.

-ډاروين وايي، د طبيعت ميوتيشنونه په پرله پسې توګه يو په بل پسې پېښيږي، خو يوازې معدوده برخه يې ګټوره تماميږي. يعنې يوه معدوده برخه يې د ژوندانه حق پيدا کوي.

-نه؟

-همدا حالت هغه وخت هم پېښيږي چې د نوو افکارو الهام پر موږ کيږي. فکر ميوتيشنونه که د خان سانسوررولو مخه ونيسي-نو زموږ په شعور کې يو په بل پسې پېښيږي. خو موږ د دغو فکرونو محدوده برخه کاروو، ځکه عقل تل په دې منځ کې موجود وي. د عقل له حياتي نقش څخه هم بايد سترګې پټې نه کړو. که خپل ورځنی ښکار پر مېز کېږدو نو طبعي ده چې هغه يو به يې انتخابوو چې تر ټولو غوره دی.

-بده تشبيه نه وه.

-تصور يې وکړه، که موږ هر هغه څه ويل چې په اړه يې فکر کوو نو نړۍ به زموږ د وسوسه ګرو فکرونو تر بار لاندې شوې وی او هيڅ کوم انتخاب به نه کېدی.

-نو عقل پرېکړه کوي چې کوم فکر انتخاب کړو؟

- هو. فکر نه کوي؟ کېدای شي تخیل یو نوی شی رامنځته کړي، مګر د انتخاب عمل تخیل نه شي ترسره کولی. هېڅ هنري اثر پرته له ترکیب بندي یا (composition) نه شي رامنځته کېدای. د تخیل او تعقل، یا ذهن هم تامل، تر منځ حیرانوونکی عکس العمل منځته راځي. نو د پیدایښت په چاره کې تل د بخت او تصادف عنصر-موجود دی. تر هغه چې وزې خوشې نه کړې، نه شي څرېدی.

آلبرتو غلی کېناست او بهر ته یې کتل. په دې وخت کې د سوفي سترګې ناڅاپه د سیند پر غاړه د والټ ډیسني په بېلابېلو کارټوني لوبغاړو ولګېدې.

چغه یې کړه: وګوره آلبرتو! ګوفي سپی دی او هغه اردکه دانال داک او وریرونه یې... هغه هم میکي ماوس او...

آلبرتو نجلۍ ته مخ واړوه او ویې ویل: هو لورې، دا ډېر خپه کوونکې دي.

- مقصد مو څه دی؟

- موږ دلته ناست یو او د قومندان د تخیل لوبه ګرځېدلي شو. مګر هو، ګناه مې خپله ده. ما پخپله د ازاد فکر تداعي خبره پیل کړه.

- بې ځایه ځان مه ملامتوئ...

- غوښتل مې د تخیل په هکله یو څه ووایم، چې موږ فیلسوفانو ته څومره ارزښت لري. وایو، د دې لپاره چې نوي فکرونه زموږ ذهن ته لاره ومومي، باید د څرګندولو زړه ورتیا ولرو او د خپل فکر مخه ونه نیسو... چې دې مسخره خبرو مې ذهن ونیو او نور نو زیاتی کوي.

- نو له ذهنه یې لرې کړئ.

- غوښتل مې د تامل او بیا فکر کولو په هکله خبرې وکړم، خو ته د ده ځانښودنې ته وګوره. شرم نه لري.

- ښه، نو پېغور ورکوئ؟

- هغه پېغور راکوي، زه نه. بیا هم زه یوه خوښې لرم او ټوله نقشه مې پر همدې اساس عملي کوم.

- زه خو ستاسو پر خبرو هېڅ نه پوهېږم.
- مخکې مو د خوب په هکله خبرې کولې، دا پخپله پېغور او طنز دی.
څکه موږ هم د قومندان په خوبونو کې انځورونه نه یو؟
- آه!!
- خو سره له دې، ده بیا هم یو شی نه دي حساب کړي.
- څه شی؟
- قومندان که څه هم په نارامۍ سره له خپل خوبه یو څه خبر دی. پر هر هغه څه چې موږ یې وایو یا یې کوو، پوهېږي، بالکل هماغه ډول چې د خوب لیدونکی په خپل ذهن کې د خوبونو او خیالونو ښکاره اړخ لري. سره ده چې دی دا هر څه لیکي خو که زموږ ټولې خبرې هم په یاد ولري بیا هم دومره هوښیار نه دی.

- مقصد مو څه دی؟
- سوفي! قومندان د خپل خیال او خوب له پټو افکارو خبر نه دی، له ده هېرېږي، څه چې لیکي یو خوب دی خو په بدلو کالیو کې.
- خبرې مو ډېرې عجیبې و غریبې دي.
- هو، قومندان هم همداسې فکر کوي. څکه پخپله هم د خپل خوب په اصلي معنا نه پوهېږي. د دې لپاره باید شکر وکړو. پام دې دی چې دا مطلب لږ څه زموږ لاس خلاصوي. دا فرصت باید غنیمت وشمېرو. د اوبو د موږکانو په څېر چې په لمرینه ورځ له خپلو سوریو راوځي. موږ به هم ډېر ژر د هغه له په ختو لړلي شعور وتښتو.
- فکر کوې وبه تښتو شو؟
- بله چاره نه لرو. زه به تر دوو نورو ورځو پورې نوې لار ستا په مخ کې ایږدم. هغه وخت به قومندان خبر هم نه وي، چې موږکان چېرې دي او له کومه ځایه سر راباسي.

- په هر صورت، مور که د قومندان د خوب انځوره وو هم، بیا زه د یوې مور لور یم، ساعت پنځه بجې دي، باید کورته لاړه شم او مېلمستیا ته تیاری ونیسم.

- کولی شې په لاره کې زما لپاره یو کار وکړې؟

- څه؟

- کوښښ وکړه چې پر لار د قومندان پام ډېر ځان ته جلب کړې. داسې کار وکړه چې په ټوله لاره کې د قومندان نظر پر تا وي. کله چې کورته ورسېدې بیا هم برله پسې د ده په هکله فکر کوه. نو دی به هم ناچاره وي چې فکر یې له تاسره وي.

- ښه نو څه؟

- نو هغه وخت زه کولی شم په چټکۍ سره پر خپلې نقشې کار وکړم. غواړم ناڅاپه د قومندان د لاشعور ژورو ته ننوځم. بیا به زه او ته بېل ځل سره ووینو، زه به همالته وم.

# زموږ خپله زمانه

## ...انسان په آزادۍ محکوم دی...

نیمې شپې ته پنځه دقیقې پاتې وې. هیلده پرته وه، چت ته یې کتل. فکر یې په آزاده تداعي کې و. هر ځل به یې چې د افکارو لړۍ پرې شوه نو له ځانه یې پوښتل، ولې؟

آخر څه شي غوښتل دا وځیږي؟

که یې هر ډول سانسور له ځانه لېرې کولی شوای، نو داسې به وی، لکه په ویښه چې خوب ویني. له دې فکره لږ څه وډاره شوه.

هر څومره چې یې ځان آرامه کړ او ډول ډول فکرونو او تصوراتو ته یې په ذهن کې لاره ورکړه؛ بیا یې هم ځان د قومندان په جونګړه کې، د سیند تر څنګ، د ځنګله په منځ کې احساس کړ.

د آلبرتو نقشه څه وه؟ البته د هیلدې پلار دا نقشه ایسته چې آلبرتو څه نقشه وباسي؟ شاید غوښتل یې چې خپلې مخې ته یې پرېږدي څو د کار پایله پخپله ده ته هم معلومه نه وي.

اوس نو د کتاب چندان پاڼې نه وې پاتې. ښه به وي چې د پای پاڼې ولولي؟ نه، دا تقلب دی. تر دې هاخوا هیلده ډاډه وه، کوم څه چې باید پېښ شي، تر اوسه نه دي پېښ شوي.

دا پخپله عجیب فکر نه و؟ لیکنې یې تر مخ ایښې وې او پلار یې نه شوی کولی چې کوم شی پکې ور زیات کړي. مګر په دې شرط چې آلبرتو شخصاً په کوم کار لاس پورې کړي، د اټکل خلاف کار...

په هر حال، هیلدې هم خپل پلار ته څو نه اټکل کېدونکي شیان په پام کې نیولي وو. د هغه شیانو کنټرولول نو د پلار په واک کې نه دي. خو سل په سلو د دې په واک کې دي؟ پوهاوی څه دی؟ آیا د نړۍ له لویو

معماوو څخه يوه همدا نه ده؟ حافظه څه ده؟ كوم شي سبب كيږي چې
موږ هغه شيان چې ليدلي يا تجربه كړي مو دي، په ياد يې راوړو؟
كوم ميكانيزم د دې لامل ګرځي چې موږ هره شپه خارق العاده خوبونه
ووينو؟ هيلدې سترګې كلكې پټې كړې، بيا به يې خلاصې كړې او بيا
به يې چټ نه كتل، اخر يې هېر شول چې سترګې خلاصې كړي. ويده
شوه.
د سيند مرغانو شور او چيغو له خوبه راويښه كړه، له كټ راښكته شوه.
د تل په شان يې د كوټې پر غولي ګامونه واخيستل، د كړكۍ تر څنګ
ودرېده او د اوسو پر څپو يې نظر واچاوه. دا يې عادت ګرځېدلی و.
ناڅاپه يې د زرهاوو رنګونو چاودنه په سر كې احساس كړه. راياد يې
شول چې تېره شپه يې عجيبه خوب ليدلی و. له روښانو او ښادو رنګونو
او ځېرو څخه ډک خوب...
خوب يې ليدلی و چې پلار يې له لبنانه بېرته راغلی، ټول خوب يې د
سوفي د خوب پاتې برخه و چې خپله غاړه کې يې د كيښتيو له بندر
سره پيدا كړې. هيلده- د سوفي په څېر- د بندر تر څنګ ناسته وه. په
دې وخت كې يې يو ډېر ښكلی غږ تر غوږ شو: (زما نوم سوفي دی)
هيلدې له خپل ځايه ټكان ونه خوړ، آرامه او غلې ناسته وه. غوښتل يې
يوه شي، چې غږ له كومه ځايه راځي. غږ ډېر تيټ و، لكه كومه څېره
چې خبرې كوي. نورو خبرو ته يې هم دوام وركړ، (ته هم كڼه يې، هم
ړنده). په همدې وخت كې يې پلار د ملګرو ملتونو په يونيفورم كې باغ
ته رانوځي او چيغه كوي (هيلدې!)
هيلده د پلار خواته منډې وهي او لاسونه يې تر غاړې تاووي او خوب
يې همدلته پای ته رسيږي.
د ارنولف اوورلنډ د شعر څو بيتونه يې ذهن ته راغلل:
*يوه شپه له عجيبه خوبه راويښ شوم*

*او يو غر، لکه تر ځمکه لاندې لرې کوم نهر*
*چې له ما سره خبرې کوي*
*پاڅېدم او ومې پوښتل:*
*له ما څه غواړې!؟*
لاهم د کړکۍ تر څنګ ولاړه وه، چې مور يې کوټې ته راننوته.
- سلام، ويښه يې؟
- بېخيله هم نه پوهېږم.
- زه به د تل په شان د مازديګر څلور بجو شاوخوا ته بېرته کورته راشم.
- سمه ده مورې.
- د رخصتۍ ورځ دې خوشاله هيلدې!
- تاته هم خوشاله ورځ مورې!
مور يې ووته، د وره د پورې کېدو غږ يې واورېد، بيا له ليکنو سره خپل کټ ته ولاړه.
- غواړم ناڅاپه د قومندان د لاشعور ژور ته ننوځم. غواړم چې ما او تا بل ځل يو بل وينو، زه به همالته وم.
هو، تر دې ځايه مې لوستې و.
هيلدې بيا لوستل پيل کړل، د ښي لاس په ګوتو يې د پاڼې پاڼو شمېر حسولې شواى. نور نو چندان مخونه نه وو پاتې.

سوفي چې د قومندان له جونګړې راووته، بيا يې هم د والټ ډيسني ځينې څېرې د اوبو تر څنګ ليدې، خو همدا چې ور نږدې کېده له سترګو پناه کېدې او کيښتۍ ته چې ورسېده نور يې نو هېڅ اثر نه و.
د پارو وهلو پر وخت يې په خوله رقم رقم پيښې کولې. بيا يې کيښتۍ له اوبو وايسته او په وچه کې يې ودروله. لاسونه يې په هوا کې هاخوا

دېخوا وښورول. غوږونو يې د قومندان پام ځانته واړاوه، چې آلبرتو په جونګړه کې پرته له مزاحمته خپل کار وکړي.
پر لاره چې روانه وه، نڅېده او ښکته پورته الوته. بيا يې هڅه وکړه چې د کوکړي نانځکي غونډې پر لار لاړه شي او د دې لپاره چې قومندان پر ځان مصروف کړي، سندرې ويل يې پيل کړل. يوه شيبه ارامه ودرېده او د آلبرتو پر نقشه يې فکر وکړ، خو ژر يې پام شو، شعور يې دومره نارامه شو چې ونې ته وخته.
سوفي چې څومره کولی شوی پر ونه پورته وخته. د ونې څوکې ته چې ورسېده يوه شوه چې نور نو بېرته نه شي ښکته کېدای: پرېکړه يې وکړه چې لږ صبر وکړي او بيا د ښکته کېدو کوښښ وکړي. خو هلته بايد کراره کښېني نه ني. ځکه کېدای شي د قومندان حوصله پای ته ورسېږي او بېرته يې پام د آلبرتو خوانه شي. سوفي په هوا کې لاسونه ښورول. څو ځله يې د چرګ غږ وايست او بيا يې قوقو قوقو پيل کړل.
پخپل پنځلس کلن عمر کې يې دا لومړی ځل و چې دا ډول غږونه يې ايستل، مګر دومره بد هم نه و. بيا يې هڅه وکړه چې له ونې راښکته شي، خو په رښتيا راګېر وه. ناڅاپه يو لوی مرغه (غاز) پر څانګه کېناست. سوفي د دومره عجيبو غريبو شيانو تر ليدو وروسته نورنو حيرانه نه شوه، چې ويې ليدل مرغه خوله خلاصه کړه او خبرې يې وکړې.
مرغه وويل: زما نوم مورټن دی. په اصل کې زه اهلي يم خو د لبنان له وحشي مرغانو سره دلته راغلی يم. فکر کوم ته مرستې ته اړتيا لرې چې له ونې ښکته شې.
سوفي وويل: ته دومره کوچنی يې چې له ما سره مرسته نه شې کولی.
- اغلې! په پرېکړه کې بېړه مه کوه. زه کوچنی نه يم، ته لږ څه لويه يې.
- بيا هم يوه خبره ده.

- ما ستا په عمر يو کوچنی کليوال هلک په شا کړی او ټول سويډن مې ورښودلی دی. د هغه هلک نوم نيلس هولګرسن و.
- زه پنځلس کلنه يم.
- نيلس څوارلس کلن و.
- نيلس چې څورلس کلن و، نو يو کال تو پير په وزن کې هم توپير نه لري.
- تا هغه څنګه پورته کړی شوی؟
- يوه خپېره مې ورکړه، بې هوښه شو، چې بېرته په هوښ راغی نو د بټې ګوتې په اندازه شوی و.
- نو که ماته هم يوه خپېره راکړئ بده به نه وي. تر ابده خو نه شم کولی چې دلته کېنم او په شنبې فلسفي مېلمستيا هم لرم.
- څومره جالب! نو ارو مرو دا هم يو فلسفي کتاب دی. ما او نيلس هولګرسن چې په سويډن کې الوتو نو د ورملنډ په موربکا کې پر ځمکه کېناستو. نيلس د بوډۍ ښځې ليدو ته ورغی، څکه غوښتل يې کتاب يې رښتيا او ګټه ور وي. کله چې بوډۍ د نيلس کيسه واورېده نو پرېکړه يې وکړه چې د هغو ټولو شيانو په هکله کتاب وليکي، چې هلک د مرغه پر شا د الوت پر وخت ليدلي و.
- عجب!
- که رښتيا ووايم ډېره خندوونکې وه. څکه موږ هم په هغه کتاب کې وو.
سوفي داسې حس کړه لکه پر مخ چې خپېړه خوري. شېبه وروسته يې وليدل چې د يوې ګوتې په اندازه شوې. ونه د ځنګل او مرغه د لوی آس په څېر شوی و.
مرغه وويل: ځه ته ګورې، راشه!

سوفي پر ځانګه را وړاندې شوه او د مرغه پر څنګ کېناسته. د مرغه وزر پوست و. مګر نجلۍ دومره وړه شوې وه، پر ځای د دې چې وزر يې وتخنوي، په وزرو کې دننه ننوته.

همدا چې کراره کېناسته نو مرغه د ونو له سره والوت. سوفۍ ښکته د قومندان جونګړه او کوچنۍ سپند ليدل. آلبرتو د هغه دننه ناست دی او پټه نقشه جوړه کړي.

مرغه خو ځلې وزرونه ووهل او ويې ويل: نن همدومره لږ سيل بس دی. تر هماغه ونه لاندې، چې سوفي پکې ختلې وه، پر ځمکه کېناست.

سوفي د مرغه له څټه راښکته شوه، له اغزيو يې توپ کړل او کېناسته، په حيرانۍ يې ځانته وکتل چې بېرته د پخوا په شان شوې ده. مرغه تر چاپېر تاو شو.

سوفي وويل: له مرستې مو ډېره مننه.

- د مننې وړ نه ده. ښه، تا ويل دا فلسفي کتاب دی؟

- ما نه دي ويلي، تا وويل.

- څه فرق کوي، بيا هم يوه خبره ده. که زما په لاس وی، لکه څنګه چې مې نيلس پر ټول سويډن وګرځاوه، ته مې پر ټول فلسفي تاريخ ګرځولې. موږ کولی شوای چې ميلتوس او آتن، اورشليم او سکندريه، روم او فلورانس، لندن او پاريس ينا او هايدلبرګ، برلين او کپنهاګن... ته ولاړ شو.

- مننه، همدومره بس دی.

- مګر پر پېړيو الوتل، هغه هم د تخيلي مرغه لپاره، اسانه کار نه دی. د سويډن پر هسکو تيټو الوت خو ځله اسانه دی.

مرغه دا وويل، څو ګامه يې واخيستل، منډه يې کړه او والوت.

سوفي ستړې وه، خو شپې وروسته له پيچلي لارې باغ ته ننوته. له خانه سره يې فکر وکړ چې آلبرتو به د دې له انحرافي کارونو ډېر خوشاله وي. امکان نه لري چې قومندان دې په تېر يوه ساعت کې د آلبرتو په اړه فکر کړی وي، خو که دوه شخصيتونه ونه لري.

سوفي نوې کور ته ننوتې وه، چې مور يې له کاره راغله؛ دا ورته کافي وو، ځکه مجبوره نه وه چې مور ته توضيح ورکړي چې څنګه يوه اهلي مرغه د وحشي ونې له سره وزغورله.

د شپې ډوډۍ يې چې وخوړه، د مېلمستيا لپاره يې ځينې تيارۍ ونيوې. څلور متره تخته، د هغې پايې او سرمېزي يې ښکته کړ. په باغ کې يې لوی مېز جوړ کړ. د نقشې له مخې يې مېز د مېوو تر ونه لاندې کېښود. وروستی ځل يې چې له دې مېز او پايو کار اخيستی و د سوفي د مور او پلار د واده لسمه کليزه وه. سوفي هغه وخت اته کلنه، خو بيا يې هم په ازاده فضا کې له دوستانو او خپلوانو سره هغه مېلمستيا ښه سمه په ياد وه. د هوا وړاندوينه هم عالي وه. د سوفي تر کليزې د يوې ورځې مخکې باران وروسته، بيا يو څاڅکی هم نه و ورېدلی. نو دواړو پرېکړه وکړه چې د مېز جوړول او د مېلمستيا نور تيارۍ د شنبې سهار ته پرېږدي.

په هغه شپه يې دوه ډوله خواړه هم پاخه کړل، ويلي يې وو چې د مېلمستيا لپاره بايد د چرګ کباب او سلاد جوړ کړي او ورسره بې الکوله نوشابې.

سوفي انديښنه درلوده چې د ټولګي هلکان له ځانه سره د وربشو اوبو (بير) رانه وړي. سوفي له سردردۍ ډېره وېرېده. چې ويده کېده، مور يې يو ځل بيا وپوښتل: آلبرتو خو به حتماً راځي؟

- خود راځي، ان ژمنه يې کړې چې فلسفي ننداره به هم وړاندې کړي.

- فلسفي ننداره نو څه ده؟

- هېڅ نـه پـوهېږم... ښـه. کـه جـادوګر وي ښـايي کـوم مـداريتوب وکـړي، ښايي له خولۍ يې سپينه سويه را وباسي.
- څه بيا ووايه؟
- خـو دا چې فيلسـوف دی نـو ګومـان کـوم چـې فلسـفي ننداره بـه وړانـدې کـړي. ولـې؟ زمـوږ مېلمسـتيا فلسـفي مېلمسـتيا نـه ده؟ تـه پخپلـه څنګـه؟ نـه غواړې کوم کار وکړې؟
- کوم يې.
- غواړې وينا وکړې؟
- اوس يې نه وايم. شپه په خير سوفي.
سبا سـهار وختـي د مـور پـه غـږ لـه خوبـه راويښـه شـوه. مور يـې مخکـې تـر دې چـې کـار تـه ولاړه شي، د سـوفي پـر سر پـورې ولاړه وه چـې خـدای پاماني ورته ووايي.
د وړو شيانو ليست يې ورکـړ چـې لـه بـازاره يـې واخلي. همـدا چـې مور له کوره ووته بهر کېښوده، ټيلفون وشرنګېد. آلبرتو و.
آلبرتو پوهېده چې سوفي په کوم وخت کور کې يوازې ده.
- نقشه په څه حال کې ده؟
- هېڅ! يوه کلمه يې په هکله مه وايه، هېڅ فکر هم پرې مه کوه.
- ګومان کوم پرون مې يې تر يوه حده پام ځانته را اړولی و.
- افرين!
- د فلسفې درس خلاص شو؟
- د همـدې لپـاره مـې درتـه زنـګ وواهـه. مـوږ خپلـې پيـړۍ تـه رسـېدلي يـو. تـر دې وروسـته تـه پخپلـه بايـد خپلـه لاره پيـدا کـړې شـې. پخـواني پړاوونـه ډېـر مهـم وو. فکـر کـوم ښـه بـه وي چـې يـو بـل ووينـو او زمـوږ د خپلـې زمانې په هکله لنډ وغږېږو.
- زه بايد ښار ته لاړه شم.

- ځومره ښه. ومې ويل چې زموږ د خپلې زمانې په هکله خبرې کوو.
- ښه نو بيا؟
- نو په ښار کې به زموږ ليدل ډېر ښه او عملي وي.
- ستاسو کورته درشم؟
- نه، نه. دلته مه راځه. دا ځای ډېر ګډوډ دی. زه په ټولو ځايونو او سوريو ګرځېدلی يم چې کوم چېرې يې مايکروفون نه وي پټ کړی.
- عجب.
- د ښار په ميدان کې د قهوې څښلو نوی دوکان جوړ شوی. پيير کافي. هغه ځای دې ليدلی؟
- هو، ليدلی مې دی. په څو بجو هلته واوسم؟
- دولس بجې راتلی شې؟
- هو. خدای پامان.
يو دوه دقيقې له دولسو تېرې وې، چې سوفي د قهوې دوکان ته ننوته. دا ځای په مود برابر و، کوچني ګرد مېزونه، توري څوکی، په ګېلاسونو کې رنګارنګ نوشابې، فرانسوي ډوډۍ، ساندويچ...
دوکان د ننه دومره لوی نه و، سوفي شاوخوا وکتل، ژر پوه شوه چې آلبرټو تر اوسه نه دی راغلی. ګردو مېزونو ته ډېر کسان ناست وو، خو يو يې هم آلبرټو نه و.
سوفي تر اوسه کله د قهوې څښلو دوکان ته يوازې نه وه راغلې، څه بايد وکړي؟ بېرته ووځي، لږ شېبه وروسته راشي او وګوري چې آلبرټو راغلی که نه؟
ځان ته يې جرائت ورکړ، يو ګېلاس چای او تروش ليمو يې را وغوښتل او يوه تش مېز ته کېناسته. سترګې يې وره ته نيولې وې. خلک تلل، راتلل خو د آلبرټو درک نه و.

دربغــه لــه څــان سره يــې ورڅېرانــه راوړې واى. څــو دقيقــې يــې شــاوخوا وکتــل. خينــو کســانو بېرتــه سوفي تــه وکتــل. يــوه شېبه يــې داســې احســاس کړه لکه څوانه ښځه چې وي. سوفي پنځلس کلنه وه. خو فکر يې کاوه لکه اوولس يا شپاړس نيم کلنه چې وي.

لـه څانـه يـې وپوښـتل، دوى د هسـتى او ژونـد پـه هکلـه څـه فکـر کـوي؟ لـه ظـاهره خـو يـې داسـې ښـکاري لکـه هسـې چـې راغـلي وي او تصادفاً دلتـه ناسـت وي. تولـو لـه يـو بـل سره خـبرې کـولې. سر او لاسـونه يـې خوځـول، خو د يوه خبره هم ښايي مهمه نه وه.

ناڅاپه کرکه گور ور په ياد شـو، چـې ويـل يـې، خلـک تـر هـر څـه لـه خبرو کولــو ډېــر ښــه پېژنــدل کېــږي. ايــا دوى تــول پــه حسـي- مرحلــه کــې نــه اوسېدل؟ له وجودي نظره کوم شى ورته مهم و؟

آلبرتـو پـه خپلـو لومړنيـو ليکونـو کـې لـيکلي و، چـې ماشـومان او فيلسـوفان يـو شـان دي. د سـوفي بيا پـام شـو چـې لـه لويـېدو وېرېـږي. دا هـم د سـوبي د وېښتانو لـه منځـه- د نـړۍ د مـداري لـه خـولى د سـپينې سـوبې لـه وېښـتانو- راوتلې.

سـتركې يـې وره تـه نيـولې وې، ناڅاپـه آلبرتـو راننـوت، سره لـه دې چـې اوړى و بيـا يـې هـم تـوره قـره قـلي پـر سر وه او اوږد وړيـن کـوټ يـې اغوسـتى و. پـه منـډه نجلـى تـه ور نـږدې شـو. د خلکـو تـر منـځ لـه آلبرتـو سره کېناستل سوفي ته ډېر عجيب احساس ورکړ.

- له دولسو نه پنځلس تېرې دي.

- د اکاډميک ساعت پنځلس دقيقې. څه شى خورې؟

کېناست او د نجلى سترگو ته خير شو، سوفي اوږې پورته واچولې.

- هو، يو ساندويچ به ښه وي

- آلبرتــو ولاړ او لـــه يـــوې پيــالې قهــوې او دوو ســـاندويچو، فرانســـوي ډوډۍ، پنير او غوښې سره بېرته راغى.

- ګران وو؟
- نه سوفي. مفت وو لکه اوبه څښل.
- د ناوخته راتګ لپاره دې کوم پلمه لرې؟
- پلمه اړينه نه ده، پخپله ناوخته راغلم، اوس يې درته وايم.
- له ساندويچه يې څو کپونه وکړل، بيا يې وويل:
- اوس به خپله پېرۍ پيل کړو.
- له فلسفي نظره زموږ په زمانه کې د يادونې وړ کوم شيان پېښ شوي؟
- ډېر زيات... هرې خواته چې وګورې يو خوځښت شته او له ډېرې مهمې خوا پيل کوو. د وجود د اصالت يا اګزيستانيساليزم له لوري به يې پيل کړو. دا د څو فلسفي جريانو ټوليزه اصطلاح ده، چې د انسان وجود ته تر ټولو ډېر ارزښت ورکوي. موږ به معمولاً د شلمې پېړۍ د وجودي اصالت د فلسفې په اړه خبرې کوو. ځينې دغو وجودي فيلسوفانو يا اګزيستانيسياتو خپله نظريه نه يوازې د کرکه ګور د افکارو پر بنسټ درولې، بلکې د هېګل او مارکس د افکارو پر بنسټونو يې هم ودانه کړې ده.
- رښتيا؟
- بل مهم فيلسوف چې پر شلمه پېړۍ يې پرېمانه نفوذ درلود، آلماني فريدريش نېچه و، چې له ۱۸۴۴ز تر ۱۹۰۰ پورې يې ژوند وکړ. هغه هم د د هېګل د فلسفې او هم د آلمان د تاريخپالنې پر وړاندې پاڅېد. نېچه وړانديز وکړ چې پر تاريخ پورې، تر څنګ يې هغه څه ته چې نېچې د مريتوب اخلاق ويل، د زړه ترلو پر ځای بايد په ژوند پورې زړه وتړو. نېچه د ټولو ارزښتونو بدلولو غوښتونکی شو، چې په دې توګه د لارې کمزوري کسان د ژوند د پياوړي ځواک قرباني نه شي. د نېچه په وينا، مسيحيت او دوديزې فلسفې له واقعي نړۍ مخ اړولی او [افلاکو] يا [د مثال عالم] ته يې مخه کړې ده. له دې امله کوم څه چې

تر اوسه واقعي نړۍ گڼل شوې، په حقیقت کې یوازې نړۍ ته ورته ده.
نېچه ویل: له نړۍ سره رښتیني واوسه او د هغو کسانو خبرو ته چې اسماني وعدې درکوي غوږ مه نیسه.

-نور څه؟

-بل سړی چې د کرکه گور او نېچه تر اغېز لاندې راغی، وجودي فیلسوف، آلماني مارتین هایدگر و. خو زه غواړم چې ډېره پاملرنه مو فرانسوي وجودي فیلسوف ژان پل سارتر ته، چې له ۱۹۰۵ز تر ۱۹۸۰ز ژوند وکړ، واړوو.

سارتر ډېرو خلکو ته د وجودي اصالت فلسفې خلانده ستوری و. د ده وجودي فلسفه په ۱۹۴۰ز لسیزه، یعنې تر جگړې وروسته ډېره مشهوره شوه. سارتر په راتلونکو کلونو کې د فرانسې له مارکسیستي خوځښت سره همغږی شو، خو هېڅکله له هېڅ کوم حزب سره یو ځای نه شو.

- داسې خو به نه وي چې زه مو هم د هغه لپاره دې فرانسوي د قهوې ځنبلو دوکان ته راغوښتې یم؟

- که رښتیا ووایم، تصادفي هم نه وه. سارتر هم خپل ډېر وخت په قهوه خانو کې تېراوه، چې د خپل ټول عمر ملگرې سیمون دوبووار یې هم د قهوې په دوکان کې ولیده. دا فیلسوفه مېرمن اگزیستانسیالیسته وه.

- فیلسوفه مېرمن!؟

- هو.

- نو بشریت ورو ورو متمدن کېږي، ځومره ښه.

- خو باید هېر دې نه شي چې د بشر-ډېری ستونزې زموږ په خپله زمانه کې رامنځته شوې.

- تاسو غوښتل د وجود اصالت د فلسفې په هکله خبرې وکړئ.

- سارتر ویل، وجود پالنه، انسان پالنه ده. مقصد یې دا و، چې د اگزیستانسیالیست فلسفه انسان ته لومړیتوب ورکوي. دا هم باید ووایو

چې د سارتر له نظره انسانیت د بشر-تر وضعې ډېر مایوسوونکی و، تر هغه انسانیته چې د رنسانس په دوره کې مو ولید.
- علت یې څه و؟
- کرکه ګور او د دې پېړۍ څو نور وجودي فیلسوفان مسیحیان وو، حال دا چې د سارتر د اتکا ټکی هغه څه وو چې ورته الحادي وجودي فلسفه ویلی شو.
د سارتر فلسفه [د خدای مرګ] په حال کې د انسان د موقعیت په هکله بې امانه تحلیل دی. البته [خدای مړ شوی] عبارت په لومړي سر کې د نیچه په قلم ولیکل شو.
- ادامه ورکړئ!
- د سارتر د فلسفې اصلي کلمه، د کرکه ګور د فلسفې په څېر، وجود دی. مګر دا وجود د ژوندیتوب په معنا نه دی. بوټي او ژوي هم ژوندي دي، وجود لري، مګر له خپل وجوده خبر نه دي.
سارتر ویل، مادي شیان یوازې (د خپل نفس لپاره)- في نفسه- وجود لري. حال دا چې انسان د خپل نفس لپاره موجود دی. په دې توګه د انسان وجود او د شیانو وجود سره یو ډول نه دی.
- هو، دا منم.
- سارتر وویل: د انسان وجود په بل هر څه لومړیتوب لري، دا چې زه یم، پر هر هغه څه چې زه یم، لومړیتوب لري.
- دا وینا ډېره پېچلې ده.
- له ماهیت څخه مطلب هغه شی دی چې نور ټول شیان تري جوړېږي- طبیعت یا د هر شي هستي. خو د سارتر په باور، انسان دا ډول ذاتي طبیعت نه لري، انسان باید پخپله خپل ځان پیدا کړي. څکه دا هر څه ورته له مخه نه دي تاکل شوي.
- ګومان کوم په مقصد مو پوهېږم.

- د فلسفې د تاریخ په اوږدو کې فیلسوفانو هڅه کړې چې پوه شي، انسان څه دی؟ او یا د انسان طبیعت څه دی؟ مګر سارتر وویل چې انسان داسې تلپاتې طبیعت نه لري چې پر هغه توسل ومومي، د همدې لپاره دا بې معنا ده چې د ژوند لپاره په ټولیز مفهوم پسې وګرځو، خو دا چې بداهت ته مخه کړو.

مور د هغو لوبغاړو په څېر یو چې پرته له تمرین، پرته له ننداري او پرته له داسې کسه چې د پردې تر شا زموږ په غوږ کې ووایي چې څه باید وکړو، صحنې ته راغلي یو. ناچار یو چې پخپله پرېکړه وکړو چې څنګه ژوند وکړو.

- دا خبره ښځې سمه ده. که د تورات او انجیل، او یا بل هر فلسفي کتاب په لوستو مو کولی شوای چې پوه شو څنګه ژوند وکړو، نو ژوند به ډېر اسانه شوی وی.

- د مطلب پر اصل پوهېدلې یې. سارتر ویل، که انسان درک کړي چې ژوندی دی او یوه ورځ به مري او هېڅ داسې کومه معنا نشته چې پرې پوه شي، نو تشویش یا ناخاپي وېره راته پیدا کېږي.

په یاد دې دي، چې ناخاپي وېره د انسان د وجودي ځای ځایګي په هکله د کرکه ګور په تعریف کې مهم رول لري؟

- هو!

- سارتر وایي، انسان په بې معنا او بې مقصده دنیا کې داسې احساس کوي لکه پردی چې وي؛ ده د انسان د پردیتوب په تشریح کې د هېګل او مارکس اصلي نظریې رامنځته کړې. په نړۍ کې د پردیتوب احساس په انسان کې یو ډول د ناهیلی، زړه تنګون، پوچۍ او زړه بدی احساس پیدا کوي.

- هو. د خپګان احساس، دا ډېر عادي دی، داسې احساس دی چې هر څه پخپله کېدونکي دي.

- هو، په رښتیا هم. سارتر د شلمې پېړۍ د ښارمېشتو انځور و. په یاد دې دي، چې د رنسانس دورې انسانپالو، تقریباً په بریالي توګه- د انسان پر آزادۍ او خپلواکۍ تکیه کوله؟ د سارتر لپاره د انسان آزادي یو ډول ښکنځل وو. ویل یې، انسان پر آزادۍ محکوم دی. ځکه سره له دې چې ځان یې په خپله نه دی پیدا کړی بیا هم ازاد دی، او له کومې ورځې یې چې پښه نړۍ کې ایښې، د هر هغه کار مسوول دی چې تر وي کېږي.

- موږ خو نه دي غوښتي چې نړۍ ته آزاد راشو.

- د سارتر مقصد هم دقیقاً همدا دی. سره له دې چې موږ آزاد یو بیا هم دا آزادي په ټول ژوند کې موږ انتخاب ته مجبوروي. داسې تلپاتې ارزښتونه او معیارونه نشته چې پرې ځان وتړو او همدا زموږ د انتخاب ارزښت زیاتوي. ځکه موږ سل په سلو د خپلو هغو کړنو مسوول یو چې کوو یې. نو نشو کولی په دې بهانه چې باید دندې ته لاړ شو، یا دا چې باید د متوسطې طبقې تمې په خپل ژوند کې پلې کړو، د انتخاب له مسوولیته اوږې تشې کړو؛ څوک چې داسې وکړي نو په بې هویتو کې شمېرل کېږي، په ناپېژنده ډله کې راځي، په هغه ډله کې چې له ځانه غولېدلي یا له ځانه تښتېدلي.

همدارنګه ازادي موږ مجبوروي چې ځانونه څرګند کړو او په رښتیا ژوند وکړو.

- هو، پوه شوم.

- په دې برخه کې زموږ اخلاقي انتخاب هم صدق کوي. نشو کولی چې پړه د انسان پر طبیعت، انسان پر ضعف یا پر دې ډول شیانو واچوو. ځینې وخت له داسې بالغو انسانانو سره مخ کېږو چې د ځناورو په څېر چلند کوي او د خپلو کړنو ګناه د بشر- د پلار پر غاړه اچوي، خو

د بشر- کوم پلار نشته. هغه یوازې یوه بهانه ده چې موږ خپله گناه ونه منو.

- خو د انسان مسوولیت یو حد لري.

- سارتر ادعا کوله، چې ژوند ذاتي مفهوم نه لري، خو مقصد یې دا نه و چې ټول شیان مهم نه دي. سارتر په اصطلاح نهلیست یا نشت پال نه و.

- دا نو څه مانا لري؟

- نشت پال هغه څوک دی چې فکر کوي ټول شیان پوچ او بې مانا دي او هر کار جایز دی. سارتر باوري و، چې ژوند باید مانا ولري. له دې کاره څوک نه شي تښتېدی، خو دا موږ یو چې باید خپل ژوند ته مانا ورکړو. وجود یعني د وجود منځته راوړل.

- دا راته لږ څه واضح کولی شې؟

- سارتر په دې لټه کې و چې پوهاوی په ځان کې بې ثمره دی، تر دې چې یو شی حسي- درک شي. خبرتیا تل له یوه شي خبرتیا ده. دا شی هم زموږ خپله لاسته راوړنه ده او هم زموږ د چاپېریال. که کوم شی چې موږ ته مهم دي انتخابوو نو تر یوې اندازې په خپل حسي- ادراک کې موثر یو.

- یو مثال ویلی شې؟

- که دوه کسه په یوه کوټه کې وي، دواړه کوټه متفاوته حس کوي. دا د دې لپاره چې موږ د حسي- ادراک پر وخت خپل چاپېریال ته په خپله خوښه مفاهیم ورکوو. مېندواره ښځه احیاناً فکر کوي هرې خواته چې گوري نو مېندوارې ښځې وینې، علت یې دا نه دی چې مخکې مېندوارې ښځې نه وې، بلکې علت دا دی چې ښځه اوس نړۍ ته په بله سترگه گوري. تښتېدلی زنداني چې هرې خواته گوري، پولیس وینې.

- امم، پوه شوم.

- زموږ ژوند د کوټې دننه شیانو د درک پر څرنګوالي اغېز کوي. که کوم شی چې مو پر زړه نه وي نه يې وينو. ښه، اوس ښايي وویلی شم چې ولې ناوخته راغلم.

- قصداً و، کنه؟

- لومړی دا ووایه، کله چې راغلې څه شی دې ولیدل؟

- لومړی شی مې چې ولیدل دا وو چې تاسو دلته نه وی.

- ستا په نظر دا عجيب نه دی؟ لومړی شی چې دې ليدلي دا دي چې دلته نه وو.

- ښايي. خو ما بايد له تاسو سره ليدلی وای نو ځکه په تاسو پسې ګرځېدم.

- سارتر هم کټ مټ همدا ډول بېلګه په پام کې نيسي- خو وښيي چې موږ څنګه هغه شيان چې پر موږ پورې اړه نه لري، نشتوو يې.

- او تاسې قصداً ناوخته راغلی څو دا ثابته کړی.

- هو. څو ته وکولی شې چې د سارتر د فلسفې پر مهم ټکي پوه شې. د دې کار نوم يو ډول درسي تکلف بللی شې.

- هو، په رښتيا چې.

- که کوم څوک درته ګران وي، د هغه ټېلفون ته په تمه وې، نو ټوله شپه د ټېلفون غږ اورې چې زنګ نه وهي. يو بل ته مو ويلي چې له اورګاډي سره بايد ووينې، نو د ليدو پر وخت يوه ډله خلک هاخوا او دېخوا ځي او نه پرېږدي چې تاسو يو بل ووينئ. دا ډله ټول مزاحم دي او يو يې هم تاته ارزښت نه لري، ان شايد تر نظر دې ډېر چاغ او بدرنګ راشي او ډېر ځای يې نيولی وي. يوازېنی شی چې ته يې وينې دا دي چې هغه هلته نشته.

- څومره بد!

- سیمون دوبوار هڅه وکړه چې د وجود اصالت فلسفه، د ښځو د ازادۍ په برخه کې وکاروي. سارتر ویلي وو، چې انسان ثابت او په پوره حال طبیعت نه لري چې پر هغه ځان وتړي. او پخپله ځان پیدا کوو.

- ښه؟

- په دې برخه کې زموږ ادراک دواړو جنسونو - ښځې او سړي- ته صدق کوي. سیمون دو بووار د ښځې ثابت طبیعت یا د سړي ثابت طبیعت رد کړ. د بېلګې په توګه معمولاً ویل کېږي چې نارینه لټونکی طبیعت یا ځان غوښتونکی طبیعت لري.

د همدې لپاره تر کوره بهر په هدف او مانا پسې ګرځي. حال دا چې د ښځو د ژوند فلسفه بالکل د دې برعکس ده. دوی بې حرکته دي، یعنې غواړي چېرته چې دي همالته واوسي. له همدې امله ښځې د کورنۍ روزنې ته مخه کوي. په چاپېریال او کورنیو شیان پوري زړه تړي. په نننۍ اصطلاح ښځې تر نارینه وو زیات (ښځینه ارزښتونو) ته ارزښت ورکوي.

- سیمون دو بووار په رښتیا همدا باور درلود؟

- لکه چې زما خبرو ته غوږ نه یې. په حقیقت کې سیمون دو بووار اصولاً پر یو شان ښځینه طبیعت یا نارینه طبیعت باندې باور نه درلود. برعکس، ویل یې چې ښځې او نارینه باید ځانونه له دې دول وراندوینو یا ارمانونو خلاص کړي.

- زه هم په همدې نظر یم.

- د هغې مهم اثر په ۱۹۴۹ز کې خپور شو چې دویم جنس نومېده.

- له دې عنوانه یې مقصد څه و؟

- کتاب د ښځو په اړه دی. زموږ په فرهنګ کې له ښځو سره د دویم جنس په څېر چلند کېږي. د نارینه وو چلند له ښځو سره د فاعل او

مفعول په شان دی او په دې توګه ښځه د خپل ژوند له مسوولیته محروموي.
- یعنې ویل یې چې زموږ ښځو ازادي او خپلواکي زموږ په خپل لاس کې ده؟
- هو، همداسې ویلی شو. اګزیستانسیالیزم د اوسنۍ پېړۍ له څلورمې لسیزې را وروسته پر ادبیاتو، په تېره پر ننداره لیکنې، پراخ اغېز پرېښود. سارتر پخپله هم ننداري لیکلې او هم رومان. ځینې نور لوی لیکوالان دا وو: فرانسوی آلبر کامو، ایرلنډی سیمویل بکت، اوژن یونسکو چې له روماني راغی او ویتولد ګومبروویچ له پولنډ څخه. د دوی او ډېرو نورو نویو لیکوالو ځانګړی سبک، پوچپالنه نومېږي. دا اصطلاح تر ډېره د پوچپال تیاتر په اړه کارول کېږي.
- پوچ پال!
- پوهېږې چې له پوچپالنې مقصد څه دی؟
- فکر کوم هر هغه څه چې بې معنا یا له عقله لرې وي؟
- بالکل! پوچپال تیاتر د واقعپال تیاتر پر وړاندې دی. موخه یې دا ده چې د ژوند بې معنایي وښیي او لیدونکي مخالفت ته وپاروي. غواړي موږ ته ووایي چې په بې معنا شیانو پسې لاړ نه شو او په عادي ورځني موقعیت کې د ژوند د بې معنا شیانو په ښودلو او رسوا کولو سره لیدونکو ته خبرداری ورکوي چې د ځان لپاره حقیقي او ارزښتمن ژوند ولټوي.
- په زړه پورې ښکاري.
- پوچ پال تیاتر معمولاً ډېر ساده موقعیتونه انځوروي. له همدې امله هغه ته تر واقعیت لوړه انځورونه هم ویلی شو. د تیاتر خلک لکه څنګه چې دي همغسې انځورېږي. د بېلګې په توګه که یو عادي کس په یوه معمولي کورنۍ کې د سهار لخوا په حمام کولو ووینې نو لیدونکي په

ويلي شو، خکه خندا ته يو ډول دفاعي ميکانيزم
خندا کېږي. د دوی خندا ته يو ډول دفاعي ميکانيزم ويلی شو، خکه
خان يې په رشخند او هجو حالت کې پر صحنه ليدلی.
- هو، بالکل.
- پوچ پيال تياتر کولی شي سوررياليستي اړخ هم ولري. په دې حال کې
غالباً د لوبغاړو خبرې په رويايي او ډېرو غيرواقعي موقعيتونو کې
جوړيږي، خو خپله وضع او حال يې تعجبه منې او د ننداري د کسانو
همدا نه تعجب د ليدونکو د تعجب سبب کيږي.
د چارلي چاپلين د يې غږو فلمونو کړنلاره هم همدا وه. د دوی خندا
غالباً د چاپلين هغو کړنو ته وه، چې پرته له اعتراضه خان هرې پوچې
بلا ته ورکوي. دا د دې لامل گرځي چې ليدونکي په خان کې دننه
اصل او سم شي ته وگوري.
- هو، څومره عجيبه ده، چې انسانان ډېر ځيزونه پر خان تېر کړي خو
هيڅ اعتراض نه کوي.
- که انسان په رښتيا احساسوي چې بايد له دې وضعيته وتښتم، خو بيا
هم زه نه پوهيږم چې چېرې پناه يوسم.
- کور چې اور واخيست بايد تري ووځې، که څه هم د تګ لپاره بل
ځای نه لرې.
- سمه ده. يوه بله پياله چای هم څښې؟ يا شايد يو کوکالا؟
- ښه. خو زه اوس هم وايم، ښه دې ونه کړل چې ناوخته راغلې.
- ويلو ته څه نه لرم.
آلبرتو له يوې پيالې قهوې او يو کوکاکولا بوتل سره بېرته راغی. په
دومره وخت کې سوفي هم دوکان لږ لږ خوښ کړی و. ويې ليدل چې
د نورو ميزونو خبرې هم لکه څومره چې مخکې يې فکر کاوه بې مانا
نه وې.

آلبرتو د نوشابې بوتل په زوره پر مېز کېښود، د نورو مېزونو خو کسانو دوی ته وکتل.
اآلبرتو وويل: او دا د کرښې پای دی.
- يعنې د فلسفې تاريخ له سارتر او اګزيستانسياليزم سره پای ته ورسېد؟
- نه. دا اغراق دی. خو د وجود اصالت فلسفې په ټوله نړۍ کې ډېرو خلکو ته اساسي ارزښت لرلی دی. د دې فلسفې رېښه، لکه څنګه چې مو وليدل، له کرکه ګور څخه تر سقراط پورې رسېږي. خو شلمه پېړۍ د څينو نورو فلسفي جريانانو، چې مخکې مو بحث پرې کړی، د تجدد او ودې شاهده هم پاتې شوې.
- لکه؟
- لکه نوتومېزم، يعنې د توماس اکويناس پر دود پورې اړوند مفکورې او بله يې تحليلي فلسفه يا د منطقي تجربې مسلک چې د هيوم او برېتانوي تجربه ګرو په فلسفه او تر يوې اندازې د ارسطو په منطق کې هم رېښه لري. سربېره پر دې، شلمه پېړۍ د بې شمېرو او بېلابېلو بهيرونو په اصطلاح نومارکسيزم تر اغېز لاندې هم وه. د نوډاروينزم او ارواپوهنې په هکله خو مو مخکې خبرې کړې دي.
- هو.
- بايد د ماترياليزم يو نهايي بهير، ماده پالنې، ته اشاره وکړو چې دا هم تاريخي ريښه لري. اوسني ډېری علوم کولی شو تر سقراطه مخکې فيلسوفانو پورې وتړو. د بېلګې په توګه د موادو د جوړښت د تر ټولو کوچنۍ ذرې لټون. هېڅوک تر اوسه نه دي توانېدلي دې ته قانع کوونکی ځواب ووايي چې، ماده څه ده. نوي علوم، له هغې ډلې اتومي فزيک او حيواني کيميا، دومره په زړه پورې دي چې د ډېرو کسانو د ژوند د فلسفې مهمه برخه شوي دي.
- نوي او زاړه د يو بل تر څنګ...

پوښتني لا تراوسه بې ځوابه پاتې
- هو. ځکه زموږ د درس د پيل ځينې پوښتنې وجودي پوښتنو ته يو دمې
دي. سارتر ډېره مهمه خبره وکړه، ويې ويل، وجودي پوښتنو ته يو دمې
د تل لپاره ځواب نه شو ويلی. فلسفي پوښتنه، لکه څنګه چې يې له
نومه ښکاري، داسې څه ده چې هر نسل، ان هر فرد يې بايد په وار وار

وپوښتي.
- څومره ناهيلې کوونکی فکر!!
- نه، زه هم نظره نه يم. د دې ډول پوښتنو څرګندول زموږ د ژوندیتوب
نښه ده. همدارنګه انسانانو تل د نهايي پوښتنو د لټون پر وخت د ډېرو
نورو نويو مسايلو د حل روښانه او قطعي لاره موندلې. علم، څېړنه او
ټکنالوژي ټول د فلسفي فکر کولو فرعي محصول دي. ته پخپله ووايه
ايا د انسان حيراني د ژوند په هکله د دې لامل نه شوه چې هغه
سپوږمۍ ته بوځي؟
- هو، سمه ده.
- کله چې نيل آرمسترانګ سپوږمۍ کې پل کېښود، ويې ويل: (د بشر-
لپاره کوچنی ګام، د بشر-لپاره لوی پاځون). په دې کلمو يې خپل
احساس، د لومړني کس احساس چې سپوږمۍ ته وختوت، بيان کړ او
ټول هغه کسان يې له ځان سره شريک کړل، چې مخکې تر ده
اوسېدلي وو. دا ښکاره ده چې دا کار يوازې او يوازې د ده د کار او
وړتيا پايله نه وه.
- زموږ په زمانه کې نوې ستونزې رامنځته شوې. له هغه ډلې د چاپېريال
مسئله بايد تر ټولو مهمه وګڼل شي. د چاپېريال فلسفه د يوه بنسټ
اېښودونکي په باور (آرنه نس) د شلمې پېړۍ له عمده فلسفي بهيرونو
څخه ده. د دې مکتب ډېر فيلسوفان خبرداری ورکوي چې د لوېديز
تمدن اصولاً پر خطا لاره روان دی او د قوي اس په څېر څلور ګامه د
تکر لور ته منډې وهي. د هوا د ککړتيا او چاپېريال د وېجاړتيا په هکله

د دوی څېړنې لا ډېرېږي. د دوی په باور غربي تفکر پر اساسي کم عقلي اخته دی.

-زما په نظر سم وايي.

-د بېلګې په توګه، د چاپېريال فلسفه د تکاملي اصل دا مفکوره نه مني چې انسان تر ټولو ښه دی او دا چې موږ د طبيعت سرور يو. او دا شان فکر زموږ د ژوندي سیارې لپاره خطرناک ګڼي.

-د دې موضوع په اړه فکر کول زما اعصاب خرابوي.

-د چاپېريال فيلسوفانو دا فکر تر نيوکې لاندې ونيو او ډېرو يې د نورو فرهنګونو، لکه د هند فرهنګ، په فکر او مفکورې نظر اچولی. همدارنګه يې د بومي خلکو-لکه امريکايي بوميانو-افکار او عادتونه هم مطالعه کړل، څو دا ومومي چې لويدېځ څه شی له لاسه ورکړي.

-د وروستيو کلونو په محفلونو کې ويل کېږي چې زموږ د تفکر ډول سر تر پايه د (الګويي بدلون) په حال کې دی. دا يعنې د پوهانو د تفکر په ډول کې بنسټيز بدلون. دا کړنلاره هم په ځينو څانګو کې ثمر ته رسېدلې ده. موږ پخپله په اصطلاح د آلترنيتو غورځنګونو د بېلابېلو بېلګو شاهدان پاتې شوي يو، چې ټول د (ټولپالنې) او د ژوند د نويو لارو مدافع دي.

-څومره ښه

-په هر حال، کله چې خبره د ډېر شمېر خلکو شي نو بايد د ښه او بد تر منځ توپير وکړو. يوه ډله په دې نظر دي چې موږ د نوي عصر-په لړۍ کې يو، خو ضرور نه ده، چې هر نوی شی دې ښه وي او هر زوړ شی دې لرې وغورځول شي. د دې دورې د فلسفې د درس يو دليل همدا و. اوس چې تا تاريخي شاليد ولوست، کولی شې چې د خپل ژوند لاره معلومه کړې.

-منته کوم.

- زما په نظر ډېر شیان چې د نوي عصر- په نوم موږ ته ویل شوي، مسې
خبرې دي. په دې وروستیو پېړیو کې نویو مذهبونو، نویو نااشنا علومو،
د لویدیځ بېلابېلو نویو خرافاتواو اوهامو څمکه تر خپل اغېز لاندې
راوستې ده. دا څان ته یو صنعت شوی دی. او هر څومره چې مسیحیت
خپل پیروان له لاسه ورکوي، همدومره د فلسفې په بازار کې دا
څایناستي متاع توکي ډېرېږي.
- د نوو توکو نومونه راته وایې؟
- د دوی فهرست دومره اوږد دی چې نه پوهېږم له کومه څایه یې پیل
کړم. همدارنګه د انسان د خپلې زمانې تعریف هم اسانه نه دی. راځه
چې په ښار کې لږ وګرځو، غواړم یو شی در وښیم.
- زه ډېر وخت نه لرم، د سبا مېلمستیا خو به مو نه وي هېره شوې.
- نه، نه مې ده هېره. هلته به جالبه پېښه کېدونکې وي. مګر لومړی باید
د هیلډې د فلسفې درس پای ته ورسوو. قومندان تر هغې وروسته فکر
نه دی کړی. پام دې دی چې څه وایم. په دې اساس کله چې درس
پای ته ورسېد، د قومندان واکمني پر موږ لږ څه کمېږي.
یو څل بیا یې د نوشابې خالي شوی بوتل پورته کړ او کلک یې پر مېز
وواهه.
سړک ته لاړل، خلک د مېږیانو غونډې په بېړه هاخوا دېخوا روان وو.
سوفي په دې فکر کې وه، چې آلبرتو څه شی غواړي ور و یې ښیي.
یوه پلورنځي ته ورسېدل چې له مخابراتي توکو، تلویزیون او ویډیو
نیولې، ان تر لاسي تلیفون، کمپیوټر، د فکس ماشین او دېشن آنتن
پورې هر ډول شیان په کې خرڅېدل.
آلبرتو د پلورنځي ویترین ته اشاره وکړه او ویې ویل:
- دې ته وایي شلمه پېړۍ، سوفي. نړۍ د رنسانس له دورې په حرکت
پیل وکړ. لوی کشفي سیندي سفرونه پیل شول، اروپایانو ټوله نړۍ په

رڼا کې لېږدېده. نن ورځ کار برعکس شوی. کولی شو هغه ته یو ډول معکوس انفجار ووایو.

-یعنې څه؟

-یعنې دا چې ټوله نړۍ د یوې لویې ارتباطي شبکې په توګه سره نښتې ده. همدا څو وخته مخکې فیلسوفانو د نړۍ په هکله د څېړنې او د ځینو حکماوو د لیدنې لپاره ناچاره و، چې څو ورځې پر اس او بګۍ سفر وکړي. اوسمهال چې موږ وغواړو کولی شو د دې سیارې په هر ځای کې کېنو او د بشر د ټولو تجربو حاصل د کمپیوټر پر مخ را وا ړوو.

-حیرانوونکې ده همدارنګه وېرووونکې!

-مسئله دا ده چې ایا تاریخ پای ته رسېږي، که بر عکس موږ د نوي عصر-په لړۍ کې یو. موږ یوازې د یوه ښار ښاریان، یا د یوه ځانګړي هېواد وګړي نه یو. موږ په نړیوال تمدن کې ژوند کوو.

-سمه ده.

-د ټول تاریخ په ترڅ کې د وروستیو دېرش څلوېښتو کلونو فني پرمختګونه، په تېره د اړیکو په برخه کې، ډېر عجیب او حیرانوونکي پاتې شوي دي او دا تر اوسه د کار پیل دی...

-همدا مو غوښتل را وښیئ؟

-نه، کوم شی چې مې غوښتل در وښیم د هغه کلیسا تر شا دي.

د پلورنځي د ویتېرین مخې ته ولاړ وو، چې د تلوېزیون پر مخ ناڅاپه د ملګرو ملتونو د څو سرتېرو انځور راغی.

سوفي وویل: وګوره!!

کمرې د یوه سرتېري څېره له نږدې وښوده. د آلبرتو په څېر یې توره ږېره وه. ږېره ور سرتېري ناڅاپه یو کاغذ د تلوېزیون مخ ته ونیو، پر هغه لیکلي وو: (زه درځم هیلدې!) سرتېري لاس وښوراوه او ورک شو.

آلبرتو چغه کړه: مکار!!

- قومندان و؟
- نه غواړم خبرې پرې وکړم.
د پارک له منځه د کليسا مخته لاړل او يوه بل لوی سړک ته ورسېدل. آلبرتو لېږ غوسه ښکارېده. د ښار د يوه لوی کتابپلورنځي، لېبريس، مخې ته ودرېدل.
آلبرتو وويل: راځه چې ورشو.
کتابپلورنځي ته ننوتل او د يوې اوږدې الماری مخې ته ودرېدل چې درې برخې يې درلودې: نوی عصر، د ژوند نوي سبکونه او عرفان.
د کتابونو عنوانونه حيرانوونکي وو، لکه تر مرگ وروسته ژوند؟ د ارواح د احضار اسرار، د فال پاڼه، د الوتونکي قاب خارق العاده پېښې، شفا ښينه، د خدايانو بياراتگ، مخکې هم دلته وو، طالع کتنه څه ده؟ او په زرهاوو نور داسې کتابونه. د الماريو په کښته ځای کې همدا ډول ډېر کتابونه وو.
- دا هم شلمه پېړۍ ده، سوفي. دا زموږ د زمانې زيارت دی.
- تاسو خو به پر دې خبرو عقيده نه لری؟
- ډېرې يې اضافي خبرې دي، مگر دا هم د مبتذلو او برښنډو فلمونو غوندې ښه خرڅلاو لري. اکثره دا کتابونه بې معنا دي. ځوانان راځي او دا افکار چې ورته غولوونکي دي، اخلي. له واقعي فلسفې سره د دې کتابونو توپير د رښتيني او مبتذلې مينې توپير ته ورته دی.
- زړه مې خپه کوې.
- راځه چې په پارک کې کښنو.
له کتابپلورنځي راووتل، د کليسا مخې ته يې تشه څوکۍ وليده، تر ونو لاندې کوترې گرځېدې، مرغۍ په خپلو کې سره چونېدې.

آلبرتو وویل: نوم یې پرې (Parapsychology) یا تر احساس لوړ ادراک ایښی. کله هم ورته (غیب پوهنه)، سایکوکنتیکس، د روح احضار، د طالعو کتنه او (ufology) وایي.
- په رښتیا فکر کوې چې دا ټول بې مانا دي؟
- البته د یوه واقعي فیلسوف په شان کې دا نشته چې ووایي دا ټول په یوه اندازه بد دي. خو کولی شو ووایو چې دوی ټول د هغه خه مفصله نقشه ایستلې چې منظره یې هېڅ موجوده نه ده. (خیالي وهمونه) چې هیوم یې اور ته اچوي، دلته ډېر دي، ان د یوې ستنې د سپم په اندازه په کې واقعي تجربه نشته.
- نو ولې یې په اړه دومره کتابونه لیکل کېږي؟
- د دې ډول کتابونو خپرول لویه سوداګري ده. ډېر خلک دا شان څیزونه لولي.
- ستاسو په نظر، ولې؟
- ښکاره ده چې خلک له رازونو ډک مطالب خوښوي، غواړې داسې څه ولولي چې د ژوند ستړي کوونکي یوشان والی مات کړي. خو داکار خورا سخت دی بلکې له غرونو او دریابونو پنا ملکونو ته د زړې وړل دي.
- مقصد مو څه دی؟
- موږ پخپله دلته په حیرانوونکې پېښه کې ډوب یو. په روښانه ورځ، د سترګو تر وړاندې مو نوی او خلاق پیدایښت را څرګندېږي. حیرانوونکې نه ده، سوفي؟
- هو، ده.
- نو څه اړتیا ده چې د راز داره شیانو لپاره په فال یا غیب پسې لاړ شو؟
- غواړې ووایې څوک چې دا ډول کتابونه لیکي دروغجن یا مداري دي؟

نظام ده.
- نه، داسې نه وايم. خو دلته هم خبره د داروينې نظام ده.
- يعنې څه؟
- فکر وکړه. د يوې ورځې په ترڅ کې څومره بېلابېل څيزونه پېښېداى شي. د خپل ژوند يوه ورځ په پام کې ونيسه. ټول هغه شيان چې وينې يا يې تجربه کوې په ياد راوړه.
- بنه؟
- ځينې وخت عجيبې پېښې کېږي. يوه پلورنځي ته ځې او شيان په ۲۸ کرونه اخلې. په هماغه ورځ لږ شېبه وروسته يووانا راځي او ۲۸ کرونه چې ستاسو پوره وړې ده، بېرته يې درکوي. دواړې سينما ته ځئ او ۲۸مه شمېره څوکۍ تاسې ته رسېږي.
- هو، دا تصادفونه پېچلي دي.
- خو په هر حال، يو تصادف دی او بس. مسئله دا ده چې خلک دا ډول تصادفونه ذهن ته سپاري. هېڅوک خپلې حيرانوونکې تجربې نه هېروي. کله چې دا تجربې، د ميلياردونو کسانو له ژونده، په کتابونو کې راټولې شوې، د حقيقي اطلاعاتو بڼه يې ځانته غوره کړه او پرله پسې يې شمېر مخ په زياتېدو دی. خو دا هم د بخت ازمايلو په څېر دی، موږ يوازې ګټونکې شمېرې وينو.
- مګر واسطې او غيب ويل تل دا شان کارونه کوي، کنه؟
- هو، که چلبازي يوې خواته پرېږدو، دغو له رازونو ډکو تجربو ته بله توجيه هم پيدا کولی شو.
- هغه کومه ده؟
- په ياد دې دي چې د فرويد د لاشعور نظريې په هکله مو خبرې وکړې...
خود.

ـ فرويډ وښودله، چې موږ ډېر وخت کولی شو د خپل لاشعور واسطه واوسو. کله د داسې شي په هکله فکر کوو يا يې تر سره کوو، چې واقعاً بې د کولو يا نه کولو په اړه توضيحات نه لرو. علت يې دا دی چې موږ په خپل شعور کې ډېرې تجربې، فکر او خاطرې لرو چې پر هغو لاسبري نه يو.

ـ بيا؟

ـ ډېر خلک په خوب کې خبرې کوي، يا په خوب کې روانېږي او ځي. دې ته کولی شو يو ډول (رواني خودکاري) ووايو. همدارنګه کېدای شي خلک د هيپنوتيزم له امله، پرته له دې چې په خپله وغواړي، ځينې شيان ووايي يا يې وکړي. حتماً به دې په ياد وي چې سورريالېستانو هڅه کوله په اصطلاح پخپل سر څه وليکي. يعنې غوښتل يې د خپل لاشعور واسطه شي.

ـ په ياد مې دي.

ـ په اوسنۍ پېړۍ کې کله له داسې خلکو سره مخ کېږو چې (د ارواح د احيا) ادعا لري، يعنې کولی شي چې واسطه شي او له مړيو سره اړيکه ونيسي. واسطه د مړي په غږ خبرې کوي، يا پخپل سر څه ليکي. او د هغه چا چې پنځوس يا سل کاله پخوا مړ دی، پيغام تر لاسه کوي. خلک دې ته تر مرګ وروسته ژوند يا د څوځلي ژوند دليل وايي.

ـ هو، پوهېږم.

ـ نه غواړم ووايم چې دا ټولې دروغ واسطې دي. ځينې يې ضرور پر هغه څه چې وايي يې، اعتقاد لري. يعنې په رښتيا واسطې دي خو د خپل ځان د لاشعور واسطې. دا واسطې له نږدې څخه د خلسې په حال په وار وار مطالعه شوې. او داسې اطلاعات او وړتياوې يې موندلې چې نه پخپله په واسطه پوهېږي او نه نور، چې څنګه دا هر څه لاسته راغلي. په يوه مورد کې، هغه ښځه چې په عبري ژبه نه پوهېده، په عبري يې

پيغامونـه مونـدلي وو. نـو دې ښـځې يـا پخـوا ژونـد كـړی يـا د كـومې مـړې ښځې روح پکې حلول کړی.

- ستاسو په نظر کوم يو به يې وي؟

- معلومه شوه چې ښځې په ماشومتوب کې يهودي دايه درلوده.

- آه!!

- مايوسه شـوې؟ دا ښـيي چې ځينې کسـان پـه خپـل لاشعور کـې د ځيزونو د ساتنې لپاره څومره حيرانوونکی استعداد لري.

- په مقصد مو پوهېږم.

- دېرې دغـه ورځنـی عجيبې پېښـې کـولی شـو د فرويـډ د لاشـعور نظريـې لـه لارې بيـان کـړو. زه د خپـل هغـه ملگـري پـه شـمېره پسـې گـرځم چـې کلونـه کېـږي خـبرې مـې ورسره نـه دي کـړې، ناڅاپـه ټيلفـون اخلـم، شـمېره وهم او ملگری پر کرښه راځي.

- سړی ښځي حيران شي.

- د مسـئلې توضـيح كېـدای شي داسـې وي چـې راډيـو پخـوانی سـندره خپره کړې، چـې مـا او ملگـري مـې د وروسـتي ځـل لپـاره يـو ځـای اورېـدلې وه. خبره دا ده چې موږ له نغښتو اړيکو څخه خبر نه يو.

- نـو دا مطالـب يـا بـې معنـا دي، يـا قضـيه د گټونکـو شـمېره ده او يـا هـم لاشعور. کنه؟

- پـه هـر حـال، ښـه بـه دا وي چې دې کتـابونو تـه لـږ څـه د شـک پـه سـترگه وگـورو. پـه تېـره کـه څـوک فيلسـوف هـم وي. شـکاکانو پـه انگلسـتان کـې ځانتـه انجمـن جـوړ کـړ، کلونـه مخکـې يـې هغـه لـومړني کـس تـه لويـه جـايزه وټاکلـه چـې وتـوانيږي مـافوق الطبعـي تـه ان جزيـي دليـل وړانـدې کـړي. دا نـو لازمـه نـه وه چـې لويـه معجـزه دې وي، د (تلـه پـاتي) يـوې کـوچنی نمـونې هـم کـولی شـوای چې دا جـايزه وگټـي. تـر نـن ورځې چا ښه مخکې نه کړه.

- همم!

- له بلې خوا پر هغو څيزونو چې موږ نه شو پوهېدی هم کم نه دي. څه پوهېږو؟ کېدای شي موږ د طبيعت پر ټولو قوانينو پوه شو. په تېره پېړی کې خلکو مقناطيسي- پديده يا بريښنايي قوه جادوگري گڼله. که زما د نيا، نيا ته دې د ټلوېزيون په هکله څه ويلی وای، په شرط وايم چې خوله به يې له ډېرې حيرانۍ خلاصه پاتې وه.

- نو تاسو د طبيعي ماورا په هيڅ شي باور نه لرئ.

- په دې هکله مو مخکې هم خبرې کړې دي. پخپله د ماورأ الطبيعه اصطلاح عجيبه ښکاري. نه، زما په گومان تر يوه طبيعته ډېر څه نه دي. خو دا هم، په خپل وار سره، تر اندازې زيات حيرانوونکی دی.

- نو د راز لرونکو شيانو تکليف څه دی چې څو شېبې مخکې مو په هغو کتابونو کې ماته راوښودل؟

- حقيقي فيلسوف بايد تل خپلې سترگې خلاصې وساتي. ان که يې هيڅ وخت سپين کارغه نه وي ليدلی، بايد له لټونه يې لاس په سر نه شي. له همدې امله موږ نه پوهېږو، ښايي زما په شان شکاک کس يوه ورځ ناچاره شي هغه پديدې ومني چې پخوا يې پرې باور نه درلود. که زه دا مکان ونه منم نو متعصبه کس يم، نه حقيقي فيلسوف.

آلبرتو او سوفي څو شېبې بې له دې چې څه ووايي، پر څوکۍ غلي ناست وو. کوترو لاهم سر او ورمېږ خوځاوه او بغ بغو يې بند کړی و، کله کله به بايسکل يا کوم ناڅاپي حرکت دوی له ځايه الوزولې.

بالاخره سوفي وويل: زه بايد کورته لاړه شم چې مېلمستيا ته تياری ونيسم.

- مخکې تر دې چې لاړه شې، غواړم سپين کارغه دروښيم. ډېر لرې نه دی، راځه.

آلبرتــو پاڅېــد او روان شــو، بيــا د کتــابپلورنځي خواتــه ورغــی. دا ځــل د طبعي مـاروا په اړه لـه کتـابونو څخـه تېـر شـول او د کتـابپلورنځي پـه ښـکته برخـه کـې د يـوې وړې المـاری تـر څنـګ ودرېـدل. پـر المـاری کـوچنی کارټ خوړند و، پرې ليکلي و: فلسفه.

آلبرتـو د ګـوتې پـه اشـاره نجلـی تـه يـو کتـاب وښـود او سـوفي چـې عنـوان ولوست، تکان يې وخوړ: د سوفي نړۍ.

-يو يې درته واخلم؟

-نه پوهېږم چې جرئت يې لرم که نه.

لـږ وروسـته د کـور پـه لـور روانـه وه، پـه يـوه لاس کـې يـې کتـاب او پـه بـل کې د مېلمستيا د شيانو پلاستيکي کڅوړه.

# لویه چاودنه

## ... موږ هم د ستورو ذرې یو...

هیلده د پلار تر څنګ کراره پر څوکۍ کېناسته. نږدې نیمه شپه وه. دواړه ناست وو او اوبو ته یې کتل. په آسمان کې څو روښانه ستوري ځلېدل، سترګکونه یې وهل، د اوبو څپې آرامه د ساحل پر ډبرو لګېدې.

پلار چوپتیا ماته کړه.

- عجیبه ده، موږ د کایناتو نړۍ په یوه ډېره کوچنۍ سیاره کې ژوند کوو.

- هو...

- د ځمکې سیاره یوه له هغو ستورو ده، چې تر لمر چاپېره تاوېږي، همدارنګه ځمکه هغه یوازېنۍ سیاره ده چې ژوند په کې موجود دی.

- ښايي په ټولو کایناتو کې یوازېنۍ سیاره وي.

- کېدای شي. ترڅنګ یې امکان هم لري چې کاینات له ژوندە ډکه وي. کاینات دومره لوی دي چې موږ یې فکر هم نه شو کولی. واټنونه دومره زیات دي چې موږ یې په نوري کال او نوري دقیقو محاسبه کوو.

- چې په اصل کې څه دي؟

- نوري دقیقه هغه فاصله ده، چې نور یې په یوه دقیقه کې طی کوي او دا ډېره اوږده لاره ده. ځکه د نور سرعت په یوه ثانیه کې ۳ سوه زره کیلومتره دی؛ نو یوه نوري دقیقه له ۶۰ x ۳۰۰۰۰۰ سره برابره ده یعنې ۱۸ میلیونه کیلومتره او یو نوري کال کابو لس تریلیونه کیلومتره کېږي.

- د لمر فاصله له موږ څخه څومره ده؟

- تر اتو نوري دقيقو لږ څه ډېره. د جون مياشتې د اوړي په يوه گرمه ورځ کې چې د لمر وړانگې زموږ پر مخ لگېږي، اته نوري دقيقې په کيهان کې تېروي، چې تر موږه راورسېږي.
- ادامه ورکړه...

- پلوتون چې د شمسي- نظام تر ټولو لرې سياره ده، له موږ څخه کابو پنځه نوري ساعته فاصله لري. کله چې يو ستورپوه په خپل تلسکوب کې پلوتون ته گوري، په واقعيت کې هغه څهويني چې پنځه ساعته مخکې هلته پېښ شوي دي. يا کولی شو ووايو چې پنځه ساعته وخت نيسي څو د پلوتون تصوير ځمکې ته را ورسېږي.
- تصور يې لږ ستونزمن دی، خو فکر کوم پر مطلب پوهېږم.
- ډېر ښه هيلدې، خو اوس انسان د ځمکې پر مخ خپل ځای نوی پيدا کوي. زموږ لمر له ۴۰۰ ميلياردو کهکشاني ستورو څخه يو دی، چې د (سپينې لارې Milky Way) په نوم يادېږي. دا کهکشان يوې لويې صفحې ته ورته دی چې لمر يې په يوه برخه کې ځای لري. کله چې د ژمي په شپو کې آسمان ته گورو دا په اصل کې سپينه لار ده.
- او ښايي له همدې امله د سويډن خلک سپينې لارې ته (د ژمي ځلورلارې) وايي.
- په سپينه لار کې زموږ فاصله له تر ټولو نږدې گاونډۍ سيارې سره ځلور نوري کاله ده. د هغه ټاپو پر سر هغه ستوري ته وگوره، دا ښايي هماغه گاونډ ستوری وي. که تصور وکړې چې همدا اوس هلته يو ستورپوه ناست دی او خپل قوي دوربين يې د برکلي خواته را اړولی دی- نو زموږ کور داسې ويني لکه ځلور کاله وړاندې چې و. او تا يوه يوولس کلنه نجلۍ ويني چې په ټال کې ناسته ده او پښې ښوروي.
- د منلو وړ نه ده.

- خو موږ ته دا تر ټولو نږدې ستوری دی. د دې کهکشان ټولګه چې ځینې وخت ورته سحابي هم ویل کېږي- ۹۰۰۰۰ نوري کاله پراختیا لري. یعنې ۹۰۰۰۰کاله وخت نیسي-چې نور د کهکشان له یوې څنډې څخه بلې څنډې ته ورسېږي. کله چې په سپینه لار کې یوه ستوري ته، چې ۵۰۰۰۰ نوري کاله له لمر څخه فاصله لري، وګورو؛ کوم تصویر چې وینو پر ۵۰۰۰۰ کالو پخوا پورې اړه لري.

- زما کوچني مغز ته دا فکر ډېر لوی دی.

- نو فضا ته د کتلو یوازینی لاره، په وخت کې شاته تګ دی. موږ هېڅکله نشو پوهېدی چې د کایناتو نړی همدا اوس په څه حال ده. یوازې دومره پوهېدی شو چې هغه وخت څنګه وه. کله چې یوه ستوري ته چې په زرهاوو نوري کاله له موږ څخه لرې دی، ګورو، په حقیقت کې زرګونه کاله د فضا په تاریخ کې شاته ځو.

- له درکه لرې ده.

- کوم څه چې وینو د نور هغه څپې دي چې زموږ پر سترګو لګېږي. او دا د نور څپې په فضا کې د تېرېدو پر مهال وخت نیسي- ښکاره بېلګه یې تالنده او برېښنا ده. موږ تل لومړی د برېښنا رڼا وینو، وروسته د تالنده غږ اورو. ځکه برېښنايي څپې تر غږیزو څپو چټکې دي. کله چې د تالنده غږ زموږ غوږ ته رسېږي، د هغه څه غږ اورو چې څه شېبه مخکې پېښ شوي. ستوري هم په همدې شان دي. کله چې یوه ستوري ته، چې له موږ څخه په زرهاوو نوري کاله لرې دی، ګورو، په حقیقت کې د هغه تالنده غږ اورو چې په زرهاوو کاله وړاندې هلته پېښ شوی.

- هو، پام مې دی.

- تر دې ځایه مو د خپل کهکشان په اړه خبرې وکړې. ستورپوهان وایي، کابو سل میلیارده کهکشانه په فضا کې موجود دي، او هر

کهکشان کابو سل میلیارده ستوري لري. زموږ سپیني لارې ته تر ټولو نږدې کهکشان آندرومېده بلل کېږي، چې زموږ له کهکشان څخه دوه میلیونه نوري کاله فاصله لري. یعنې دوه میلیونه کاله وخت نیسي- څو د دې کهکشان نور تر موږ پورې راورسېږي. پر دې اساس کله چې په اسمان کې آندرومېده ته ګورو نو دوه میلیونه کاله وړاندې زمان ته نظر کوو. که په دې کهکشان کې کوم څېرک ستورپوه وي او همدا شېبه یې خپل تلسکوب د ځمکې خواته نیولي وي- وبه نه شي کړی چې موږ وويني. خو که بخت ورسره مل وي، څو لومړني پلن مخي سرې به یې لیدلي وي.

- حیرانوونکې ده.

- تر ټولو لرې کهکشان چې تر اوسه پېژندل شوی، کابو لس میلیارده نوري کاله له موږ څخه فاصله لري. هر کله چې له دې کهکشان څخه کومې مخابراتي نښې تر لاسه کوو، د نړۍ په تاریخ کې لس میلیارده کاله شاته ځو. دا کابو زموږ د شمسي منظومې دوه برابره عمر دی.

- زه نوره ګنګسېږم.

- سره له دې چې په وخت کې شاته تګ اسانه نه دی، ستورپوهان په داسې کشف بریالي شوي چې له نړۍ څخه زموږ انځور تر دې هم زیات ارزښت لري.

- څه؟

- معلومه شوې، چې په فضا کې هېڅ کهکشان پر خپل ځای ثابت نه پاتې کېږي. ټول کهکشانونه په فضا کې په حیرانوونکي سرعت له یو بل څخه لرې کېږي او هر څومره چې له موږ څخه لرې وي همدومره په چټکۍ حرکت کوي. نو د کهکشانونو فاصله تل مخ په ډېرېدو ده.

- کوښښ کوم موضوع مې په ذهن کې مجسمه کړم.

- که یوه پوکانه ولرې او پر مخ یې څو تور ټکي کېږدې، وروسته چې هغه پو کړې، وینې چې ټکي له یو بله لرې کېږي. همدا پېښه اوس د کایناتو په نړۍ کې له کهکشانونو سره پېښېږي. وایي نړۍ د پراخېدو (انبساط) په حال کې ده.

-ولې داسې کېږي؟

- ډېری ستورپوهان باور لري چې د کایناتو پراخېدل یوازې یو دلیل لري: په پخوا وختونو کې، کابو پنځلس ملیارده کاله وړاندې، په فضا شته مواد په یوه نسبتاً کوچنۍ محوطه کې راټول وو. دې موادو دومره غلظت او تراکم درلود چې د جاذبې قوې په شدت سره تاوده کړل. په پایله کې دومره تاوده او ګرم شول چې وچاودل. دې ته یې لویه چاودنه ویلې ده.

- ان تصور یې د انسان وېښته دروي.

- لویه چاودنه سبب شوه چې ټول شته مواد په فضا کې خواره شي او دا مواد چې په تدریج سره ساړه شول، ستوري، کهکشانونه، سپوږمۍ او سیارې یې رامنځته کړې...

- خو تا وویل چې کاینات تر اوسه هم د پراخېدو په حال کې دي.

- هو، د نړۍ د پراخېدو علت دقیقاً همدا د ملیاردونو کلنو پخوا چاودنه ده. کاینات ثابته هندسي بڼه نه لري. کاینات یو اتفاق دی. کاینات یوه چاودنه ده. په فضا کې کهکشانونه په ډېر سرعت سره له یو بله لرې کېږي.

- او دا تر ابده دوام لري؟

- دا یو امکان دی. مګر یو بل امکان هم موجود دی. په یاد دې دي، آلبرتو سوفي ته د دوو داسې قوو په هکله وویل، چې د لمر په مدار کې د څو سیارو د تلپاتي کېدو سبب ګرځي.

- د جاذبې قوه او د جبر قوه، که نه؟

- هو، دا په کهکشانونو کې هم صدق کوي. يعنې سره له دې چې نړۍ د پراختيا په حال ده، بيا هم د جاذبې قوه په مخالف لوري عمل کوي او يوه ورځ، يو دوه ميليارده کاله وروسته، کله چې د لويې چاودنې ځواک مخ په کمېدو شي، د جاذبې قوه بنايي يو ځل بيا آسماني اجسام سره يو ځای کړي. هغه وخت به معکوسه چاودنه، يو ډول انقباض، پيښېږي. خو فاصلې دومره زياتې دي چې دا عمل هغه فلم ته ورته دی. دا فلم لږ ساعت ننداري ته ايښودل شوی او بس. يا دا له هغو پوکانو سره ورته بللی شو چې بېرته يې هوا وځي.

- يعنې کهکشانونه يو ځل بيا په تاکلې هسته کې سره راټولېږي؟

- هو، سمه پوه شوې. خو څه فکر کوې، وروسته به څه کېږي؟

- شايد بله لويه چاودنه به کېږي او کاينات ورو ورو مخ په پراخېدو روانېږي. ځکه قوانين هماغه دي او په دې اساس نوري ستوري او کهکشانونه رامنځته کېږي.

- سمه وړاندوينه دې وکړه. ستورپوهان د کايناتو راتلونکې ته دوه امکانه اټکل کوي: يا کاينات همداسې تر ابده پراخېږي او کهکشانونه لاډېر له يوه بله واټن نيسي- يا دا هر څه يو ځل بيا د انقباض پر لور ځي. دا يا هغه امکان پيښېدل د کيهان په درونوالي او رسوب پورې اړه لري او دا هغه څه دي چې ستورپوهان تر اوسه پرې نه پوهېږي.

- خو که د رسوب په پايله کې ممکنه وي کاينات بېرته کوچني شي، نو چا ته معلومه ده، چې وړاندې تر دې هم ځو ځلې کوچنۍ او پراخه شوې وي؟

- دا پايله ناممکنه هم نه ښکاري. خو په دې هکله مختلف باورونه موجود دي. د نړۍ انبساط او پراخېدل بنايي هغه څه دي، چې يوازې همدا يو ځل پيښ شوي. خو که نړۍ تل همداسې مخ په پراخېدو وي، دا مسئله ځرګندېږي چې په لومړي سر کې له کومه شوه؟

- هو، هغه ټول مواد چې ناڅاپه وچاودل، له کومه شول؟

- يو مسيحي، بې شکه لويه چاودنه د پيدايښت شيبه ګڼي. ددوی سپيڅلی کتاب وايي، خدای وفرمايل: پرېږده چې رڼا راشي. د مسيحيانو خطي اخذ له تاريخ څخه، چې آلبرتو نقل کړ، ښايي په ياد دې پاتې وي. مسيحيت د خپل ايماني ليدلوري له اړخه، د پيدايښت په هکله، د نړۍ د مخ په پراخېدو تصور ته لومړيتوب ورکوي.

- رښتيا؟

-له تاريخ څخه د ختيځپوهانو ليد دوراني دی. په بله وينا، تاريخ تل تکرارېږي. د بېلګې په توګه، په هند کې يوه پخوانۍ نظريه موجوده ده چې وايي، نړۍ مړاوې کېږي او بېرته راټوکېږي. په دې توګه کاينات د هغه څه تر منځ چې هنديان ورته برهمايي ورځ او برهمايي شپه وايي، را څرېږي. البته دا نظريه د کايناتو د پراخېدو يا کوچني کېدو له نظريې سره ډېره همغږې ده. يعنې نړۍ (دوراني) چاره ده، چې تر ابده پېښېږي. زما تصوير د دې چارې په اړه يو لوی کيهاني زړه دی چې درزېږي او درزېږي او درزېږي...

- دواړې نظريې حيرانوونکې دي، خو پر يوې يې هم باور نشي کېدای.

- خو دواړې د ابديت لويې معماوې کېدای شي. سوفي يوه ورځ په خپل باغ کې کېناسته او فکر يې وکړ: يا نړۍ تل موجوده وه- يا ناڅاپه له نشته راپيدا شوه...

-اخ!!

هيلدې پر تندې لاس وواهه.

- څه شی وو؟

- غوباړي وچيچلم.

- سقراط به و، غوښتل يې په خپل نېش تا په جوش او خروش راوړلي.

٭٭٭

سـوفي او آلبرتـو پـه خپـل سر خـلاصي مـوټر کـې ناسـت و او د نـړۍ پـه هکله د قومندان خبرو ته یې غوږ نیولی و.

تـر څـو شـېبو وروسـته آلبرتـو وویـل: پـام دې دی چـې زمـوږ نقـش بالکـل برعکس شوی؟

- څنګه؟

- پخـوا بـه دوی زمـوږ خـبرو تـه غـوږ وو او مـوږ بـه نـه شـوای کـولی چـې دوی ووینـو. اوس مـوږ د دوی خـبرو تـه غـوږ یـو او دوی نـه شي کـولی موږ ووینې.

- یو بل څه هم دي.

- څه؟

- پـه لومړیـو کـې مـوږ نـه پوهېـدو چـې بلـه هسـتي هـم موجـوده ده او هیلـده او قومندان په هغې کې اوسېږي. اوس دوی زموږ له هستۍ بې خبره ده.

- خوږ غچ دی.

- خو قومندان زموږ په نړۍ کې لاس وهلی شوی.

- زموږ نړۍ پرته د ده له لاسوهنو بل څه نه وه.

- زه تـر اوسـه هیلـه لـرم چـې ښـایي مـوږ وتـوانېږو پـه یـوه توګـه د دوی پـه نړۍ کې لاسوهنه وکړو.

- خـو تـه پخپلـه هـم ښـه پـوهېږې چـې دا ناممکنـه ده. مـه هېـروه، پـر سـنډریلا څـه راغلـل؟ زه شـاهد وم چـې څنګـه دې کوښـښ کـاوه د کوکاکولا بوتل له هغه ځایه واخلې.

سـوفي چـوپ پـاتې شـوه. کلـه چـې قومنـدان لویـه چاودنـه تشریـح کولـه، سـوفي بـاغ ځـاره. دې اصـطلاح، د لـویې چـاودنې اصـطلاح. یـو فکـر د هغې په ذهن کې وپاراوه. پیل یې وکړ، د موټر شاوخوا وګرځېده.

آلبرتو وپوښتل: څه کوې؟

- هېڅ.

- د موټر سويچ بورډ يې خلاص کړ او هلته يې آچار ومونډل. هغه يې واخيستل او له موټره ښکته شوه. د خوکي خواته ورغله او مخامخ هيلډې او پلار ته يې ودرېده. لومړى يې هڅه وکړ د هيلډې پام خانته واړوي، خو دا بې ګټې وه. اخر يې آچار سر ته پورته کړل او کلک يې د هيلډې پر تندي ووهل.
هيلډې وويل: اخ!
بيا يې د قومندان پر تندي ووهل، خو هغه هيڅ غبرګون ونه ښود.
قومندان وپوښتل: څه شي وو؟
- غوباړي وچيچلم.
- شايد سقراط به و، غوښتل يې په خپل نيش سره تا په جوش او خروش راولړلي.
سوفي پر چمن اورده خملاسته او کوښښ يې وکړ چې خوکۍ وښوروي. خو خوکۍ هيڅ تکان ونه خوړو. شايد لږ څه تکان يې وخوړو.
هيلډې وويل: سوړ باد راځي.
- سوړ نه دی، ډېر پوست دی.
- يوازې باد نه دی، يو بل شی هم په هوا کې شته.
- دلته يوازې موږ يو او د اوړي سړه شپه.
- نه، په هوا کې کوم څه شته.
- لکه څه؟
- آلبرتو او د هغه پټه نقشه دې په ياد ده؟
- څنګه يې هېرولی شم؟
- دوی دواړه غلي له مېلمستيا ورک شول. ته به وايې چې په هوا کې غيب شول...
- هو، خو...

- په هوا کې...

- داستان باید په یوه ځای کې پای ته رسېدلی وی. دا هغه څه وو چې زما قلم ته راغلل.

- هو، خو وروسته څه وشول. څوک خبر چې همدا اوس دلته نه وي...

- باور مې نه کېږي

- پلاره، زه همداسې احساسوم.

سوفي په منډه منډه د موټر خواته ولاړه. وختله، آچار يې تر اوس ټينګ په لاس کې نيولي وو. آلبرتو په زړه نا زړه وويل:

- افرين سوفي! ته ډېره بااستعداده يې. صبر ولره، دا د کار پيل دی.

****

قومندان د هيلدې له ملا لاس تاو کړ.

نجلۍ وويل: د څپو د لوبو له اسراره ډک غږ اورې؟

- هو، سبا بايد کينبتي اوبو ته ښکته کړو.

- او د باد عجيبه زمزمه هم اورې؟ وګوره، د سپيدار ونې پاڼې څنګه رېږدي.

- زموږ سياره ژوند لري، پوهېږې چې...

- تا ليکلي، د کرښو تر منځ څيزونه شته.

- ما؟ چېرې؟

- ښايي د دې باغ په کرښو کې هم کوم شی وي.

- طبيعت له معماوو ډک دی. خو زموږ خبرې د اسمان د ستورو په هکله وې.

- او ستوري به ژر د اوبو پر مخ ځلېږي.

- هو. دا هغه څه دي چې تا په ماشومتوب کې د هغه ژونديو موجوداتو په هکله خبرې کولې، چې د شپې رڼا کوي او برېښي او ښايي په حقه

وې. دا او نور ټول ژوندي موجودات له داسې عناصرو جوړ دي چې یو وخت په ستورو کې سره ګډ وو.

- موږ هم.

- هو، موږ هم د ستورو ذرې یو.

- څومره ښکلې خبره.

- همدا چې راډیوتلسکوپونه وتوانېږي د لرې کهکشانونو نور واخلي، او هغه کهکشان چې له موږ څخه په ملیاردونو نوري کاله فاصله لري، تر مطالعې لاندې ونیسي، د کایناتو د نړۍ نقشه به، له لومړنیو وختونو وروسته تر لویې چاودنې، رسم کړې شي. هر شی چې په اسمان کې د لیدو وړ دي په اصل کې، د زرهاوو او میلیونو کلونو مخکې، کیهاني پاتې شوني (فوسیل) دي. یوازېنی کار چې د ستورپوهانو له وسې پوره دی، د ماضي وړاندوینه ده.

- څکه کله چې د اسماني ستورو ټولګې رڼا تر موږ رارسېږي له خپل خایه حرکت کوي، کنه؟

- د اسماني ټولګو بڼه، د دوو زرو مخکې کلونو، له نن سره ډېر توپیر لري.

- په دې نه پوهېدم.

- په روښانه شپو کې، کولی شو میلیونونه، ان میلیاردونه کاله پخوا د نړۍ تاریخ ته وګورو. نو په یوه تعبیر موږ د ژوندانه د پیل ټکي ته ور ګرڅو.

- په مقصد دې نه پوهېږم.

- زما او ستا پیل له لویې چاودنې و، څکه د نړۍ ټول مواد په کیمیاوي توګه سره ګډ دي. په لومړنیو زمانو کې دا مواد په یوه ډېره محدوده طبقه کې سره راټول وو. د دې طبقې حجم دومره ډېر او دروند و چې یوه سنجاق پکې میلیاردونه ټنه وزن درلود. د حاذبې خارق العاده قوې دا (لومړنی اتوم) وچاوده. لکه یو شی چې ذره ذره شي. کله چې

آسمان تـه گـورو، پـه اصـل کـې هغـه کـوو چـې خانتـه د بهرتـه راتـګ لاره پیدا کړو.

- ډېره عجیبه خبره.

- د کاینـاتو د نـړۍ سـتوري او کهکشـانونه ټـول لـه یـوې مـادې جـوړ شـوي دي. د دې لـومړنۍ مـادې ځینـو برخـو پـه دې ځـای کـې ځانونـه بهرتـه سره یو کـړي او ځینـو نـورو یـې پـه نـورو ځـایونو کـې. کهکشـانونه میلیونـه نوري کلونـه سره لـرې دي؛ خـو ټـول ګـډه او واحـده منشـا لـري. ټـول سـتوري او سیارې له یوې کورنۍ دي.

- هو، پام مې دی.

- خـو دا لـومړنۍ مـاده څـه وه؟ دا شـی چـې میلیاردونـه کالـه مخکـې وچاودل څه وو؟ له کومه شول؟

- لویه معما همدا ده.

- او دا معما په اصـل کـې پـه مـوږ ټولـو پـورې اړه لـري. څکـه مـوږ پخپلـه لـه هغـې مـادې جـوړ یـو. مـوږ د هغـه لـوی اور بخـري یـو چـې میلیاردونـه کالـه مخکې بل شوی و.

- دا هم ښکلې خبره وه.

- پـه هـر حـال، د دې ارقـامو پـه ارزښـت کـې بایـد اغـراق ونـه کـړو. کـافي ده چې له ځمکې یـوه تیږه پورتـه کـړې او هغـې تـه وګـورې. کـه د هسـتۍ نـړۍ یـوازې لـه دې وړې تیږې جـوړه وای، نـو د درک وړ بـه نـه وه. مسـئله بـه بیا همداسې لاینحل وه: دا تیږه له کومې شوه؟

***

سوفي ناڅاپه په موټر کې پر پښو ودرېده او خلیج ته یې ګوته ونیوه.

ویې ویل: زه غواړم په هغې پاروېي کیښتۍ کې سپره شم.

- لـه بنـدر سره کلکـه پـه بـېړي تـړل شـوې ده. مـوږ یـې پاروګـان نـه شـو خوځولی.

ـ راځه چې ويې ازمايو، دا مه هېروه چې نن د اوړي لومړۍ شپه ده.
ـ په هر حال، راځه د اوبو غاړې ته ورشو.
له مونږه شکته شول او په باغ کې يې منډې کړل.
پېرې د وسپينې پر ميله تېل شوې و، کوښښ يې وکړ چې خلاص يې کړي، خو ان دومره يې ونه شواى کړاى چې د پېري سر له ځمکې پورته کړي.
آلبرتو وويل: لکه چې په مېخ يې پر ځمکه ټک وهلي.
ـ وخت ډېر لږو.
ـ رښتيني فيلسوف هېڅکله نه ناهيلى کېږي. که مو وکولى شواى... پېرى سست کړو...

٥٥٥٥

هيلډې وويل: ستوري اوس ډېر شول.
ـ هو، د اوړي شپې چې هر څومره تياره شي، هغومره ډېر ستوري ليدلى شو.
ـ خو د ژمي په شپو کې ډېر سترګک وهي. هغه شپه چې سبا ته يې لبنان ته لاړې، په ياد دې ده؟ د نوي کال شپه وه.
ـ او د نوي کال ورځ وه، چې پرېکړه مې وکړه تاته د فلسفې په هکله کتاب وليکم. د کريستين سن کتابپلورنځي او د دې ځاى ټول کتابتونونه مې لټ په لټ کړل مګر څوانانو ته مې مناسب شى پيدا نه شواى کړى.
ـ اوس مونږ سم د هغې سپينې سوېې د نازکو وېښتانو پر څوکو ناست يو.
ـ آيا هلته پورته په فضا کې، د نوري کلونو د شپو په زړه کې واقعاً څوک شته؟
ـ وګوره، د کېښتۍ پېرى په خپل سر خلاص شو.

- هو، ومې ليد.

- نـه پـوهيږم. مخکـې تـر دې چـې تـه راشـې زه پخپلـه ورغلـم او هغـه مـې کلک وتاړه.

- رښتيا؟

- هغـه شـېبه مـې را يـادېږي چـې سـوفي د آلبرتـو کيښـتۍ پټـه کـړه. پـه يـاد دې دي، اوبو هغه د سيند منځ ته يوړه؟

- په شرط وايم، چې دا ځل هم کار د هغې کار دی.

- ټـوکې رابانـدې کـوې. خـو زه نـن شـپه داسـې احساسـوم لکـه کـوم څوک چې دلته وي.

- پـه هـر حـال، لـه مـوږ دواړو څخـه يـو کـس بايـد لامبـو وکـړي او هغـه کيښتۍ راونيسي.

- دواړه به ورشو پلاره.



## جوستېين گارډر

جوستېين ګارډر د ناروې هېواد پیاوړی کیسه لیکوال دی. هغه الهیات او فلسفه لوستي دي. د څه مودې لپاره یې په ښوونځیو کې فلسفه تدریسوله، چې له همدې ځایه یې د فلسفې د تاریخ په هکله په نړیواله کچه مشهور اثر (د سوفي نړۍ) ولیکه. د ګارډر پلار د یوه ښوونځي مدیر و او مور یې د ښوونکې تر څنګ د ماشومانو د ادبیاتو په برخه کې لیکواله وه. ګارډر لسګونه لنډې کیسې او په نړیواله کچه مشهور ناولونه لیکلي دي. هغه د ادبیاتو اته نړیوالې او ملي جایزې هم ګټلې دي. تر ټولو مشهور اثر یې (د سوفي نړۍ) ناول دی، چې د پښتو په ګډون د نړۍ په ۶۰ ژبو ژباړل شوی دی. دا اثر یې په ۱۹۹۱ز کال کې ولیکه او وروسته په نړیواله کچه مشهور شو. په کتاب کې د فلسفې تاریخ په داستاني بڼه راغلی او پېچلي موضوعات په ښکلو بېلګو کې واضح شوي دي. دغه کتاب د چاپ له پیله تر دې دمه په ټوله نړۍ کې ۴۰ میلیونه کاپي پلورل شوی دی. همدا راز تر دې مهاله د ډېرو پلورل شوو کتابونو په کتار کې ولاړ دی.

شفیق امیرزی



...هیله ده، د افکارو له تاریخ، ودې او پرمختیا سره به پښتانه هم اشنا کړای شي. یو مهال مې د دغه کتاب په اړه خپل یوه همفکره ملګري ته ویلي وو: که سپوږمۍ ته تللم او د لسو کتابونو د وړلو اجازه راکړل شوه، نو یو به یې «د سوفي نړۍ» وي.

څېړنوال عبدالغفور لېوال



...د دې کتاب په پای کې به هغه کس نه وي، چې د کتاب د لومړي مخ د پرانیستو پر وخت وي.

اجمل ښکلی







ISBN 978-9936-626-54-6
بیه
۳۵۰ ؋
Price
9.99$
9 789936 626546